تهذيب كتاب

# مشارع الأشواق إلى مصارع العشاق

(في الجهاد وفضائله)

پښتو

للامام

العالم المجاهد الشهيد احمد بن ابراهيم النحاس الدمشقي الدمياطي

هذبه وانتقاه

الدكتور صلاح عبد الفتاح الخالد

وترجمه الى لغة البشتو

سيف الاسلام "دريزی"

البلاغ خپرندوی مرکز

hedayatdarulelme.com ،دارالكتب الإسلامية

# تهـــزيـــب كتـــاب
# مشارع الاشواق إلىٰ
# مـــصـــارع العشـــاق
# فـــي فضائل الجهاد
# (پښتــــــــــــو)

تهذيب كتاب

# مشارع الأشواق إلى مصارع العشاق

## في فضائل الجهاد

## پښتو

للإمام

العالم المجاهد الشهيد أحمد بن إبراهيم النحاس الدمشقي الدمياطي

هذبه وانتقاه

الدكتور صلاح عبد الفتاح الخالدي

و ترجمه الى لغة البشتو

سيف الاسلام "دريزى"

البلاغ خپرندوی مرکز

# د كتاب مشخصات

**نوم:** تهذيب كتاب مشارع الاشواق الى مصارع العشاق في فضائل الجهاد پښتو

**مؤلف:** العالم المجاهد الشهيد أحمد بن إبراهيم النحاس الدمشقي المياطي

**مهذب:** الدكتور صلاح عبد الفتاح الخالدي

**مترجم:** سيف الإسلام ''دريزى''

**كمپوزر:** عبد الشافي

**خپرندوى:** البلاغ خپرندوى مركز

**چاپ وار:** لومړى

**چاپ شمير:** ۲۰۰۰ ټوكه

**چاپ كال:** ۱٤۲۸ هجري قمري

# البلاغ

خپرندوی مرکز

وياړي چې په لومړي ځل د اسلام د لارې د يوه ستر مجاهد عالم شهيد أحمد بن ابراهيم الدمشقي المياطي د مشهور جهادي کتاب مشارع الاشواق الی مصارع العشاق في فضائل الجهاد د تهذيب پښتو ترجمه په روانه ژبه کټ مټ بې له کوم بدلون نه تاسو ته وړاندې کوي او په دې هم وياړي چې د داسې يوې سترې ليکنې ترجمه يې د کار پيلامه شوه

# البلاغ

خپرندوی مرکز

يو ازاد اسلامي خپرندوی مرکز دی، د اسلامي کتابونو چاپ، نشر، توزيع او ترجمه يې اساسي دندې دي

# البلاغ

خپرندوی مرکز

د دې ترجمې په تصحيح کې د ښاغلي مولوي صبغت الله "صادق" ښاغلي مولوي نور الله "وفا" او ښاغلي مولوي اصحاب الدين هڅې ستايې او له لوی الله نه ورته د دارينو سعادت او کاميابي غواړي

د البلاغ خپرندوی مرکز خادم

عبد الله "مجاهد"

بسم الله الرحمن الرحیم

# دژباړن سریزه

داسلام په سپیڅلی دین کی جهاد داسی یو روښان حقیقت دی چی هیڅ مسلمان ترینه سترګی نشي پټولی ، الله جل جلاله پخپل کتاب قران کریم کی دکفر او ظلم په خلاف دقتال او جهاد کولوتاکید کړیدی ، او مسلمانانو ته یې ځای پرځای امر کړیدی چی دظلم او کفر په خلاف جهاد وکړي لکه چی فرمایي :

﴿ وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوا إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ (۱۹۰) وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ وَأَخْرِجُوهُمْ مِنْ حَيْثُ أَخْرَجُوكُمْ وَالْفِتْنَةُ أَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ ﴾ [البقره : ۱۹۱].

ترجمه : دالله په لیار کی له هغو سره وجنګیږئ چی له تاسی سره جنګیږي ، خو تیری مه کوئ، بیشکه چی الله پاک تیري کوونکي نه خوښوي . او هغوی‌وژنئ په هرځای کی مو چی پری وس ورسید او ویې باسئ له کومو ځایونو څخه یې چی تاسی ایستلی یاست ، فتنه او فساد له وژلو څخه خورا بد دی .

همدغه راز لوی الله دقران کریم په بل ځای کی فرمایي :

﴿ الَّذِينَ آمَنُوا يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللهِ وَالَّذِينَ كَفَرُوا يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ الطَّاغُوتِ فَقَاتِلُوا أَوْلِيَاءَ الشَّيْطَنِ إِنَّ كَيْدَ الشَّيْطَانِ كَانَ ضَعِيفًا ﴾ [النساء :۷۶ ] .

مومنان دالله په لیار کی جنګ کوي اوکافران د شیطان او طاغوت په لیار کی نو دشیطان له دوستانوسره جنګ وکړئ بیشکه چی دشیطان مکر او دوکه خورا سسته او ناتوانه ده .

له دغو پورتنیو آیتونو څخه پرته نور ګڼ آیتونه هم دجهاد داهمیت په باره کی نازل شوي دي خوزه دلته په همدغو دوه آیتونو بسنه کوم .

دالله تعالی له دغو آیتونو څخه څرګندشو چی له مسلمان سره جهاد یونه جلاکیدونکی عنصر دی ترهغه پوری یو مسلمان په صحیح معنی مسلمان مومن او خپلواک نشي پاتی کیدلی ترڅوپوری چی دجهاد جذبه او ولوله دهغه په رګونو کی موجودنه وي .اسلام او جهاد پخپلو کی دروح او جسد مثال لري چېرته چی مسلمان او اسلام وي هلته به جهاد خامخا موجود وي . اسلام او مسلمان له جهاد نه پرته نشي پائیدلی ، دکوم مسلمان زړه چی دجهاد له روح نه خالي وي هغه به له ایمان نه هم تش لاسی وي دهرچا په زړه کی چی دجهاد شوق نه وي هغه ځانته دمسلمان ویلو حق نه لري که بیاهم له سپین سترګی نه کار اخلي او ځانته مسلمان وایي ، وایي دی مګر درسول الله صلی الله علیه وسلم دمبارک ارشاد په رڼا کی هغه به دمنافق په مرګ مري الله سبحانه وتعالی پخپل پاک کلام قران مجید کی فرمایي :

﴿ وجاهدوا باموالکم وانفسکم فی سبیل الله ﴾

ای مومنانو!تاسی دالله په لاره کی پخپلومالونو او ځانونو سره جهاد وکړئ .

هرڅوک چی دالله په دی ښکاره حکم عمل نه کوي مالي او ځاني جهادلپاره ملانه تړي هغه مسلمان او مومن نشي کیدی دحضرت آدم علیه السلام له زمانی نه تراوسه پوری داسی ورځ نه ده تیره شوی چی دالله ربنتونو مومنو بنده ګانو دخپل ایمان او عقیدی دساتلو لپاره له جني او انسي شیطان سره جهاد نه وي کړی ، داسی یوپیغمبر نه دی مبعوث شوی چی هغه دایمان او اسلام له دښمنانو سره دجهاد اعلان نه وي کړی . آخري نبي محمدصلی الله علیه وسلم هم خپل ټول ژوند داسلام له دښمنانوسره په جهاد کی تیر کړیدی همدغه راز دهغه صلی الله علیه وسلم اصحابو کرامو هم له جهاد نه یوی شیبی لپاره غفلت او سستنی نه دی کړی . کله چی دپیغمبرانو او دهغوی امتیانو ایمان ، عقیده او استقلال له جهاد نه پرته په امن کی نه دی پاتی شوی نو ددی زمانی مسلمان څنګه کولی شي چی له جها د نه پرته خپل ایمان ، عقیده او آزاد ژوند په امن کی تیر کړي .

ای مسلمانه وروره!اکه ته غواړی چی ستا ا یمان ، عقیده ، آزادي ، عزت او آبرو دکفارو له یرغل نه محفوظ پاتی شي نو دا له جهادنه پرته په هیڅ حالت کی ممکن نه دی ، که دالله دښمن کفري او الهادي ځواکونه ستاپرخاوره ، عقیده ، آزادي ،

عفت ، غیرت او عصمت باندی له یرغل کولو نه نه ویریږي له لری ځایونو نه راځي ستاپرخاوره تیری کوي نوته دهغوی په مقابله کی دجهاد کولو نه ولی وروسته کیږی ؟ ایا داوروسته کیدل به په دی خبره دلالت نه کوي چی ستاز ړه له ایمان نه تش دی ، په رګونو کی دی دغیرت وینه وچه شویده او هسې تش په نامه مسلمان یې .

ریښتینی مسلمان کله هم دکفر په وړاندی دغلامي سر اینښودلوته نه چمتوکیږي او ترهغه توره له لاسه نه غورځوي ترڅوپوری چی دکفراو ظلم زور نه وي اوبه شوی او حق په باطل نه وي غالب شوی .

که ته ریښتینی مومن یی نو بیا داسلام دسرلوړی او دآخرت دتل پاتي جنتونودترلاسه کولو لپاره له جهاد نه پرته بله لاره ستاپه وړاندی نشته . دخپل درونه خوب نه بیدار شه او دالله په لاره کې دظلم اوناروا په خلاف مزبوط او فولادي دیوال جوړشه ځکه چی الله تعالی مسلمان مکلف کړی دی چی هر وخت دکفر او تیری په خلاف جهاد وکړي .

ای مسلمانه وروره! په دی خبره پخه او کلکه عقیده وساته چی الله تعالی دحق ملګری او مدد ګار دی .اوفرمایلي یې دي چی : خبردار! دالله ډله غالبه ده.

اوس هغه ورځ رانژدی شوی چی له اسلامي نړۍ نه دکفر او ظلم تغر راټول او یرغلګر کفري ځواکونه په ذلت اورسوایي سره وتښتي. انشاء الله

زه په آخره کی دخپلو هغو وروڼو لپاره لاس په دعایم چی ددی مهم کتاب په ژباړه کی له ماسره مرسته اولاربنوونه کړی ده ، لوی الله دی زما اودهغوی هلې ځلې پخپل لوی دربار کی قبول اومنظور کړي . آمین.

یوه بله خبره چی زه خپلو درنو لوستونکوته کول غواړم هغه داده چی که څه هم ما ددی کتاب په ژباړه کی بشپړکوښښ کړیدی چې څه غلطي پکی پاتی نه شي خوبیاهم که دانساني کمزوری له کبله څه غلطیانې پاتی وي هغه دی په نښه او دکتاب چاپوونکی اداري ته ولیږي ترڅو په دویم چاپ کی اصلاح کړی شي .

والسلام

ستاسی ورورسیف الاسلام ( دریزی)

ذوا العقده ۱۴۲۸ هـ ق

# سریزه

إن الحمـدلله ، نحمله ونستعينه ونتوب إليه ونستغفره ، ونعوذبالله من شرور أنفسنا ،ومن سيئات أعمالنا ،من يهده الله فلا مضل له، ومن يضلل فلاهادي له ، وأشهد أن لا إله إلا الله،وحده لاشريك له ، وأشهد أن محمداً عبده ورسوله ، صلوات الله وسلامه عليه ، وعلى آله وصحبه أجمعين .

امابعد:

بې لـه شکه جهاد ددين يو مضبوط بنسټ او د اسلام روح دی، په دی کی داسلام قوت اودبقا راز دی ، داد امن هغه يقيني لاره ده چې ريښتيني مومنان پرې ځي او سيده دنعمتونو جنت ته رسيږي او درب العالمين خوښي ترلاسه کوي.

قرآن پاک دجهاد في سبيل الله په اړه زور بحث کړی اودجهاد ميدانونه ، طريقې او صورتونه يې ډيرصفا بيان کړيدی ؟

درسول الله صلى الله عليه وسلم ګڼ احاديث د جهاد حقيقت ثابتوي او خلک ديته هڅوي اوترغيب ورته ورکوي .

درسول الله صلى الله عليه وسلم سيرت جهادي سيرت دی او ددغه سيرت رښتينی عنوان او پيژندګلوي داده چې داديو مجاهد نبي محمد ﷺ سيرت دې ځکه چې درسول اکرم ﷺ ټول ژوند د الله له دښمنانو سره په جهاد کې تير شويدی ترڅو د الله دعوت خور اودين خلکوته ورسيږي .

رسول الله ﷺ خپلو ملګرو صحابه کرامو ته هم دجهاد داسې تربيت ورکړې و چې دايې د ژوند برخه . او ددوی په طبيعت کې ننوتې و، پدې وجه هغوی دالله د لارې مجاهدين ، مقاتلين، دشپې راهبان ، زاهدان اود ورځې شهسواران وو، ددښمنانو لپاره ډير سخت او پخپلو کې نهايت نرم او مهربان وو .

داسلامي تاريخ په ټولو پيړيو کې جهاد يو غښتلې ار قوي خط پاتې شوې دی چې ريښتوني اومجاهد مسلمانان يې له نورو نه جداکړيدي اودغو مجاهدينو دامت له

دښمنانو سره مقابله کړې او لوی جهاد یې ورسره کړیدې ، په دې لاره کې یې پوره صبر ، استقامت او تیارې ښودلې او له الله سره خپله کړی وعده یې سرته رسولې ده.

مسلمان امت پدې حق او رښتینې جهاد سره دخپل وجود او دین حفاظت کړی او خپله خاوره یې ساتلې ده، دخپلو صلیبي دښمنانو او نورو کافرانو مقابله او دجهاد په زور یې ددښمنانو وسله تباه ، دسیسې یې ناکامې اودخپلو اهدافو او مقصدونو په ترلاسه کولوکې یې له ماتې سره مخ کړیدي .

پدې اوسني وخت کې پر مسلمان امت یو نوی مصیبت راغلې اوپه یو داسې بلا کې اخته شوي دي چې دښمنان دهغوی دیوداسې اسلامي خلافت په له منځه وړلو کې کامیاب شوي دي چې د مسلمان امت لپاره دامن او سلامتیا سوری و ، دښمنان وتوانیدل چې دمسلمانانوله ټولو اطرافونه داسلامي نظام وجود ختم کړي د مسلمانانود فردي او اجتماعي ژوند له ټولو اړخونونه یعنی سیاسي ، اقتصادي ، اجتماعي ، علمي ، ادبي ، کلتوري او فکري برخو نه ژوندی او موثر اسلام غائب کړي او اسلام فقط په جوماتونو، بندو کوټونو، لکه شخصي احوال او خیریه اجتماعي موسسو کې بندکړي. کافرو دښمنانو دمسلمان امت په دین باندې داسې هر اړخیز یرغل وکړ چې نه ترینه دمسلمانانو اخلاق بچ شو ، اونه هم هلکان جینکۍ ، مالونه ، عزتونه ، قوت ، او وطن .

دشمنانو دټولو مسلمانانو ملکونه قبضه او افراد یې قتل کړل ، په آسیا ، افریقااو اروپا کې ډیر اسلامي هیوادونه دهغوی ترسلطی او کنټرول لاندې دي .

دمسلمانانو وینې بې دریغه توی کړی چې په اوسني دور کې هم دټولونه ارزانه وینه دمسلمانانو وینه ده ، په شرق ، شمال او جنوب کې دمسلمانانو په خلاف صلیبیانو جنګونه پیل کړي لکه په ایتوپیا ، استیریا، صومالیه ، سوډان ، نائجیریا، سینیګال ، بوسنیاهرزوګوینا ، البانیا، چیچنیا، داغستان، ارمینیا، ازر بائجان ، هند ، پاکستان ، کشمیر ، افغانستان ، تایلند، بوریا، ویتنام ، انډونیزیا، فلفاین ، جاپان ، او چین کې .

پدې دورکې داسې سخت مصیبت راغې چې دمسلمان امت ملایې ماته کړه ځکه چې کافر او ملعون یهود وتوانیدل چې دفلسطین په پاکه خاوره خپل یهودي

حکومت جوړ او پدې سره یې دخپل دپیړیو پیړیو زوړ مقصد او مرام ترسره کړ.
مسلمان امت دیهودو دحسد په پټو لمبو او اور کې وسوځیده .... او له یهودو سره
په (۴۸) ( ۵۶ ) ،(۷۳) او (۸۲) کلونو په جنګونو کې ډیر زیات تاواني شو ، دامت
حاکمانو له یهودو سره په کم ډیوېډ ، اوسلو ، مادرید ، واشنګټن ، وادي عربه او
قاهره کې دسولې تړونونه لاسلیک کړل او له یهودو سره دامت دیو شانته کیدو او
تابع کیدو کار یې وکړ او پدې سره دیهودو ډیر مرامونه ترسره شول او اوس هم لګیا
دي دخپلو ظالمانه یهودي مرامونو پوره کیدو لپاره کار کوي .

مجاهدین په پوره صداقت سره په مختلفو جبهاتو کې ددښمنانو په مقابل کې
دجهاد دفریضې اداء کولو لپاره اوچت شول لکه په فلسطین ، سوډان ، بوسنیا ،
چیچینیا ، هند او افغانستان کې ، له الله تعالی سره خپله کړې وعده یې پوره کړه
ځینې پکې په شهادت ورسیدل او ځیني لاپه انتظار کې دي اولـة خپلې وعدې څخه
یوه زره هم مخالفت نه کوي ، لیکن سازش او دسیسه ډیره لویه وه او جګړه ددوی له
طاقت نه پوره نه وه دشمن زیات قوي و ، داسلامي ملکونو ډیرو حکومتونو او ډلو
ددوی ملګرتیا ونه کړه ترڅو دوی نظامي هدفونه او مادي نتائج لاسته راوړی وای
مګر دوی بیاهم دصبر ، استقامت ، ثبات ، جهاد ، شجاعت او دقهرمانۍ داسې
داسې تاریخ او مثالونه وړاندې کړل چې داددعوت ، جهاد او دشهادت په میدان کې
داسې روښانه نښې او لوړې کارنامې دي چې اقتداء پسې کولې شي ،

دجهاد دغه لاره به د اسلامي امت په وجود کې دیو قوي او بنیادي اصل په توګه
پاتې وي ، دامت داسې نسل به راشي چې دقرآن ، سنت ، داصحابو کرامو سیرت ،
دمخکینیواواوسنیو صادقو مجاهدینو لـه قهرماني څخه دجهاد روحیه واخلي او
دالله تعالی ددښمنانو په مقابل کې داسلامي ملکونودفاع په خاطر مقدسه فریضه
اکوي او دالله په مرسته داسې سخت میده کونکې اسلامي جګړې راتلونکې دي.
کله چې اسلامي امت ته دخپلو ناروغیونه صحت په نصیب شي ، له خپل رب سره
صداقت وکړي او د اسلام ددین پابند وګرځي نو پدې وخت کې به یهود او ددوی
ملګري هغه څه ووینې چې انتظار یې نه کوي ، یهودو ، صلیبیانو ، هندوانو اوبت
پرستانو ته به دمومنو او صادقو مجاهدینو لخوانه پرله پسې تباهي او بربادي ور

اړول کیږي ، جهاد به دغسې مسلسل جاري اوساري وي لکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته خبر راکړی چې : (( الجهاد ماض الی یوم القیامة ....))
یعنې جهاد به ترقیامته پورې جاري وي ، او هغه رښتیني او ثابت قدمه ډله به پدې امت کې همیشه لپاره موجوده وي چې دهغې خبر رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته راکړی دی اوفرمایلي یې دي : (( لا تزال طائفة من أمتي ظاهرین علی الحق لایضرهم من خالفهم حتی یأتی أمر الله ...... )) یعنې زمایه امت کې به یوه داسې ډله همیشه لپاره ترقیامته پورې موجوده وي چې په حق باندې به ولاړ وي اومخالفین به ورته هیڅ ضرر نشي رسولې ، هغه رښتیني مجاهدین به همیشه موجود وي کوم چې دخپلو تورو لاندې جنت ته دداخلیدو شوق لري اودابه په اینده کې نور هم زیاتیږي ، دوی به درسول الله دغه وینا رښتینې کوي چې فرمایي :
(( واعلموا ان الجنة تحت ظلال السیوف ... )) پوه شئ چې جنت دتورو ترسیوری لاندې دی ، دغو صادقو مجاهدینو ته داکتاب ډالۍ کوو چې دجهاد دفضائلو په اړه دابن النحاس دکتاب تهذیب دی ، ترخوبه پوره بصیرت سره جهاد وکړي ، دجهاد فضائل او میدانونه وپیژني اودجهاد جذبه ، احساس ، شوق او مینه یې لاپسې زیات او قوي شي ، همدارنګه دابن النحاس دکتاب دغه تهذیب دامت ځوانانو ته هم وړاندې کوو ترڅو خپل هغه فریضه وپیژني چې الله تعالی ورباندې ددښمن په مقابله کې جهاد لازم کړی دی او پدې سره دغفلت ، سستي ، تردد او شاته پاتې کیدو نه ځان وژغوري له الله سره صداقت وکړي اودهغه ددین نصرت او مرسته وکړي دالله تعالی ددښمنانو مقابله وکړي او دقرآن اوجهاد تربیرغ لاندې خپل موقعیت ولټوي ، اودخپلې راتلونکي شوي وعدې دترسره کولو لپاره کوشش وکړي اودخپلې مینې آرزو ګانو ته په رسیدوکې تلوار وکړي .

مونږ پدې تهذیب سره الله تعالی ته متوجه کیږو او دده دپاک ذات نه امید واریو چې ددغه کتاب مولف عالم ، مجاهد اوشهید ابن النحاس دمشقي ته عظیم اجر وثواب ورنصیب کړي ، او همدارنګه هغو دوه وروڼو ته هم بې حسابه اجرونه ورکړي

کومو چې ددغه کتاب تحقیق او خدمت کړیدی او پدې اجر اوثواب کې مونږ هم شریک وګرځوي ...

او الله تعالی دی هرهغه چاته هم دخیر جزاء ورکړي چې ددی کتاب په نشر او تقسیمولو کې برخه اخلي بیشکه الله تعالی کریم او سخي ذات دی .

وصلی الله علی سیدنا محمد وعلی آله وصحبه وسلم .

دکتور صلاح عبدالفتاح خالدی.

# داتهذیب

امام ، عالم ، مجاهد او شهید ابو زکریا احمد ابن ابراهیم بن محمد ، شافعي ، دمشقي الدمیاطي لیکلی دی چې ابن النحاس په نوم مشهور دی اوپه ۸۱۴ هجري کال دمصر په دمیاط منطقه کې شهید کړی شویدی . داکتاب یې دجهاد په اړه لیکلې دی چې دجهاد احکام ، فضایل اوجهاد ته دترغیب په موضوعاتو باندې مشتمل دی ، او خپل کتاب ته یې (( مشارع الاشواق الی مصارع العشاق ومثیر الغرام الی دار السلام )) نوم ورکړی او دغه امام پخپل ژوند کې واقعي جهاد کړیدی ځکه چې په دمشق کې دجهاد په دور کې لوی شوی اوپه عملي توګه کې دلته دجهاد تربیت اخستې و ، بیا چې مصر ته یې کډه وکړه او په دمیاط کې لس کاله پاتې شو نو دلته بیا عملي جهادیې وکړ ، ده به ددمیاط او دخواوشا علاقې خلک د صلیبیانو سره جهاد ته راوستل چې دهغوی دحملو مخ نیوې وکړي . الله تعالی دده جهادپخپل دربار کې قبول او د شهادت لویه مرتبه یې ورته په نصیب کړه او په کال ۸۱۴ هجري کی دمیاط ته نژدی د « الطینة » نومی ځای کې په جګړه کې شهید شو .

نو پدې سره امام ابن النحاس رحمه الله علمي ، عملي ، اوقولي جهاد ټول ترسره کړه اودشهادت مرتبه یې ترلاسه کړه .

نو پدې وجه دده دغه کتاب بو خاص مزه او تاثیر لري ، او معلومه ده چې الله تعالی ددی شهید او عالم دغه کتاب ته دقبولیت درجه نصیب کړی ده ځکه چې دایې دوه ځلې لیکلې دی یو ځل یې دعلم په سیاهي او دویم ځل یې دشهید په وینو، اوپدې سره ابن النحاس دکریم صفت ګټلې دی ، پرهغه ددغه کتاب د تالیف او دلیکلو سبب او باعث داو چې ده دخپلې زمانې په مسلمانانو باندې جهاد فرض ګڼلوځکه چې مغولواوصلیبیانوورباندې حمله کړی وه لیکن دوی دجهاد نه اعراض کړی و نو ده وغوښتل چې ددوی همتونه راتیز او جذبه یې رابیداره کړي نو ددغه مقصد لپاره یې داکتاب ولیکلو او دایې تقریباً دلسو (۱۰) میاشتو په موده کې

دخپل شهادت نه دوه کاله وړاندې تالیف کړ ، دا رحمه الله پخپله وایي : ( لدی کتاب نه دمصنف دخپل رب رحمت ته فقیر او عاجز اوودده دعفوې او بخښنې امیدواربنده احمد بن ابراهیم بن محمد بن النحاس الدمشقي الله تعالی دی ورته معافي وکړي ،) فارغیدل دجمادي الثاني په ۲۵ نیټه کال ۸۱۲ هجري کی و او دتالیف ابتداء یې درمضان المبارک په میاشت کال ۸۱۱ هجري کې و ،

علماء پدې متفق دي چې دجهاد په موضوع کې دابن النحاس کتاب ترټولوبهترین کتاب دی ، او څومره کتابونه چې دجهاد په موضوع لیکل شویدي له ټولو نه پدې کې جمع او تحقیق زیات ، معلومات او فوائد پکې ډیر دي .

کله چې ابن النحاس رحمه الله دکتاب اوږدوالې محسوس کړ نو پخپل ژوند کې یې دامختصر کړ او نوم یې ورته : " مختصر مشارع الاشواق " کیښود .

څرنګه چې دغه کتاب علماو زیات خوښ کړ اوزیاته توجه یې ورته وکړه نو بعضو علماو مختصر کړ چې پدې جمله کې الشیخ محمود العالم المنزلی متوفی ۱۳۱۱ ه هم دی او ده خپل مختصر ته " فکاهة الاذواق فی اختصار مشارع الاشواق" نوم ورکړ .

دابن النحاس دغه کتاب تر ډیری زمانی محفوظ پروت و تردې چې پدې زمانه کې الله تعالی دده دچاپولو او ظاهرولو فیصله وکړه .

په مکه مکرمه کې دام القری دپوهنتون دشرعیاتو اوداسلامي دراساتو فاکولتې دابن النحاس ددغه کتاب تحقیق لپاره دوه څیړونکو اشخاصوسره چې په اسلامي شریعت کې یې ماستري کوله ) موافقه وکړه .

او کتاب یې ددواړو استاذانو ترمنځ داسې تقسیم کړ چې :

دکتاب داول نه تر ۲۵ باب پورې تحقیق یې دکتورادریس محمد علي ته وسپارلو.

اوددویم قسم تحقیق یې دکتاب ۲۶ باب نه تر آخره پورې دکتور محمد خالد اسطنبولي ته وسپارلو ، دواړو استاذانو خپل کار فاکولتې ته حواله کړ اوپه ۱۴۰۵ هجري کال کې یې دماستري سند ترلاسه کړه او بیایې کتاب چاپ ته وړاندې او دچاپولومسئولیت په بیروت کې دار البشائر الاسلامیه ، مطبعې ترسره کړو، کتاب

لپاره مقدمه دکتاب نشر کونکي استاذ رمزي سعد الدين دمشقي وليکلو اودکتاب دچاپولو لپاره دنوموړي مطبعي کوشش پکې بيان کړی دی او بيا دغه کتاب استاذ دکتور عبدالعزيز حميدي دامر القرى دپوهنتون ددعوت او اصول دين دفاکولتې رئيس خلکوته تقديم او معرفي کړ، دمولف ، دهغه دخيږونکو اودکتاب ستاينه يې وکړه .

داکتاب اول ځل لپاره ددار البشائر الاسلاميه لخوا په ۱۴۱۰_ ۱۹۹۰ کال کې چاپ کړی شو چې دوه جلدونه يې لرل او ټولې صفحې يې يو زر دوه سوه ديرش دی .
او دی دواړه استاذانو دکتاب ډير ښه بهترين خدمت کړيدی يعنې دکتور ادريس محمد علي اودکتور محمد خالد اسطنبولي چې دزياتو حديثونو تخريج يې کړی او په ډيرو باندې يې حکم هم کړيدی او دډيرو هغوکسانو نومونه چې پدې کتاب کې بيان شوي دهغوی پيژندګلوی هم کړيدی او هغه مراجع يې هم ښودلي دي چې موئلف شهيد ابن النحاس رحمه الله دهغو نه استفاده او اخذ کړيدی او پدې کتاب کې دبيان شوو ځينومسئلو تحقيق ، اودنصوصو ښه صحيح وضاحت يې هم کړيدی نو الله تعالى دی دغو دواړو ښاغلو ته جزاء او خير ورکړي.

دار البشائر الاسلاميه دغه کتاب ډير ښايسته او ښکلې طريقې سره چاپ کړی او خصوصي پاملرنه يې ورته کړيده ، الله تعالى دی ددی کارکنانو ته هم ښکلې بدله ورکړي .

اديبانو او لوستونکو هم دکتاب ډير زيات استقبال او پذيرائې کړی او پدې اعتبار سره چې دجهاد په موضوع او احکامو او فضائلو کې په ماضي او حال کې بهترين او غوره کتاب دی ډيره ګټه ترينه اخستې ده ، ماهم دچاپ کيدو څخه څو مياشتې وروسته فوراً يوه نسخه ځان سره وساتله او داتقريباًداتو کالونه زيات وړاندې خبره وه او بيا مې ښه په غور سره مطالعه کړ او ډيره زياته استفاده مې ورنه وکړه .

ليکن په بعضو مسئلو کې مې اوږدوالې وليد اوپه بعضو قصو او خوبونو کې مې استطراد وليد يعنې غير ضروري شيان ذکر شوي وو ، او بعضې حديثونه پکې داسې وو چې صحت يې نه درلود .

ددوارو ځيرونكو استاذانو په كلام كې اوږدوالې و . په رجالو باندې خبرې . په احاديثو اوپه حاشيه كې دسند په رجالو باندې حكم كوي اوپدې حاشيو كې بعضې دحديثو علمي سندي او اعتمادي فوائد داسې وو چې يو عام او عادي لوستونكې ته څه فايده يې نه وركوله ځكه چې ددينه يواځې ځيرونكي اوشرعي علم زده كونكو فايده اخستلې شوه اوبس . نوزما په خيال كتاب اختصار او تهذيب ته ضرورت درلود ، خصوصاً دا چې ددى مولف ابن النحاس پخپله هم ددى اوږدوالې محسوس كړى ونو ځكه يې پخپل ژوند كې مختصر كړى و او دده نه وروسته بعضو نورو علماو هم مختصر كړى ونو اته كاله وړاندې مې ددى دتهذيب كولو قصد وكړ ليكن همت راته ځواب راكړ او په نورو كارونو كې بوخت شوم ، دهمدى كال په پسرلي كې ماته يو دوه داسې معزز ورونه راغلل چې دهغوى غوښتنه ردكيدى نشوه او مانه يې ددى دتخليص غوښتنه وكړه ترڅو مسلمانان ترينه ګټه واخلي نو زما په زړه كې هغوى پتمه اراده راببيداره كړله او دكتاب تهذيب او تلخيص ته مې لاس پورې كړ او دچاپ شوې نسخې او ددوارو ځيرونكو استاذانو دكوښښ نه مې ګټه پورته كړه. دوى چې ددغه كتاب په تحقيق او تخريج كې څومره كوششونه كړيدي زه ددوى پور وړى يم .

محترم ورور الشيخ ابراهيم العلي حفظه الله پدې كتاب كى دبيان شويو احاديثوپه تخريج نظرثاني وكړ او دهغه ددغوكوششونونه مې هم ګټه پورته كړه او مشورې مې ترينه واخستې الله تعالى دې ورته نيكه جزاء وركړي .

# دمولف ( ليکوال ) پېژندنه

لقب يې محی الدين ابو زکريا . اونوم يې احمد بن ابراهيم بن محمد دی . شافعي مسلکی و ، لومړې په دمشق کی اوسيدو اوبيا په دمياط کې استوګن شو ، په ابن النحاس سره شهرت درلود .

داتمی هجري پيړی لـه علماو څخه دی چې دعمر زياته برخه يې په اتمی پيړی کې تير شوې او دنهمی پيړۍ په شرع کې وفات شويدی .

په کتابو کې چېرته هم دده دزيږيدو نيټه ندی ښودل شوې اونه دده دکورنۍ په باره کې څه معلومات بيان شوي او داهم چېرته نه دي ويل شوي چې ده ته ابن النحاس لقب څنګه ورکړې شو .

ابن النحاس په دمشق کې زيږدلې او همدلته يې دعلماو څخه علم حاصل کړی دی خوپه کتابوکې هغه علماء نه دي ښودل شوي چې دی يې شاګرد پاتې شوې دی څکه چې دده دعلمي او عملي ژوند په باره کې څه ندي ويل شوي .

خو دمشق کې په اتمه پيړۍ دلويو علماو يوه ډله موجوده وه چې مشهوريکې ابن تيميه ، ابن قيم الجوزي ، ابو الحجاج المزي ، شمس الدين ذهبي او حافظ ابن کثير و ، دابن النحاس په زمانه کې په مصر او شام باندې مماليکوحکومت کاوه چې مصر ته د صليبيانو خطره وه او شام ته دمغلو خطره وه .

او کله چې اتمه هجري پيړۍ په ختميدو شوه نو ابن النحاس ددمشق دهغو لويو علماو څخه و چې په ګوتو به ورته اشاره کيده .

ابن النحاس دحديث اود فقه عالم و اوپه نيکو کارونو ، امر بالمعروف او نهې عن المنکر او دبدعاتو او خرافاتو سره دمقابلې کولو زيات شوقي و همدارنګه دخلکو د تعليم ، تربيه ، راهنمايي ، نصيحت او دخير خواهي هم زيات حريص و .

ده به له شهرت نه ځان ساتلو ، د ګمنامي او عدم شهرت ژوند زيات خوښولو او ډير زيات عاجزي پکې و .

ابن النحاس (۸۰۳) هجري پورې په دمشق کې اوسیدو ، د علم ، تعلیم ، دعوت او نصیحت په کاروکې مشغول و ، پدې کال کې ډیر سخت دردونکې او بربادونکې حالت راغی ، دمغلو حاکم تیمور لنګ زیاتره ښارونه قبضه کړل حلب او حماة یې ونیول او دمشق ته یې مخه کړه او ترډیروخت پورې یې په محاصره کې وساتلو او بیا ور ننوتو او قبضه یې ورباندې وکړه ، ددمشق له خلکو سره یې هغه سلوک وکړ چې دویلو ندی ، دتیمور لنګ لښکرو په زرګونو سړي او ښځې قتل کړل ، دسړو او ښځو بې عزتي یې وکړه ، مالونه یې ټولوواخستل او ډیر سړي او ښځې یې له ځان سره قیدیان بوتلل ، کله چې له دمشق نه ووتل نو اور یې پکې بل کړو او چې څه کورونه ، مالونه او سامونو نه ترینه پاتې وو ټول یې وسوځول ، دمشق یې وران، ویجاړ ، سوځیدلې اوکنډرات پریښود چې نه پکې مال و اونه سړي ، نه کورنه او نه حیوانات .

(۸۰۳) هجري کال په دمشق باندې په ټول اسلامي تاریخ کې بدترین کال و اوپدې کال کې ددمشق نه ډیر خلک مصر ته لاړل چې پدیکې یو شمېر علماء او فقهاء هم شامل وو .

ابن النحاس هم په (۸۰۳) هـ کال له دمشق نه مصر ته سفر وکړ او څه زمانه په ( المنزلة ) ښار کې پاتې شو بیا " دمیاط " ښار ته لاړ او باقي عمر یې دلته تیر کړ تردې چې ۸۱۴ هـ کال کې شهید شو ، مصر دصلیبیانو له خطر سره مخ و هغوی به په مصر باندې بحري ډاکې اچولې خصوصاً دالدلتا په سیمه باندې ،په (۸۱۴) هـ کال صلیبیانو دمیاط ته نزدې د" الطنیه " په قریه باندې حمله وکړه اوددمیاط خلک له هغوی سره جګړې او مقابلې ته ووتل چې ددغو مجاهدینو سرخیل ابن النحاس رحمه الله و ، له صلیبیانو سره یې ډیر سخته جګړه وکړه او پدې جګړه کې په داسې حالت کې دشهادت اوچته مرتبه ترلاسه کړه چې مخامخ لګیدلې و نه په شا،

امام ابن حجر العسقلان په " ابناء الغمر بأبناء العمر" کې ددې جګړې په باره کې لیکي :

د(۸۱۴) هجري كال دربيع الثاني په مباشت د" جنوية " ( ددی نسبت په ايتاليا کې دجنوا ښار ته کيږي چې لدې ځای نه به صليبيان له مسلمانانو سره جنګ لپاره وتل) يوه ډله اسکندريه ته ورسيده اودلته يې جګړه وکړه ، ډير خلک يې قيديان کړل او ډير يې پکې ووژل ، بيا دغه "جنوية " " الطينة " ته لاړل او پدې کې هم ډيرې ښځې او ماشومان قيديان کړل اولويه جګړه پکی وشوه ، ددمياط خلک د" الطينة" دخلکو کومک او مرستې لپاره ووتل چې مشر يې محی الدين ابن النحاس رحمه الله و ، دی به هميشه دجهاد لپاره ددمياط په سنګر او مورچل کې پروت و ، نوموړی دلوی فضيلت خاوند ، او دجهاد په احوالو کې يو لوی کتاب يې ليکلی دی ، هغه په جګړه کې مخامخ ووژل شو... ))[1]

ټولوعلماو ته دابن النحاس فضيلت ، علم او جهاد ښه معلوم دی يعنې دهغه جهاد ته قانع دي ، امام ابن حجر دنوموړي په باره کې داسې وايي : او دی به تل جهاد لپاره ددمياط په سنګر او مورچل کې پروت و او ډير لوی فضيلت يې درلوده.

ابن العماد حنبلي وايي : هغه شيخ ، امام ، علامه او قدوه و.[2]

مورخ سخاوي دده په باره کې داسې وايي : ابن النحاس د فرائضو او حساب پر علومو ډير زيات پوهيدو ، دهندسې دحساب نتيجه په راويستو باندې پوره ورتيا څرګندوله ، لدينه پرته په فقه او په نورو فنونو باندې هم واقف و ، دنيکو کارونو په کولو کې زيات حرصناک و ، شهرت نه يې ډډه کولو او ګمنامي يې زيات خوښ و ، په خپلی پوهې باندې تکبر نه کولو بلکې چابه چې نه پيژندلو د امي ( نالوستی) ګمان به يې وربانديې کولو ، ډير ښايسته شکل او ګيره يې درلودله ، قديې لږ لنډ جسم اوباډي يې برابره وه ، زياتره وخت به په جهاد او سنګر کې و ، تردې چې شهيد شو .[3]

---

[1] ــ ابناء الغمر لابن حجر : ۱/ ۲٤، ۲٥.

[2] ــ شذرات الذهب لابن العماد ۷/ ۱۰٥،

[3] ــ الضؤ اللامع للسخاوي ۱/ ۲۰۳، ۲۰٤.

زرکلي دده په باره کې داسې وايي : احمد بن ابراهیم بن محمد ابو ذکریا محی الدین ، الدمشقي او بیا الدمیاطي چې په ابن النحاس مشهورو ، په فرائضو ( دمیراث په علم ) کې ماهر و ، مجاهد اودشافعي مذهب لـه فقهاو څخه و ، په دمشق کې زیږیدلی ، او دتیمور لنګ په وخت کې مصر ته کډه وکړه هلته په"المنزلة" نومي ځای کې اوسیدو ، په دمیاط کې به همیشه لپاره د جهاد په سنګر کی پروت و ان تردی چې دفرنګیانو سره په جنګ کې مخامخ شهید اوپه دمیاط کې خاوروته وسپارل شو ، نوموړي ډیر ښه کتابونه لیکلي دي.[1]

نو پدې وجه ابن النحاس رحمه الله دعلم ، عمل ، دعوت اوجهاد جمع کونکې او دټولو مجاهدینواو محافظینو په سرکې و ، الله تعالی دده ژوند په شهادت سره پوره کړ چې لـه ډیرې اوږدې زمانې نه یې آرزو درلودلـه اولـه الله تعالی څخه بـه یې دشهادت سوال کولو .

ابن النحاس رحمه الله خپل شاته یو څو ګټور کتابونه پریښي دي، مونږ پدې لنډ تعارف او پیژندګلوي کې دهغه ددریو چاپ شوي کتابونویادونه کوو .

۱ـ بیان المغنم فی الورد الاعظم : دا ابن النحاس لیکلې اوپه (۲٦) بـابونو یې تقسیم کړی دی اول یې فضل القران او فضل المعلمین دی .[2]

۲ـ تنبیه الغافلین عن اعمال المجاهدین وتحذیر السالکین من افعال المهالکین دی.

داکتاب یې دامر بالمعروف او نهي عن المنکر او مسلمانانو ته دګناهونو ، بدعاتو اولنه نافرمانیو څخه دویرولو په باره کې لیکلې دی . هغه ددی کتاب په مقدمه کې لیکي : " هرکله چې ماولیدل دامر بالمعروف او نهی عن المنکر رکن ډیر کمزری شوی او خلک ورنه ډیر لرې شوي دي ، دسنتو نښې اوعلامې ختمې شوي دي، او یواځې نوم یې پاتې شوې دی ..... چاهمت نه شو کولی چې دمنکر اوبدیوپه خلاف رد وکړي او پدې باندې څوک ثابت قدم نه شو پاتې کیدلې نو پدې وجه جرائم او

[1] ـ الاعلام للزرکلی : ۱/ ۸۷،

[2] ـ الاعلام للزرکلی : ۱/ ۸۷.

منکرات عام شوي وو خکه چې داسې څوک نه و چې دالله په دین کې دملامت کوونکې ملامتیا نه ونه ویریږي . نو ما اراده وکړه چې پدې باره کې یو څو پاڼې ولیکم ترڅو زما پشان ګناه ګارانو ته او زما غوندی په غفلت او نسیان کې پراته خلکوته نصیحت او خیر خواهي وګرځي "[1] داکتاب په ریاض کی دشیخ عبدالله بن محمد بن حمید رحمه الله له خوا په قلمي نسخه چاپ کړې شو دچاپ نګراني الشیخ صالح بن محمد لحیدان په غاړه و چې بعضې تعلیقات او تبصری ورباندی هم لیکلي دي ، الله تعالی دی په امام ، عالم، مجاهد ، مرابط ، داعي ، مصلح ، مبارز شهید ابن النحاس رحمه الله باندې رحمتونه ولیږي اودخپل دین او امت له طرفه غوره بدله او جزا ورکړي آمین .



[1]ـ مشارع الاشواق : مقدمة المحققين :۱/ ۱۲

# لـومـړی بـا ب
# له کفارو سره دجهاد دوجوب حـکم اوجهاد نه کوونکو لپاره وعـید

الله تبارک وتعالی فرمايي : ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ وَهُوَ كُرْهٌ لَكُمْ وَعَسَى أَنْ تَكْرَهُوا شَيْئًا وَهُوَ خَيْرٌ لَكُمْ وَعَسَى أَنْ تُحِبُّوا شَيْئًا وَهُوَ شَرٌّ لَكُمْ وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ﴾[البقرة٢١٦].

پرتاسې جنګ فرض کړای شوېدی. که څه هم تاسې يې نه خوښوئ اوشايد تاسې يوشی بدوګڼئ خو هغه به ستاسې لپاره غوره وي. اوشايد تاسې يوڅيز خوښ کړئ خوهغه به ستاسې لپاره بدوي. الله پاک ښه پوهيږي اوتاسې نه پوهيږئ .

الله تعالی فرمايي :

﴿ وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴾ [البقرة٢٤٤]

تاسې د الله په لاره کې جهاد وکړئ اوپوه شئ چې الله اورېدونکې او خبردار دی.

الله جل جلاله فرمايي :

﴿ وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لَفَسَدَتِ الْأَرْضُ وَلَكِنَّ اللَّهَ ذُو فَضْلٍ عَلَى الْعَالَمِينَ ﴾ [البقرة٢٥١] .

کـه الله پـاک دځينو خلکو مخه په ځينو نورو نه نيوای نو زمکه به لـه فساد څخه ډکه شوې وه. خو الله پاک په ګرد بشريت احسان کوونکې دی.

الله جل مجده فرمايي :

﴿ قَاتِلُوا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَلَا يُحَرِّمُونَ مَا حَرَّمَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَلَا يَدِينُونَ دِينَ الْحَقِّ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ حَتَّى يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَنْ يَدٍ وَهُمْ صَاغِرُونَ ﴾ [التوبة ۲۹] .

له هغو اهل کتابو سره وجنګیږئ چی په الله اود آخرت په ورځ ایمان نه راوړي او هغه څه حرام نه ګڼي چی الله اودهغه رسول حرام کړیدی اونه حق دین خپل دین مني. تر هغه چی پخپله جزیه ورکړي په داسی حال کې چې سپک او ذلیل وي .

الله تعالی فرمايي :

﴿ولولَا دَفْعُ اللَّهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لَهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَصَلَوَاتٌ وَمَسَاجِدُ يُذْكَرُ فِيهَا اسْمُ اللَّهِ كَثِيرًا وَلَيَنصُرَنَّ اللَّهُ مَنْ يَنصُرُهُ إِنَّ اللَّهَ لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ ﴾ .[ الحج٤٠ ].

که الله پاک دځینو خلکو په واسطه دنورو مخه نه نیوای نو دراهبانوچیله خانې ، دعیسویانو او یهودانو کلیساګانې او هغه جوماتونه به ټول نړول شوي وو چی دالله نوم پکی ډیر یادیږي او الله به خامخا دهغو کسانو ملاوتړي چی دهغه ددین ملا تړوي . بې له شکه الله ډیر توانا اوپه هرڅه برلاسی دی .

امام ابو عبدالله الحلیمي پخپل کتاب شعب الایمان کی ددغه پورتني آیت شریف په معنی کی وایي : چي الله پاک موږته داخبرراکړې که چیرته الله پاک دمؤمنانو په ذریعه مشرکان دفع نه کړي ، مؤمنان پرهغوی مسلط نه کړي ، له هغوی نه داسلام دفاع ونکړي ، دهغوی شان او شوکت مات نه کړي نو کفر او شرک به پرزمکه خور اوحق دین به له منځه لاړشي.

ددی نه وروسته داخبره ثابته شوه چی جهاد ددین دبقا او د دیندارو خلکو لپاره پخپلو عبادتونو کی دآزاد پاتې کیدو یواځنی لاره ده . کله چی دجهاد دامرتبه او مقام دی نو هغه ددی خبرې وړ دی چی هغه دی دایمان له ارکانونه یورکن وي ، نو

ځکه مومنانوته پکار دي چې پخپل ځان کې لـه حدنـه زيات دجهاد حرص او شوق پيداکړي.

اودالله تعالی فرمان دی:

﴿فَإِذا لَقِيتُمْ الَّذِينَ كَفَرُوا فَضَرْبَ الرِّقَابِ﴾ [محمد : ٤ ].

چې کله کفارو سره ستاسې مقابله وي نـو څټونـه يې ترې ووهئ لـه دغـو پورتنيو آيتونو نه پرته لـه مشرکانو او ددين لـه دښمنانو سره دقتال په باره کی نور هم ګڼ شميرآيتونه موجود دي . او کـوم حديـثونه چې دجهـاد پـه بـاره کی راغلي دي، لـه هغونه يو څو په لاندی ډول وړاندی کيږي:

عَنْ ابي هريرةَ ﷺ قالَ : قالَ رَسُوْلُ اللهِ صلى الله عليه وسلم:

((امـرتُ انْ أقاتلَ الناسَ ، حتَّى يَقُوْلُوا : لَا اِلَهَ الَّاالله . فإذا قالُوهَا عَصمُوامِنِّي دماءَهم،وأموالَهُم إلّابحقها ،وَحسابُهم على الله ..... )) [1].

له ابي هريره ﷺ نه روايت دی هغه وايي چه رسول الله ﷺ ووېل :

ماته ددی خبرې امر شويدی چی لـه کفاروسره ترهغه وجنګيږم ترڅو چی هغوی دلااله الله دکلمې اقـرار نـه وي کړی . کله چی هغوی ددې اقرار وکړ. نو هغوی لـه مانه خپل مـال او ځـان محفوظ کړل پرته له شرعي حق نه ، دهغوی حساب الله ته حواله دی دغه حديث صحاح سته، او نـورو سننو او مسـانيدو داصـحابو لـه يـوې ډلـې نـه روايت کړيدې.

عـن بشـير بـن الخصاصـية رضیالله عنه ((قال : اتيتُ رسولَ الله صلى الله عليه وسلم لِأُبَايعَهُ على الإسلامِ . فَاشترطَ عَلَيَّ : تَشْهَدُ ان لااله الا الله ،وَانَّ

[1] ـ (اخرجه البخاري برقم ٦٩٢٤، ومسلم برقم : ٣٣ . )

محمداًعبدهُ ورسوله ، وتُصَلّي الخمسَ ، وتصُومُ رمضانَ ، وتؤدي الزّكاة ، وتَحِجُّ البيتَ ، وتُجاهِدُ في سبيل الله ))

قلتُ : يارسولَ الله : أمّا اثنتان فلا اطيقهما : الزّكاةُ ، لانه ليس لي الا عشر ذودٍ ، هُنَّ رِسْلُ أهْلِيْ وَحُمُولَتهُمْ.

وأمّا الجهاد فانهم يزعمونَ أنَّه من وَلّى فَقَدْ باءَ بِغضبٍ مِنَ اللهِ ، واخافُ إنْ حَضَرَنِيْ قتال كرهتُ الموتَ وخَشَعْت نفسي.فَقَبَضَ رسول الله صلى الله عليه وسلم يَدَهُ ، ثُمَّ حرَّكها ، ثم قال : لاصَدَقَةَ ، وَلا جَهَادَ ، فبماذا تدخُلُ الجنَّة ؟ قُلْتُ : يارسولَ الله : أُبَا يعُكَ ، فَبَايَعَنِىْ عَلَيهِنَّ كُلِّهِنَّ ))[1]

لـه بشير بن الخصاصية ﷺ نه روايت دى هغه وايي : زه رسول الله ﷺ ته پدې غرض راغلم چې داسلام بيعت ورسره وکړم . هغه ﷺ په ماباندې داشرط كيښود چې زه په لا الـه الا الله وان محمدا عبده ورسوله په كـلمه باندې ګواهي وركوم . پنځه لمونځونه به اداكوم، زكات به وركوم ، دبيت الله شريف حج به كوم اودالله تعالى په لاره كى به جهاد كوم.

ماوويل : يارسول الله ! پدې كې د دوو كارونو وس نه لرم چې يو پكې زكات دى. ځكه چې لـه ماسره يواځې لس اوښې دي هغه يواځې زمادكورنۍ دسورلۍ اوپيو لپاره په كار راځي.

دويم پكې جهاد دى ، ددې په اړه خلک وايي چې څوک لـه جنګ نه وتښتي هغه دالله په غضب كې اخته كيږي . زه ويريږم هسې نه چې په جنګ كى شريک شم او دمرګ

---

[1] - اخرجه البيهقي في سنن الكبرى : ٩/ ٢٠ . والحاكم في المستدرك ٢/ ٨٠ وصححه وافقه الذهبي.

لـه ويرې نـه وتښتم. هغـه وايي چې کله رسول الله صلی علیه وسلم زما دغه خبرې واوريدلې نوخپـل لاس رانـه بېرته لرې کړ او ويې ښندلو ، بيا يې راته وفرمايل : داته چې نه زکات ورکولې شی او نه هم جهاد کولې شي نو جنت ته به څنګه داخل شې ؟.

ماورتـه وويـل : ای دالله رسوله ! زه لـه تاسره پدې ټولو شرطونو بيعت کوم ، هغه ﷺ لاس اوږد کړ او ماورسره پردغوټولو شرطونو بيعت وکړ.

(( عَـنْ سَلَمَةَ بنِ نفيلٍ رضى اله عنه قال : (( بينما انا جالِسٌ مَعَ رسُولِ الله صـلى الله عـليه وسـلم إذا دَخَـلَ رَجُـلٌ فقَـال : يارسُولَ الله : إنَّ الْخَيْلَ قَدْ سُيِّبَتْ ، وَوُضِـعَ السِّلاحُ ، وَقَـدْ زَعَـمَ اقـوامٌ اَنَّـهُ لا قتالَ ، واَنَّهُ قد وَضعتِ الحربُ اوزارَهَا!

فقـال رسـول الله صـلى الله عـليه وسـلم : كَذَبُوا ! الأن جاءَ القتال ! وَاِنَّه لا تـزالُ اُمَّـةٍ مِـن اُمَّتِي يُقاتِلُونَ في سبيلِ الله ،لايَضرُّهُمْ مَنْ خَالَفَهُمْ ، يُزِيْغُ اللهُ بِهِـمْ قُـلوبَ اقـوام ، لِيَـرزُقَهُم مـنهم ، يقاتلون حتى تقوم الساعة . ولا يزالُ الخيرُ معقـوداً في نواصـي الخيـلِ الى يومَ القيامَةِ . تَضَـعُ الـحَرْبُ اوزارَهَا ، حِينَ يخرج يلجوج وملجوج )) [١].

لـه سلمه بـن نفيـل ﷺ نه روايت دی، هغه وايي چې :مونږ لـه رسول الله ﷺ سره ناست وو چې يو سړی راغی او ويې ويـل : ای دالله رسوله ! اسونه پرېښودې شول او وسله پرزمکه کېښودلې شوه ، خينې خلکو داګمان کړيدی چې نور جنګ ختم شويدې.

نبي کريم ﷺ وفرمايل : هغوی درواغ وايي ، جهاد خواوس شروع شو . زما دامت يوه ډله بـه دتل لـه پاره دالله پـه لاره کې جهاد کـوي او ددوی مخالفين بـه دوی تـه هيڅ نقصان نشي رسولی. الله تعـالى بـه ددوی پـه خاطر دځـه خلکو زړونـه کـږه وي ترڅو

[١]- اخرجه النسائي : ٦/ ٢١٤. واحمد في المسند : ٤/ ١٠٤ واسناده صحيح.

دهغوى په ذريعه مجاهدينو ته رزق وركړي .( يعني هغه خلک به له ايمان نه محروم وي او زړونه به يې له دين څخه كاږه وي مجاهدين دهغوى پرضد جګړه كوي او له هغوى څخه به د غنيمت مالونه نيسي چې په همدې ډول هغوى الله جل جلاله دمجاهدينو لپاره درزق ذريعه ګرزولې دى ) دوى به دقيامت ترورځې پورې جهاد كوي.

داسونو په وچوليو كې دقيامت تر ورځې پورې هميشه لپاره خير ايښودل شويدي ترهغه به جهاد نه بنديږي ترڅو چې ياجوج او ماجوج نه وي راوتلي.

((عــن انسٍ بـن مــالك ﷺ ، عــن رسولِ الله صلى الله عليه وسلم قالَ :
((جاهدوا المشركينَ بِأموالِكُمْ وانفسكم والسنتكم[1] )).

انس بن مالک ﷺ لـه رسول الله ﷺ نه روايت كوي چې هغه ﷺ وفرمايل : له مشركانو سره پخپلو مالونو ځانونو او ژبو سره جهاد وكړئ.

له كفارو سره دژبې جهاد دادې چې هغوى ته داسې خبرې وكړې شي چې پرهغوى بدې لګيږي او
سختې ورباندې تماميږي لكه سختې خبرې ، هجوه او ددې پشان نورې خبرې اترې.

(( عَن حذيفـة بن اليمان رضى الله عنهما عن النبي صلى الله عليه وسلم قالَ :
(( الاسلام ثمانيـةُ اسـهم : الاسـلامُ سهمٌ ، والصَّلاةُ سهم ، والزكاةُ سهم ، والحـجُّ سـهم ، والجهادُ سهم ، وصومُ رمضانَ سهم ، والامرُ بالمعروفِ سهمٌ ، والنَّهىُ عن المنكرِ سهم ، وقد خابَ من لاسهم له ))[2].

---

[1] - اخرجه ابو داود : ٣/ ٢٢ والنسائي : ٦/ ٧ والحاكم : ٢/ ٨١ . والحديث صحيح.

[2] -اخرجه ابن ابي شيبة في المصنف : ٥/ ٣٥٢. وعبد الرزاق في المصنف : ٥/ ١٧٣_ ١٧٤ والحديث صحيح.

**له حذيفه بن اليمان ﷺ نه روايت دی او هغه له رسول الله ﷺ نه روايت کوي چی هغه ﷺ وفرمايل :**

**د اسلام اته برخې دي . اسلام يې يوه برخه ده ، لمونځ يې بله برخه ده ، زکات يې بله برخه ده ، حج يې بله برخه ده ، جهاد يې بله برخه ده ، درمضان روژې يې بله برخه ده ، په معروفو امرکول يې بله برخه ده او له بديو نه منع کول يې بله برخه ده ، اوپه تحقيق سره هغه څوک هلاک شو چی دهغه نېاره هيڅ برخه نه وي.**

(( روى الترمذي عَنْ الحارث بن الحارث الاشعريّ ﷺ اَنَّ رسولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم قالَ : بَعْدَ ان ذَكَرَ مابَلَّغَ يحيى بن زكرياعليهُمَا السلام بني اسرائل من الاوامِرِ الخمسة .(( .... وانا آمركم بخمس ، امرني اللهُ بهن: السَّمْعِ ، والطَّاعَةِ ، والجهادِ ، والهجرةِ ، والجماعةِ... فَاِنَّ مَنْ فَارَقَ الجماعَةَ قيدَ شبر ، فَقَدْ خلع رِبْقَةَ الاسلام من عنقه ، اِلَّا ان يُراجعَ ))[1] .

**له حارث بن الحارث الاشعري ﷺ روايت دی چی محمد ﷺ لومړی دهغوی پنځو کارونو يادونه وکړه چی يحی بن زکريا عليهما السلام بني اسرائيلو ته بيان کړي وو. بيا يې وفرمايل : زه هم تاسو ته دهغو پنځو کارونو حکم کوم چی الله تعالی ماته دهغوی حکم کړی دی . يو سمع ( دامير خبره اوريدل اوهغې ته غوږ کيښودل ) اطاعت : ( دامير خبره منل ) ، جهادکول، هجرت کول ، جماعت ( دمسلمانانو له ټولی سره پاتې کيدل ). څوک چی له خپل جماعت ( دمسلمانانوله ډلې ) نه ديو لو يشت هومره هم لرې شو نوهغه داسلام يغ له خپل څټ نه لرې کړ مګر داچې بيرته راوګرځي.**

[1]- اخرجه الترمذي ٤/ ٢٢٥ _ ٢٢٢٦ والحديث صحيح.

((عـن عـبدالله بـن عـباسٍ ﷺ قال : قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لا هجرةَ .بَعْدَ الفتحِ ، ولكِنَّ جِهَادٌ ونِيَّةٌ ، واذا استُنْفِرتُمْ فانفروا.[1] )).

له عبدالله بن عباس ﷺ نه روايت دی، چی رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : دمكې له فتحې نه وروسته ( مكې نه مدينې ته ) هجرت نشته ليكن جهاد او دجهاد نيت لا پخپل ځای پاتې دی دمكې له فتحې نه وروسته هجرت نشته ددی مطلب دادی دمكې له فتحی نه وروسته اوس هغه خاص هجرت نه ده پاتې چې دمكې نه مدينې ته يې كول فرض و ځكه چې اوس خومكه دار الاسلام ګرځيدلې له دی څخه ددنيا دنورو هجرتونونفي نه ثابتيږي هغه خو ترقيامته پورې دحالاتومطابق دوام لري هجرت دجهاد بنسټ اوېره ده نو ځكه پرمسلمانانو باندې داهجرت له مكې نه داسې فرضيت ته رسيدلې وو چې له دې پرته دچاايمان هم دقبليدو وړ نه وو.

كله چې تاسو ته دجهاد لپاره دوتلو حكم وشي نو له خپلو كورونو څخه راووځئ !!.

لدی حديث نه معلومه شوه چې كله دمسلمانانو پاچايو څوک دجهاد لپاره وګوماري نو پرهغه جهاد فرض عين ګرځي ځكه چې په حديث شريف كې دا الفاظ راغلي دي چې كله له تاسو نه دجهاد لپاره دراوتلو غوښتنه وشي نو له خپلو كورونو نه راووځئ. !!

(( عَـنْ ابـي قتادة الانصاري ﷺ ، قالَ : (( خَطَبَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم فَذَكَرَ الجهادَ ، فَلَمْ يُفضِّلْ عَلَيهِ شيْئاً الا المكتوبة )) [2].

له ابي قتاده الانصاري ﷺ نه روايت دی هغه وايي چې رسول الله ﷺ يوه خطبه وركړه، په هغې كی يې دجهاد يادونه وكړه اوپه هغه باندې يې له فرضي لمونځونو نه پرته بل هيڅ شي ته فضيلت ورنكړ.

---

[1] - اخرجه البخاري برقم : ۲۷۸۳. ومسلم برقم : ۱۳۵۳.

[2] - اخرجه البيهقي في السنن الكبرى : ۹/ ٤٨ والدارمي في سننه : ۲/ ۲۰۷ والحديث صحيح كتاب الجهاد لابن المبارك ۱/ ۱۱۹

## د جهاد د په اړه د اصحابو کرامواو تابعينو افعال او اقوال :

حاکم او ابن جرير الطبري لـه ابي راشد الحبراني نه روايت کړيدی هغه وايي چی ما درسول الله صلى الله عليه وسلم لـه قهرمان اس سوار مقداد بن الاسود ﷺ سره ليدنه وشوه هغه په حمص کی ديو صراف په ورکوټي غونډۍ بکسه ......... باندې ناست و . هغه بوډا شوی واو غوښې يې دپاړسوب لـه وجهې ځوړندې شوې وې، خو دغزا اراده يې درلوده . ما هغه ته وويل : الله پاک ته معذورکړی يې ! هغه راته وويل : دبعوث سوره ددی باعث ګرځيدلی دی چی زه جهاد ته لاړشم ځکه چه پدې کې الله تعالى فرمايي:

﴿انفِرُوا خِفَافًا وَثِقَالًا وَجَاهِدُوا بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ [التوبة٤١].

ووځئ تاسې دجهاد په لاره کی سپک ياست که درانه پخپلو مالونو او ځانونو سره دا ستاسې لپاره غوره دی که تاسې پوهيږئ.

او سوره توبه د" بعوث " ( په باء باندې زور اوزير دواړه ويلې شي ) سوره په نوم نومول شوی دی ځکه چې ددی موضوع جهاد او دشمن په خلاف دمجاهدينو دګروپونو ليږل دي.

اوپه يو روايت کی د ( البحوث ) په نوم نومول شويدی . يعنې دا دمنافقينو په باره کې بحث کوي او دهغوی لـه کړنو او اعمالوځخه پرده اوچتوي هغوی رسواکوي او شرموي يې.

ابن المبارک په کتاب الجهاد کی لـه عطيه بن ابي عطيه نه روايت کړيدی هغه وايي : چې مادقادسيې دجنګ په ورځ عبدالله ابن ام مکتوم ﷺ وليد هغه اوږده زغره اغوستې وه او دجنګ په مېدان کې دلښکر دصفونو ترمنځ يې راښکله او ګرځيدو .[1] عبدالله بن ام مکتوم ﷺ په سترګو ړوند معذوراصحابي وليکن هغه به جهاد کاو او

[1]_ كتاب الجهاد لابن المبارك . ١/ ١١٩

دقادسیه په جنګ کی یې هم ګډون وکړ. په دې جنګ کې بیرغ دهمده په لاس کی و، او دشهادت اوچته مرتبه یې ترلاسه کړه.

ابن المبارک له انس بن مالک ﷺ نه روایت کړیدی چی ابا طلحة الانصاري ﷺ ( دا آیت شریف : ﴿ انفِرُوا خِفَافًا وَثِقَالًا وَجَاهِدُوا بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ﴾ [التوبة٤١]. ولوست او ویې ویل : الله تعالی مونږ ټولو بوډاګانو او ځوانانو ته جهاد ته دوتلو امر کړی دی . ماته دجهاد سامان برابر کړئ هغه ته دهغه زامنووېل چی الله دی ) پرتا رحم کړی دی . تا دمحمد ﷺ ، ابو بکر صدیق رضی‌الله عنه او عمر ﷺ په زمانه کې جهاد کړیدی . اوس مونږ ستا پرځای جهاد کوو . ته معذور یې او تاته دتللو هیڅ حاجت نشته . هغه دخپلو زامنو خبروته هیڅ پاملرنه ونکړه او جهاد ته ووت ، په سمندري جهاد کې یې برخه واخسته خو په لاره کې په کشتئ کې پخپل مرګ وفات شو. دهغه دخښولولپاره دجزیرې لټه وکړه شوه مګر( ٧ ) اووه ورځې وروسته یوه جزیره پیدا شوه ، دهغه جسد پدی اووه ورځو کی بالکل نه و خراب شوی او ترتازه و.[1] ابن جریر الطبري پخپل تفسیر کی له ابن شهاب الزهري نه روایت کړیدی هغه وایي چی: سعید بن المسیب ﷺ غزاته ولاړ او دهغه یوه سترګه ړنده وه . چا ورته وویل ته خو مریض ( ناروغه) یې هغه ﷺ ورته وویل : بیشکه الله تعالی چې چاته جهاد کول آسان اوکه ګران وي ټولو ته جهاد ته دوتلو حکم کړیدی. که چېرته زه له کفارو سره دجنګ کولو طاقت نلرم نو دمسلمانانو شمیره خوزیاتولې شم او دهغوی دسامان ساتنه او پیره خو کولې شم.[2]

ابن ابي شیبه او ابن جریر له حسن بصري رحمه الله نه دالله تعالی ددې قول: (إنفروا خِفافاً وثِقالاً.....) په تفسیر کی فرمایي چی : له دېنه بوډاګان او ځوانان مراد دي .[3] او منصور بن زاذان وایي چی لدې آیت نه په کارونو کی بوخت او فارغ

---

[1]_ کتاب الجهاد لابن المبارک : ١/ ١١٦ ، والمستدرك للحاكم : ٢/ ١٠٤.

[2]_ تفسیر ابن جریر الطبري ١٠/ ٩٨

[3]_ المصنف لابن ابي شیبة ٥/ ٣٠٦ وتفسیر الطبري : ١٠/ ٨٥

خلک مراد دي یعنې دواړه ډوله خلکو ته جهاد ته دوتلوامر شوی دی ،[1] او ځینو ویلي دي چې لـه ثقیل نه مراد هغه خلک دي چې مال او زمکې لري او جهاد ته ورتګ بدګڼي او لـه ( خفیف نـه مراد هغه خلک دي چې څه مال او دولت نه لري ، ځینې نورو علماو ویلي دي چې لـه ثقیل نه مراد بزدل او لـه حفیف نـه مراد بهادرکسان دي.

امام قرطبي پخپل تفسیر کې وایي چې په دې کې صحیح خبره داده چې په دې آیت کې الله تعالی ټولو خلکو ته امر کړیدی چې دالله په لاره کې دجهاد لـه پاره ووځي . برابره خبره ده کـه وتل ورته آسان وي یا ګران .ابن جریر طبري پخپل تفسیر کې ویلي دي چې:

ځینو مجاهدینو دشام په فتحه کې یو مجاهد ولید چې دډیر بوډاوالي لـه کبله یې وریځې یې دهغه په سترګو ځوړندې شوې وې.

یو کس ورته وویل : اې تره ! ته خو الله پاک لـه جهاد نه معذور کړې یې ولې جهاد ته راغلی یې ؟ هغه ورته وویل : ای وراره! بیشکه الله تعالی ځوانانو او بوډاګانوته جهاد ته دوتلو حکم کړیدی .[2] امام عبدالرزاق پخپل کتاب کې لـه مکحول رحمه الله نه روایت کوي چې هغه رحمه الله به قبلې ته خپل مخ وګرځاووا و بیابه یې لس قسمونه خوړل چې ای مسلمانانو! په تاسو باندې جهاد فرض دی .

بیا به یې ویل : که تاسي غواړئ نو زه لدېنه هم زیات قسمونه خورم[3] . ترڅو ستاسې وربانديې اطمنان او باور وشي .



---

[1]_ المصنف لابن ابي شيبة ٥/ ٣٠٦ وتفسير الطبري ١٠/ ٩٧.

[2]_ تفسير الطبري : ١٠/ ٩٨

[3]_ المصنف لعبدالرزاق : ٥/ ١٧٤

# فصل

## ا یا جهاد کفا یي فرض دی اوکه عین فرض ؟

په دې خبره ځان پوه کړئ چې دټولو علماو په اتفاق له کفارو سره دهغوی په وطن کې جهاد کول کفايي فرض دی خو ابن المسيب او ابن شبرمه وايي چې فر ض عين دی.

دفرض کفايي معنې داده چې کله په کافي اندازه خلک دجهاد له پاره ووځي نو نور نه ګنهګارېږي او که ټولوجهاد پرېښود نو ټول ګنهګارېږي.

راجحه خبره داده چې ( دکومو خلکو عذرالله جل جلاله ته مقبول دی او ناروغ دي هغوی نه ګنهګارېږي.

په کال کې باید لږ ترلږه يو ځل جهاد وکړې شي او که څوک لدینه زیات وکړي نوداورته غوره دی . اوپه دې کې هیڅ اختلاف نه دی کړې چې دمسلمان لپاره روانديچې پوره يو کال له جهاد نه لرې ووسي خو دضرورت په وخت کې ورته روادي ، د مثال په ډول مسلمانان کمزوري وي یا دښمنان ډير وي یاددې وېره وي چې که له کفارو سره دهغوی په وطن کې جهاد وکړی‌شي نو مسلمانانو ته به زیات ځانی تاوان ورسیږي یا ورسره دجهاد لپاره کافي تو ښه او سامان نه وي یاداسونو واښه ونلري ، همدغسې نور جنګي او حربي ضرورتونه هم درواخله . او که چېرته هرڅه پوره وي او هیڅ عذر ونلري نو بیا پوره يو کال له جهاد نه ځان لري ساتل رواندی. پدې خبرباندې امام شافعي رحمه الله اودهغه ملګرو تصريح کړې

امام الحرمين جوويني رحمه الله وايي : چې زما په نزد غوره مسلک داصولینو دی ، هغوی وايي چې جهاد يو قهري دعوت دی نوپه همدې خاطر ترڅو چې شوني وي ددې جاري ساتل پکار دي ترڅو دزمکې په سر له مسلمان او ذلیل کافر نه پرته بل هیڅوک پاتې نشي . جهاد دی په کال کې يو ځل خاص نکړې شي بلکې که ممکن وي نولدينه زيات دی جاري وساتل شي.

داچې فقهاوو په کال کې یوځل دجهاد دکولو خبره کړېده هغه یې په غالب عادت باندې حمل کړېدې. ځکه چې دجهاد له پاره دسامان تیارول او دمجاهدینو برابرول په کال کې یو ځل ایله ترسره کیږي.[۱] ابن قدامه په المغني کې ویلي دي چې په کال کې لږ ترلږه باید یو ځل جهاد وکړې شي خو که چېرته لدینه زیات دجهاد ضرورت مخې ته راشي نو بیا واجب دی چې مسلمانان جهاد ته ووځي ځکه چې دا فرض کفایه دی او فرض کفایه هله واجب کیږي چې ضرورت او حاجت یې پیداشي.[۲]

امام قرطبي پخپل تفسیر کې ویلي دي چې دمسلمانانو په امام باندې فرض دي چې هر کال ددښمن په خلاف دجنګیدو لپاره دمجاهدینو یوه ډله ولیږي او پخپله دې هم ورسره ولاړشي ، که چیرې پخپله نشو تللی نو خپل یو باوري اواعتباري سړې دې ورسره ولیږي . هغوی دی داسلام په لور وبولي ترڅوپه زمکې کې ظلم فساد ختم شي دالله جل جلاله دین سرلوړې شي او هغوی مسلمانان شي او یادذلت په حال کې پخپلو لاسومسلمانانو ته دجزیې ورکولو لپاره تیار شي.[۳] په ماشوم ، لیوني ، ښځه او پداسې ناروغ سړي باندې چې دجهاد کولو توان نه لري جهاد فرض نه دې . خو که په یوه سترګه ړوندوي یاپه سر او یا غاښ باندې یې درد وي ، یایی کمه تبه وي او یاهم لږ غوندې ګوډ وي نو بیا وربان‌دې جهاد فرض دی .[۴]

دټولو علماو په اتفاق او اجماع سره ترڅو پورې چې مور او پلار خپل اولاد ته جهاد ته دتللو اجازه نه وي کړې جهاد ته تلل ورته جائز نه دي همدغه حکم دنیکه او نیا هم دی چې کله مور اوپلار نه وي.

که چېرته مور او پلار خپل زوی ته جهاد ته دتللو اجازه ورکړې وي مګر بیا دواړه یایو ترینه له خپلې خبرې نه راوګرځي نو په زوی باندې واجب دي چې دخپل مور او پلار خبره ومني او جهاد ته لاړ نشي. داپه هغه صورت کې چې دجنګ په سنګر کې

---

۱- رزضة الطالبین للنووي : ۱۰/ ۲۰۹

۲_ المغني لابن قدامه : ۸/ ۳٤۸

۳_ الجامع لاحکام القران للقرطبي : ۸/ ۱۵۲

٤_ المغني لابن قدامة : ۸/ ۳٤۷ _ ۳٤۸

لانه وي داخل شوي خوکه دجنګ بږ میدان کې داخل شوي وي اویا خوداخل شوي نه وي نو که چېرته بیرته خپل مور او پلار ته ورځي نو دمسلمانانو په زړونو کې دشکست احساس پیداکیږي یادوي پخپل ځان او مال باندې ویریږي ( چې څوک به په لاره کې رانه شوکه وکړي ) نو بیا دې بېرته نه ورځي. که چېرته مور او پلار لـه خپلې اجازې نه په هغه وخت کې رجوع وکړي چې زوی یې دجنګ په میدان کې داخل شوې وي اوجنګ پیل شوې وي نو زوی لپاره بېرته ورتګ حرام دی .[1]

دقرضدار سړي په باره کې دعلماو ترمنځ اختلاف دی چې ایا هغه جهاد ته تللې شي او که نه ؟ امام مالک رحمه الله علیه وايي چې که چېرته یو قرضدار دخپل قرض داداکولو وس او توان نه لري نو هغه لپاره جهاد ته تلل جائز دي

امام اوزاعي دپور ورکوونکي لـه اجازې نه پرته جهاد ته دتللو اجازه ورکړېده ؟ مګر امام شافعي رحمه الله علیه وايي چې پوره وړي ته ترهغه جهادته تلل جائز نه دي ترڅو پورې چې پور ورکوونکې ورتـه اجازه نه وي ورکړې برابره خبره ده پور ورکوونکې مسلمان وي یا کافر.[2]

کوم خلک چې پور وړي سړي ته جهاد ته دتللو اجازه ورکوي هغوی دخپل دلیل لپاره دعبدالله بن حرام الانصاري ﷺ مثال وړاندې کوي چې هغه په داسې حال کې د احد غزا ته تللی وو چې پور وړې وو، رسول الله صلی علیه وسلم هم دهغه لـه قرضداري نه خبرو. مګر جهاد ته له تللو نه یې نه و منع کړی . هغه ﷺ داحد په غزا کې شهید شو او دهغه پور دهغه زوی جابر ﷺ اداکړ .[3] کوم پور وړې چې جهاد ته ځي هغه ته پکار دي چې دومره مال شاته پرېږدي چې که هغه شهید شي نو زوی یې دهغه پور اداکړي لکه چې جابر ﷺ دخپل پلار قرض اداکړ.

امام احمد رحمه الله علیه وايي : که چېرته کوم قرضدار سړی دومره مال شاته پرېږدي چې دهغه قرض وربانديې اداکړې شي نو دهغه لپاره جهاد ته تلل جائز دي

---

[1]ـ المغني لابن قدامة ۸/ ۳۵۸ـ ۳۵۹

[2]ـ الأم للشافعي : ٤/ ١٦٣

[3]ـ اخرج قصة عبدالله بن حرام البخاري في صحيح برقم : ۲۳۹۵.

اګر که پور ورکوونکي ورته اجازه ورنکړي هغه رحمه الله علیه په دلیل کې دعبدالله بن حرام ﷺ کیسه وړاندې کړیده .[1]

کوم جهاد چې کفایي فرض وي په هغه کې قرضدار او پور وړې سړي ته داشرط دی چې یواځې په هغه وخت کې جهاد ته لاړشي چې دائن او پور ورکوونکې سړې ورته اجازه ورکړي . همداشان بچې ته دموراوپلارنه داجازې اخستلوشرط هم په دغه فرض کفایي جهاد کې ده.

دمور او پلار او دپور ورکوونکې سړي داجازې شرط په هغه صورت کې ساقطیږي چې کافران دمسلمانانو په وطن باندې یرغل وکړي او یاهم په لرې ځای کی کفارو دمسلمانو په وطن باندې قبضه کړې وي خو دهغه ځای دمسلمانانو تعداد له هغوی نه کم وي ، نوپدې صورت کې جهاد په هرمسلمان ښځې نر فرض عین ګرځي . غلام دخپل بادار ، ښځه ( که په کې ددفاع کولو توان اوقوت وي ) دی دخپل خاوند او زوې دې دخپل مور او پلار قرضداردی دپور ورکوونکي له اجازې نه پرته جهادته ووځي . داد امام مالک ، ابي حنیفه او احمد بن حنبل رحمة الله علیهم مذهب دی .[2] که چېرته کفارو دمسلمانانو په کور کلي باندې ناڅاپي حمله وکړه او هغه ځای یې دخپلې ولکې لاندې راووست او مسلمانانو نشو کولای چې دهغوی دمقابلې لپاره راغونډ شي اوپه ډلیزه ډول ورسره وجنګیږي نو پرهغوی فرض دی چې جلا جلا دخپل وس په مطابق ورسره وجنګیږي .

که چېرته یو مسلمان پدې پوه شي چې که زه کافروته تسلیم شم نو هغوی ماوژني نود هغه لپاره ترهغه وخته پورې ترممکنه حده پورې جنګیدل پکار دي اودځان دفاع کول پرې واجب دي ترڅو چې شهید شوې نه وي.

پدې کې ، آزاد ، غلام ، سړي ، ښځې ، ړوند ، ګوډ او ناروغ ټول برابر دي.

---

[1]ـ المغني لابن قدامه : ۸/ ۳٦۰ ـ ۳٦۱.

[2]ـ روضة الطالبین : ۱۰/ ۲۱٤. والمغني لابن قدامة ۸/ ۳٦٤.

که هغوی ته دامعلومه شي چې تسليمي په صورت کې کافران هغوی نه وژني نو هغه ته داجائزدي چې ورته تسليم شي اوبندي خانې ته ځان اماده کړي ځو جنګيدل ورسره افضل او غوره دی ځکه چې که ووژل شي نو له عزت نه ډکه دشهادت مرتبه به ترلاسه کړي.

که چېرته مسلمانه ښځه پوه شي چې کافروته دتسليمي په صورت کې دهغې په عزت او آبرو باندې تيری کيږي نو پرهغې دخپل ځان دفاع واجبه ده اګر که پکې شهيده شي . ځکه کومه ښځه چې دزنا لپاره مجبوره کړې شي نو هغې ته دانه دي روا چې دخپل ځان د خلاصون په خاطر ورته تسليمه شي بلکې هغی باندې واجب دي چې جنګ ورسره وکړي ځکه چې لـه بې عزتي نه دشهادت مرګ ورته ډير ښه دی . همدغه شان هغه ښکلي هلکان دې هم وجنګيږي چې دتسليمي په صورت کې کافران دهغو پرعزت لوبې کوي. هغوی بايد دخپل عزت او آبرو ددفاع لپاره دژوند تر آخري سلګۍ پورې جنګ ته ادامه ورکړي.

کله چې دشمن دمسلمانانو په يوه کلي ورننوزي نو دهغه ځای شاوخوا په نورو مسلمانانو باندې دهغوی مدد او مرسته کول واجب دي . که چېرته دمسلمانانو په خواکې کافرانو حمله وکړه او هغوی ترينه دنن سبا ، په حساب د ۸۰ کيلو متره په فاصله کې وي نو په دوی باندې دکافرانو په خلاف جنګيدل بالکل داسې فرض عين ګرځي لکه چې پخپل کور کلي باندې دحملې په صورت کې وربانديې جنګيدل فرض عين دی.

امام ماوردي رحمه الله عليه ددې خبرې (چې پداسې حالت کې پر هغوی جهاد کول فرض عين دی ) علت دابښودلې دی چې دا دفاعي جنګ دی نه تعرضي ، او په دفاعي جنګ کې په ټولو مسلمانانو باندې تر آخري وس پورې جنګيدل فرض عين دی . که چېرته دمسلمانانو په يوه علاقه باندې کافران يرغل وکړي نو دهغه شاه خوا د پرتو سيمو په خلکو باندې چې دقصر دمسافې ( ۸۰) کيلومتره نه ورته نژدې وي واجب دی چې دهغوی مرستې ته لاړشي که هغوی هم کافي نه وي

يعنې دمجاهدينو تعداد کم وي نو بيا په دلرې پرتو مسلمانانو باندې واجب دي
چې ټول دجهاد لپاره لاړشي او لـه هغوی سره يو ځای اوږه په اوږه ددشمن په
خلاف وجنګيږي.

که مسلمانان لـه کفارو سره دجهاد لپاره ووتل چې جنګ ته کافي وو نو دنورو
مسلمانانو غاړه خلاصه ده . خودلوی اجر لـه ترلاسه کولو نه محروم او ډډير ثواب
له ګټلو نه بې برخې پاتې کيږي.

دځينو علماوو په نزد دکفارو په خلاف لومړی په هغو خلکو باندې دمسلمانانو
مدد او مرسته واجبه ده چې ورته نژدې وي ، بيا پرهغو مسلمانانو چې هغوی ته
نژدې وي په همدې ترتيب سره به ټول مسلمانان دهغوی دمرستې لپاره روانيږي
تردې چې مسلمانانوته داخبره ورسيږي چې کفارو ماته وخوړه او دمسلمانانو لـه
سيمې نه وتښتېدل .اوداسيمه په بشپړه توګه آزاده شوه .

که کفارو دمسلمانانو کوم غر ياشاړه زمکه او دښته ونيوله اګرکه هيڅ څوک هم
نه پکې اوسيږي بياهم پرمسلمانانو باندې دهغه بېرته اخستلو او آزادولولپاره
جهاد فرض عين دی.

امام نووي رحمه الله ويلي دي چې دمسلمانانو په خاوره باندې دکافرانو تسلط
په هيڅ حالت کې نشي منل کيدې .[1]

امام قرطبي رحمه الله عليه وايي :کـه چېرته کافـران دمسلمانانو خاورې ته
ورننيږدې شي او لاتراوسه ورننوتلې نه وي نو پرټولو مسلمانانو باندې دهغوی په
خلاف دجهاد او دفاع په خاطر وتل واجب دي ترڅو دالله دين غالب او خپله خاوره
ددښمن لـه ناوليو قدمونو نه وساتي.[2]

---

[1]ـ روضة الطالبين للنوي : ۱۰/ ۲۱۶

[2]ـ تفسير القرطبي : ۸/ ۱۵۱ـ ۱۵۲

بغوي رحمه الله وايي : كله چې كافران دمسلمانانو په خاوره كې ننوځي نو كوم مسلمانان چې هلته ورنژدې دي پرهغوی جهاد فرض عين دی او كوم مسلمانان چې له دې ځای نه ډېر لرې وي نو پرهغوی باندې جهادكفايي فرض دې.[1]

داپورتني بيان شوي ځينې هغه فروعي مسائل دي چې له جهادسره تعلق لري چې كوم يو يې فرض عين او كوم يويې فرض كفايي دی.



[1] ـ شرح ا لسنة للبغوي ۱۰/ ۳۷٤.

# فصل

## دجهاد پرېښودونکو په باره کې وعید

الله تعالی فرمايي: ﴿ قُلْ إِنْ كَانَ آبَاؤُكُمْ وَأَبْنَاؤُكُمْ وَإِخْوَانُكُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ وَعَشِيرَتُكُمْ وَأَمْوَالٌ اقْتَرَفْتُمُوهَا وَتِجَارَةٌ تَخْشَوْنَ كَسَادَهَا وَمَسَاكِنُ تَرْضَوْنَهَا أَحَبَّ إِلَيْكُمْ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَجِهَادٍ فِي سَبِيلِهِ فَتَرَبَّصُوا حَتَّى يَأْتِيَ اللَّهُ بِأَمْرِهِ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ﴾ [التوبة٢٤] .

ای محمده ! ورته ووایه که ستاسې پلرونه زامن ، ورونه ، ښځې، خپلوان او هغه مالونه چې په خوارۍ مو ګټلي دي او هغه تجارت چې په کوټه کیدلو یې داریږئ . او زړه ته نژدې کورونه مو لـه الله دهغه درسول او دهغه په لاره کې لـه جهاد نه ډېر ګران وي نودرنګ وکړئ ترڅو الله پاک خپل حکم راولیږي ، او الله پاک فاسق قوم ته روغه لاره نـه ښیئ پـه دې آیت شریف کې چې کـوم تهدید تحذیر او تخویف دجهاد پرېښودونکو خلکو لپاره شویدې چې هغه بالکل کافي دی . لدی نه باید هغه خلک عبرت او پند واخلي چې خپل مال ، ځان اوذکورنۍ په مینه کې غرق دي او جهادته یې شا اړولې ده .همدغه راز الله تعالی په یو بل آیت شریف کې فرمایي :

﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَا لَكُمْ إِذَا قِيلَ لَكُمُ انْفِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ اثَّاقَلْتُمْ إِلَى الْأَرْضِ أَرَضِيتُمْ بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا مِنَ الْآخِرَةِ فَمَا مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فِي الْآخِرَةِ إِلَّا قَلِيلٌ ۝ إِلَّا تَنْفِرُوا يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا وَيَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ وَلَا تَضُرُّوهُ شَيْئًا وَاللَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ [ التوبة : ۳۸- ۳۹ ].

ترجمه : ای مومنانو! پرتاسې څه شویدي چې کله درته دالله پاک په لاره کې دوتلو خبره وشي تاسې دزمکې په لور زور کوئ ؟ ایا تاسې دأخروي ژوند په پرتله ددنیا ژوند خوښ کړی دې که داسې وي نو پوه شئ چې دنیوي ګټې داخرت په مقابل کې

ډېر لږ ارزښت لري . که تاسې دالله په لاره کې ونه وزي په دردناک عذاب به مو وربړوي او پرځای به مو نور خلک منځ ته راوړي او تاسې به الله ته هیڅ تاوان ونشئ رسولې . الله په هر یو شي توانا او پیاوړې دی.

امام قرطبي رحمه الله ددغه آیت په باره کې وایي : په دی آیت کې الله هغه خلک ملامت کړي او پیغوریې ورکړیدی چې جهاد یې پریښې دې او دهغو خلکو عتاب او سرزنش یې کړیدې چې غلي ناست دي او جهاد په طرف ګامونه نه اخلي.

دالله تعالې قول : ( اثاقلتم الی الارض ........) یعني تاسې له ځمکې نه د ګټې ترلاسه کولو لپاره په کارونوکې مشغول شئ او جهاد پریږدئ او یا داچې په زمکه کې دژوندي پاتې کیدو مینه تاسې له جهاد نه لرې وساتي .

په داسې حالت کې دجهاد پریښودل چې بد یې ګڼي په هر مسلمان باندې حرام دی.

که چېرته دمسلمانانو امام قوم ته دجهاد کولو امروکړي نو هغوی ته جائز نه دي چې له جهاد کولو نه ځانونه وروسته کړي ځکه چې دامام دحکم په وجه پر هغوی جهاد فرض عین ګرځي .[1]

الله تعالې فرمایي :

﴿ فَرِحَ الْمُخَلَّفُونَ بِمَقْعَدِهِمْ خِلَافَ رَسُولِ اللَّهِ وَكَرِهُوا أَنْ يُجَاهِدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَقَالُوا لَا تَنفِرُوا فِي الْحَرِّ قُلْ نَارُ جَهَنَّمَ أَشَدُّ حَرًّا لَوْ كَانُوا يَفْقَهُونَ ۝. (فَلْيَضْحَكُوا قَلِيلًا وَلْيَبْكُوا كَثِيرًا جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ۝.فَإِنْ رَجَعَكَ اللَّهُ إِلَى طَائِفَةٍ مِنْهُمْ فَاسْتَأْذَنُوكَ لِلْخُرُوجِ فَقُلْ لَنْ تَخْرُجُوا مَعِيَ أَبَدًا وَلَنْ تُقَاتِلُوا مَعِيَ عَدُوًّا إِنَّكُمْ رَضِيتُمْ بِالْقُعُودِ أَوَّلَ مَرَّةٍ

---

[1] ـ تفسیر القرطبي : ۸/ ۱٤۰

فَـاقْعُدُوا مَـعَ الْخَـالِفِينَ۝.(وَلَـا تُصَلِّ عَلَى أَحَدٍ مِنْهُمْ مَاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَى قَبْرِهِ إِنَّهُمْ كَفَرُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَمَاتُوا وَهُمْ فَاسِقُونَ۝. ﴾ [ التوبة :۸۱-۸٤].

هغه خلک ډير خوښ وو چې درسول الله له تګ نه وروسته پاتې شول او بده يې ګڼله چې دالله په لاره کې پخپلو مالونو او سرونو سره جهاد وکړي او ويل يې چې په ډې ګرمي کې مه اوزئ . اى محمده! ووايه چې دجهنم ګرمي خورا ډېره ده کاشکې چې هغوی پوهيدلی . بايد هغوی لږ و خاندي او ډير وژاړي . ځکه هغه جزا چې دکړنو په بدل کې يې ورکول کيږي همدا ورسره ښايي . که الله پاک ته ، بېرته راوګرځولې نو پاتې کسان به بلې غزاته دتللو اجازه وغواړي . ورته ووايه ! تاسې حق نلرئ چې له دی وروسته زما په ملتيا ووځئ او ددښمن په مقابل کې راسره په جنګ کې برخه واخلئ؟ ځکه چې تاسې ترټولو لومړې ناسته خوښه کړه نو اوس له نورو پاتی شويو سره تاسې هم کينئ . او اى پيغمبره ! له هغوى نه چې هريو مړشي نو ته بايد هيڅکله پرې لمونځ ونکړې اونه يې پر قبر ودريږې ، ځکه چې هغوی الله او دهغه له رسول نه منکر او دفسق په حال کې مړه شوي دي.

الله تعالې دی رحم درباندې وکړي دغه سخت وعيد دردناکه وبال اولويې رسوايي ته وګوره چې الله تعالې دهغه چا په اړه نازله کړېده چې لـه جهاد نه وروسته پاتې شول اوپه خپلو کورو کې غلي کيناستل او پدې لاره کې خرچ کول يې بدوګڼه.

که څه هم دغه آيتونه دهغو منافقينو په باره کې نازل شويدي چې دتبوک لـه غزا نه وروسته پاتې شوي وو لېکن دغه ترهيب او تهديد دټولو هغو خلکو لپاره عام دی چې دهغوی پشان لـه جهاد نه ځان وروسته کوي . له جهاد سره نفرت کوي او پدې لاره کې له مال لګولو نه ډډه کوي. کـه نور هيڅ نـه وي نو دادمنافقينو يو شنيع او بيکاره عمل دې . اوپه دې باره کې راغلې وعيد دومره بوږنوونکي او سخت دې چې لاحول ولاقوة الا بالله .



# ځینې هغه صحیح حد یثونه چې لـه جهاد نه دوروسته کیدو نه د نهي په باره کې راغلي دي

عـــن عـبدالله بن عمر رضی الله عنهما، عـــن رسول الله صلی الله علیه وسلم قل :(( اذا تبايَعْتُمْ بِالْعِينَةِ ، وَاَخذتُمْ اذنابَ البقر ، ورضيتُمْ بالزرع ، وتركتُمْ الجهادَ ، سَلَّطَ اللهُ عليكم ذِلاً ، لاينزعه حتي ترجعوا الى دينكم .

لـه حضرت عبدالله بن عمر ﷺ عنهمانه روایت دې چې رسول الله ﷺ وفرمایل:
کله چې تاسې په اخستلو خرڅولوکې کمې زیاتې وکړئ دغوالکی مو ونیوله ، په کرونده خوشاله شوې او جهاد مو پرېښود ، نو الله پاک به پرتاسو ذلت مسلط کړي او ترهغه پورې به دا ذلت لـه تاسو نه نه لرې کوي ترڅو چې بېرته خپل دین ته راونه ګرځئ.[1] ( او جهاد قائم نه کړئ )

بیهقي په (( شعب الایمان )) کې ویلي دي چې د( التبایع بالعِینةِ ) دعین په زیر سره ، مطلب دادې چې یو سړې بل ته ووایي : ته په دومره دومره پیسوواخله نو زه به لـه تانه په دومره دومره پیسو واخلم.

ابو عبید الهروي په (( الغریبین )) کتاب کې وایي : د(( التبایع بالیعنة )) مطلب دادې چې یو سړی دبل سړي نه یو مال په معلومو پیسو سره تریوې ټاکلي مودې پورې واخلي او بیا دغه مال په هغه باندی په لږو پیسو بېرته خرڅ کړي ( چې دنن صبا په اصطلاح کې دیته پیمټ ویل کیږي ). اوداسې کول حرام دی. او دیته عینه ځکه وايي چې دعینې خاوند لره پدې کې نغدې پیسې پاتې کیږي چې هغه ددوبولیو اونرخونو ترمنځ توپیر اوفرق دې اویاځکه چې " عین" هغه مال ته وایي چې هغه نغداو حاضروي نو پدې ځای کې اخستونکي داځکه اخلي چې خرڅ یې کړي اوپه مقابل کې یې نغدې روپۍ ترلاسه کړي.

---

[1]-( اخرجه ابو داود ۳: ۱۳ ۷٤۰ واحمد في المسند بتحقيق احمدشاكر ۷ : ۳۳ والحديث صحيح . )

ماوردي په حاوي کې ويلي دي : ديته عينه ځکه ويل کيږي چې دلته عين په سود سره آخستل کيږي او عين دراهم او دنانيرو ته ويل کيږي .ددې حديث معنې داسې دی : کله چې خلک جهاد پريږدي او کرکيلي ته مخ کړي نو پرهغوی به دشمن مسلط شي ځکه چې هغوی ورته څه تياری نه وي کړی او لـه هغوی سره به دمقابلې توان نلري . لـه همدې کبله الله پرهغوی ذلت او عذاب نازلوي او ترهغه وخته پورې به لـه دې ذلت نه خلاصون نه مومي ترڅو چې بيرته دجهاد لارې ته ونه ګرځي دالله دين قائم ، اوله اسلام او مسلمانانو سره مرسته ونکړي.

دحديث شريف (( حتی ترجعوا الی دينکم )) لـه جملې نه معلوميږي چې دجهاد پريښودل مخ ترې اړول اوله دنيا سره مينه کول مسلمان لـه دين نه راوباسي او همدا ګناه ورته بس ده.

کله چې مسلمانان لـه جهاد نه لاس واخلي نو الله به پرهغوی دفقر او غربت عذاب هم مسلط کوي . کله کله به فقر او غربت په مال او دولت کې نه وي بلکې ددې نفسونه به په فقر او غربت کې اخته وي ، ډير حريص او بخيل به وي چې خلک به ددوی په حرص او بخل متلونه او مثالونه وړاندې کوي څرڅوک چې په داسې حالت کې راګېر وي هغوی که په ښکاره مالدار هم وي خو نفسونه به يې وږي وي.

لکه چې حديث شريف دی.

((عن ابي هريرةَ رضی اللهُ عنه عن رسولِ الله ﷺ: ((ليس الغنيُّ عن کثرة العرضِ ، ولکن الغنی غنی النفسِ ))[1].

لـه ابي هريره ﷺ نه روايت دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل : غنی (بډای) هغه څوک نه دی چې ډير مال اودولت ولري بلکې غنی هغه دی چې زړه يې غنې وي . نو مالدارې او غني توب دزړه مالداري دی او فقر هم دزړه فقر معتبر دی ، نن صبا چې حلک مونږ په کوم حال ګورو چې دوی کله جهاد پريښود هغه ته يې شاکړه او

[1] – اخرجه ا لبخاري برقم : ٦٤٤٦ مسلم برقم : ١٠٥١.

ددنیا ډول ډول حرامو او حلالو کسبونو ته یې مخ کړه نو الله تعالی ددوی پر زړونو فقر مسلط کړ ددوی په زړونو کې شوم توب او بخیل توب زور شو چې په نتیجه کې دوی ډېر واجبي حقوقو لـه اداکولونه ډډه وکړه اوډپیسوګټلو لپاره یې ډیرو حرامو کسبونوته لاس واچاو لکه په بیـه کې ټګي برګي ملاوټ ، او دغوایې پر غوابانډې دختلو اجورت اودې تـه ورتـه نورناوړه اونـاروا کارونـه . داځکـه چې ددنیا عظمت ددوی پـه زړونـو کـې کیښناست او ددنیا لړ شې دوی تـه ډیر بریښي حرص او تمی ذلیـل کړې دې هرکس چې ګوری پـه هغـه باندې بـه ذلت غلبـه کړې وي ځکـه دابـه هغـه کس تـه چاپلوسي کـوي چې دده پـه فکر رزق ورتـه دهغـه لـه پلوه راځي تمی او لالچ ورځخه دمال بندګان جوړ کړي .دکوم سړي نفس او زړه چې غنی وي هغه آزاد دی او دچا زړه چې غنی نـه وي هغه په حقیقت کې فقیر وي ، که هغه ظاهراً مالدار هم وي خوپه زړه بانډې یې غـربت مسلط شوی وي . هغـه مجاهد چې توره یې دمال ګټلو وسیله وي هغـه بـالکل فقر او ذلت نـه احساسوي ، ځکـه هغـه دخپلې تورې پـه زور غنیمتونه نیسي لـه الله جل جلالـه نه پرته په هغه بانډې دبل هیچا احسان نه وي اوبل داچې غـنیمت بې لـه شکه صفا او خالص حلال دې نوداځکه په زړه کې دنور اوړڼایې سبب ګرځي اودبخـل کنجوسـي اوحـرص اوتمـې لـه تـورو تیـارو ځخـه دنجـات او خلاصـون سبب ، همداشان که مجاهد په ظاهره خالي لاس هم ښکاري خوپه حقیقت کې هغـه غنی وي ځکـه چې دهغـه شعار عزت او عظمت دی دهغه په زړه کې غلامې او ذلت نشته اګر که دهغه ظاهري لباس فقیرانه او کمزورې وي ، په دی مدعا بانډې دالله تعالې داقول ښه منطبق کیږي.

﴿ فَسَوْفَ يَأْتِي اللَّهُ بِقَوْمٍ يُحِبُّهُمْ وَيُحِبُّونَهُ أَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى الْكَافِرِينَ يُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ﴾ [ المائدة ٥٤].

ډیر ژر بـه الله داسې یو قـوم راولي چې هغوی بـه لـه الله سره مینه کوي او الله به لـه هغوی سره مینه کوي مومنانو لپاره به نرم وي او کافرو لپاره به سخت وي او دالله په لار کې به جهاد کوي.

کوم خلک چې دشک لـه لارې مـال ترلاسه کوي او دخپل حرص په وجه دخلکو په وړاندې دمحتاجی سرونه ټیټوي. که هغوی په ظاهره معزز ښکاري خو زړونه يې په ډول ډول ذلتونو ابادوي اوکه ظاهرادقسماقسم مـالونو لـه وجهې مـالدار ښکـاري خوپه زړه کې دهیلې اوحرص په وجه فقیر او ذلیل وي . په عربوکې یومتل دې چې خراب او ذلیـل کسبونه په خلکوناوړه اوبیکاره اخلاق پیداکوي. لکه چې دحضرت علي ﷺ قول هم ددی خبرې تائید کوي،هغه ﷺ فرمايي : دالله په لاره کې جهاد کول دجنت لـه دروازو څخه يوه دروازه ده څوک چې دالله پـه لاره کـې جهـاد پـرېږدي الله تعالې پرهغه ذلت او رسوايي مسلط کوي .په مصيبت يې اخته کوي اوذلت په حال کې به ظلم زغمي پـه ډول ډول ذلتونو کـې بـه راګیـروي اوله انصاف څخه به محروم وي.

عـن ابـي هريرة ﷺ :عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قلَ : (( مَن ماتَ ولم يغز ، ولم يُحَدِّثْ به نفسه ، مات على شُعبةٍ من النفاقِ )) [1]

ابـي هريره ﷺ لـه رسول الله ﷺ نـه روايت کوي چې هغـه ﷺ وفـرمـايـل : څـوک چـې مړشي او هـغـه نه غزا کړې وي او نه يې هم په زړه کې نيـت کړي وي نـو هغه دمنافقت په يوه څانګه کې مړشو.( يعني په زړه کې يې چېرته دجهاد جذبه نه وي پيداشوې )

(( عـن ابـي امامـة الباهلي ﷺ عن النَّبي ﷺ قل : مَنْ لَمْ يغزُ ، او يُجهزْ غازِياً ، او يَخْلُفْ غَازياً فِيْ اَهْلِهِ بخيرٍ، اَصَابَهُ الله بقارعةٍ قبل يوم القيامةِ .[2] ))

له ابي امامه الباهلي ﷺ نه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل :

---

[1]- ( اخرجه مسلم في كتاب الامارة . باب ذم من لم يغز . رقم : ١٩١ .)

[2]- اخرجه ابو داود في كتاب الجهاد: ٣/ ٢٢ وا ابن ماجه في كتاب الجهاد : ٢ / ٩٢٣ واسناده حسن.

چاچې نه غزا وکړه او نه يې غازي تيار کړ اونه يې دغازي دکور حال او احول واخست الله تعالى به هغه دقيامت لـه ورځې نه وړاندې په يو سخت مصيبت کې راګيرکړي. ( اودا الله جل جلاله ده ته دجهاد پريښودلو جزا او عذاب ورکوي )

امام قرطبي رحمه الله عليه وايي چې کـه چېرته ټول خلک لـه جهاد نه عمومي بې پروايي او غفلت وکړي نو يو سړې به خپل مسٔوليت څنګه اداکوي ؟ نو ددې ځواب دادې چې دغه يو سړي تـه پکار دي چـې هغـه ديو قيدي مسلمان فديه اداکړي او هغه له قيد نه آزاد کړي.

په دې طريقه هغه دومره لوی کار وکړ چې دنورو خلکو په ملګرتيا کې نشوکولې. ځکه چې کـه څو کسان راغونډ شوي وای او هغوی يې په ګډه فديه ورکړې وای نو دهريو په برخه کې به لږې لږې پيسې راغلې وې خو هغه داټولې پيسې په يواځې ځان اداکړې . په هر مسلمان باندې لازمه ده چې که چېرته توان يې درلودنو په يواځې ځان دی جهاد وکړي اوکـه ددې توان يې نـه درلـود نـو يو مجاهد ته دې دجهاد سامان او خرچه برابره کړي .[1]



# فصل

## دجهاد پريښودونکو دلائل او بطلان يې

ای لـه جهادنـه مـخ اړوونکيـه ! اې داسلام او وطن لـه حفاظت نه تښتيدونکيه! ای دتوفيق اودحق دلارې نـه ځان ساتونکيه ! پوه شه چې ته لـه اصلي بري او کاميابي نه محروم او دحق لـه لارې نـه لـرې شوې يې. کـاش تـه هم له بهادرو مجاهدينو سره په جهـاد کـې شريک وای او خپـل ځـان او مـال دې دالله پـه لاره کـې لګولـې وای ، خـو افسوس چې ته لـه دی لويی نيکبختي نه څه شي منع کړې يې؟ جهاد او معرکو ته لـه ننوتلو څخـه څـه شي ستاد پښـو زنځيـر جوړ شوې دالله جـل جلالـه پـه لار کـې دنفس

[1] تفسير القرطبي ۸/ ۱۵۲

اومال له قربانولو ته څه شي بخيل کړې يې ؟ ياخودمرګ ويرې وروسته کړی يې او يا هم اوږدو اميدونو ، يا خپل ګران مال او لـه کورنۍ نه جدايې درته ګرانه ده يا دخپلو زامنو ، خادمانو ، خپلوانو او دوستانو نه وتل درته ګران دي.

اى دجهاد لـه برکت نه محرومه ! ستاددغه محروميتيا سبب ياخو ستا ورونه دي او ياهم ستاناژدی دوستان ،ياته په داسې نيکو کارو کې مشغول يې چې جهاد يې درنه لـه ياده ويستلې ، يادخپلې ښکلې مېرمنې اولوړ شهرت په وجه لـه جهاد نه وروسته شوی يې ،يادتاعزت او منصب دتادپښو زنځير جوړ شوی دی . ياپه خپل ښايسته کور او باغونو باندې مين شوې يې. ياداچې ستا ډيرې قيمتي جامې او خوند ورخوراکونه تاجهاد ته نه پرېږدي.

لـه دغو څيزونو پرته بل څه داسې نشته چې تالـه خپل رب نه لرې او دجهاد لـه نعمت نـه محروم وساتي . په الله قسم ، کومو شيانو چې تـه لـه جهاد نه محروم کړی يې دادرتـه بالکل ښـه نـه دي اودابالکل لـه تاسره نه ښايي ايا تادخپل رب دا فرمان ندې آوريدلې چې فرمايي :

﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَا لَكُمْ إِذَا قِيلَ لَكُمْ انفِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ اثَّاقَلْتُمْ إِلَى الْأَرْضِ أَرَضِيتُمْ بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا مِنْ الْآخِرَةِ فَمَا مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فِي الْآخِرَةِ إِلَّا قَلِيلٌ ﴾ [التوبة۳۸]

اې مومنانو! پر تاسو څه شوي دي .چې کله تاسو ته دالله په لاره کې جهاد ته دوتلو لپاره ووېل شي نو تاسې زمکې تـه درانه کيږئ . ايا تاسې دآخرت په ځای ددنيا په ژوند خوښ يئ ؟ پس ددنيا دژوند متاع دآخرت په مقابله کې ډېر لږ دی.

ښـه په غور سره يې واوره ! زه چې تاته کوم قاطع دلائل وړاندې کوم دهغه په اوريدو سره بـه تـه پـه دې پوه شې چې تـه لـه جهاد نه صرف خپل بدنصيب بې برخې کړې يې لـه جهاد نـه ستا دوروستـه کيدو يواځينې سبب ستاخپل خواهشات او رټل شوی شيطان دی.

**ستا د لومړۍ دليل ابطال** : که ته له جهاد نه اوږد اميد او د مرګ ويرې چې په هيڅ حالت کې ترينه خلاصون نشته شاته کړي. اوپه هغه لارباندې دتللونه ويرېږې چې ته ضرور يوه نه يوه ورځ دهغې لاروې يې نو ستا داعقيده باطله او دليل دی بالکل کمزوری او پوده دی.

په الله قسم چې دجهادونو سنګر ته مخکې کيدل دانسان عمر نه کموي او نه هم له جهاد نه وروسته کيدل دچا دمرګ نيتيه اوږده وي لکه چې الله تعالې فرمايي:

﴿ وَلِكُلِّ أُمَّةٍ أَجَلٌ فَإِذَا جَاءَ أَجَلُهُمْ لَا يَسْتَأْخِرُونَ سَاعَةً وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ﴾ [الأعراف٣٤].

دهر اُمت لپاره يو ټاکلې نيتيه ده ، کله چې نيتيه يې راشي نو بيانه يو ګړی وروسته کيږي او نه وړاندې .

الله تعالې په يوبل ځای کې فرمايي :

﴿وَلَنْ يُؤَخِّرَ اللَّهُ نَفْسًا إِذَا جَاءَ أَجَلُهَا وَاللَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ﴾ المنافقون : ١١.

الله تعالې هرګز هغه چاته نور مهلت نه ورکوي چې نيتيه يې پوره شي او الله پاک ستاسې له کړنو نه ښه خبر دی .

همدغه راز په يو بل آيت کې فرمايي:

﴿كُلُّ نَفْسٍ ذَائِقَةُ الْمَوْتِ ثُمَّ إِلَيْنَا تُرْجَعُونَ﴾ [العنکبوت٥٧] .

هريو ساکښ مړکيدونکې دی ، بيا به ماته تاسې ټول راګرځول کيږئ .

ای دوکه شوی انسانه! مرګ يوخاصه سختې لري . او دانسان ساه په ډير هيبت او تکليف سره ووزي . خو افسوس چې ته ترينه غافل يې . لدينه وروسته بيا دقبر ويره وونکې عذابونه او تکليفونه وي . دوه خطرناکې پړښتې به هم تپوسونه کوي اولدينه به يواځې صالح او نيک خلک په امن کې پاتې کيږي . لکه چې الله تعالې فرمايي :

﴿ يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ وَيُضِلُّ اللَّهُ الظَّالِمِينَ ويفعل الله مايشاء ﴾ [ابرا هيم : ۲۷]

الله پاک مومنان په دنیا او آخرت کې په روغه خبره کلک ودروي . او الله ظالمان لیارورکې کوي. اودالله جل جلاله چې څه خوښه وي هغه کوي دآخرت په ورځ یوه لویه خطره مخې ته راځي . کوم انسان چې نیک بخت وي هغه به دنعمتونو جنت ته ځي . او کوم انسان چې شقي او بدبخت وي هغه به دجهنم په عذاب کې آچول کیږي

خوشهید به له دغو ټولو مشکلاتو او کړ اوونو نه په امن کې وي او له دغو مهلکو شیانو څخه به هرګز نه ویریږي . دشهید مرګ بې تکلیفه وي یواځې دومره درد محسوسوي لکه چې یو میږی په هغه چک ولګوي . په دې باره کې درسول الله ﷺ لاندینی حدیث ګواه دی.

(( عن ابي هريرة رضي الله عنه عَنْ رَسول الله ﷺ قال : (( مايَجِدُ الشَّهِيْدُ مِنْ الم القتلِ اِلاَّ كَما يَجِدُ احدكم مِن مَسِّ القرصةِ )) .[1]

ابو هریره رضي الله عنه له رسول الله ﷺ نه روایت کوي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل :
شهید دوژل کیدو په وخت کې صرف دومره درد محسوسوي لکه چې میږې په چاچک ولګوي.

ای وروره ! ته له دغه فرصت نه دګټې له اوچتولو نه څه څیز منع کړی یې ؟ دایو داسې ښه ګټه ده چې وروسته به دقبر له عذاب نه نجات بیاومي ، دالله په وړاندې به سرلوړې شي او داوسیدو ښه ځای به ترلاسه کړی . دقبر له سوال او ځواب نه به

---

[1] - اخرجه الترمذي: ۳/ ۱۰۹ . والنسايي : ٦/ ٣٦. وابن ماجه : ۲/ ۹۳۷ واسناده حسن.

محفوظ پاتې شي ، دقيامت لـه ډېر . خطرناکو او وير وونکو حالاتو نه به په امن کې وسي.

شهيدان دالله پـه نـزد ژونـدي دي او رزق ورتـه ورکـول کيږي نه به وربانـدې څه ويره وي او نـه غـم . الله تعـالې چې هغـوى تـه كـوم فضيلت او نعمـتونـه ورکـړيـدي پـه هغو بـانـدې بـه خوشـال وي . دهغـوى روحونـه بـه دشنـو مـرغـانـو پـه جـجـورو کـې وي اوپـه عليين کې به ګرځي دجنت هر ډول ميوې به خوري چکرې به پکې وهي.

پس ددغـه عـزت مـنـد او سخت دردوونکې مرګ ترمنځ څومره لوی فرق دی ؟ په الله قسم چې ډېر لـوى فـرق دی .هر چاتـه چې ددغسې مرګ توفيق په نصيب شي هغه نيک بخت دی.

**ستا ددويـم د ليـل ابطـال** : کـه چېـرته تـه دا وايې چې مالـه جهـا دنـه زمـا کورنۍ،مال، ماشومان او عيـال منـع کـوي نـو تـه تيروتلې يې او ستا دادليل باطل او مردود دی.

الله تعالې پدې اړه ډېره واضحه او ښکاره خبره کړېده او فرمايلي يې دي :

﴿ وَمَا أَمْوَالُكُمْ وَلَا أَوْلَادُكُمْ بِالَّتِي تُقَرِّبُكُمْ عِنْدَنَا زُلْفَى إِلَّا مَنْ آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَأُولَئِكَ لَهُمْ جَزَاءُ الضِّعْفِ بِمَا عَمِلُوا وَهُمْ فِي الْغُرُفَاتِ آمِنُونَ ﴾ [ سبأ : ۳۷ ].

او ستاسې مالونه او ستاسې اولادونه مو ماته نشي نژدې کولای. هو! چاچې ايمان راوړې اونيکه کړنه يې خپله کړې نـو هغـوى تـه دخپـلو اعمـالو دوه برابـره بـدل دې اودجنت په لوړو اودنګو ماڼيو کې به ډاډمن اوسيږي .

الله تعالى فرمايلي دي :

﴿زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوَاتِ مِنَ النِّسَاءِ وَالْبَنِينَ وَالْقَنَاطِيرِ الْمُقَنْطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ وَالْأَنْعَامِ وَالْحَرْثِ ذَلِكَ مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَاللَّهُ عِنْدَهُ حُسْنُ الْمَآبِ﴾ [ آل عمران١٤].

خلکو ته دشهوتونو مینه ښایسته کړې شویده چې لـه ښځو ، دسرو او سپینو زرو لـه راټولو شویوخزانو، په نښه کړوشوو اسونو، څارویو او کښتونو څخه عبارت دي . داڅیزونه ددنیوي ژوند ګټه ده . او دورتګ ښه ځای لـه الله سره دی .

همدغه راز الله تعالی په بل آیت کې فرمایي :

﴿ اعْـلَمُوا أَنَّمَـا الْحَيَـاةُ الدُّنْيَـا لَعِـبٌ وَلَهْوٌ وَزِينَةٌ وَتَفَاخُرٌ بَيْنَكُمْ وَتَكَاثُرٌ فِي الْـأَمْوَالِ وَالْأَوْلَـادِ كَمَثَلِ غَيْثٍ أَعْجَبَ الْكُفَّارَ نَبَاتُهُ ثُمَّ يَهِيجُ فَتَرَاهُ مُصْفَرًّا ثُمَّ يَكُـونُ حُطَامًـا وَفِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ شَدِيدٌ وَمَغْفِرَةٌ مِنْ اللَّهِ وَرِضْوَانٌ وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُورِ﴾ [الحديد٢٠] .

پـوه شئ چې ددنیاژوند یـوه لوبـه ، ساعت تیري ، ظاهري سینګار . ستاسې پـه مینځونو کې یو پربل ویاړ او په مالونو اولادونو کې یو پر بل دمخکې کیدلو هڅه ده او بس . داژوند باران تـه ورتـه دی چې زرغونـه زمکـه دبزګر زړه تـه ورنژدې کوي بلـه ورځ زرغـون تیا وچه او ګوري یې چې زیړه شوې او بالاخره تار په تار خواره واره بوس وي . اوپه آخرت کې یاسخت عذاب دی او یا دالله له لورې ببښنه او خوښي. او ددنیا ژوند پرته لـه غولونې او تیرویستنې بل څه نه دې.

پورتـه چې کوم آیتونه ستاسې په وړاندې ولیکل شول ددې پشان نور ګڼ آیتونه هم شته چې په کې واضح دلائل موجود دي.

(( عـن سـهل بـن سـعد ﷺ عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قل : لو كانت الدنيا تعدِلُ عندالله جناح بَعُوضَةٍ ماسَقى مِنها كافراً شُرْبَة ماءٍ. [1] ))

له سهل بن سعد ﷺ نه روایت دې چې رسول الله ﷺ وفرمایل :

کـه چېرتـه دنیـا دالله پـه نـزد دماشې لـه وزرې سره هم برابره وائي نو کافر ته به یې لدې نه داوبو یو ګوټ هم نه وو ورڅکلې.

[1] - (اخرجه الترمذي : ٣/ ٣٨٣. والحديث صحيح )

((عن سهل بن سعد السَّاعَدِيْ ﷺ، عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قالَ: موضِعُ سوطِ احدكم من الجنة خيرٌ من الدنيا ومافيها ، وغَدوةٌ في سبيل الله او روحةٌ خيرٌ من الدُّنيا وما فيها ، وخِمَار جاريةٍ من اهل الجنة خيرٌ من الدنيا وما فيها[1] )).

له سهل بن سعد الساعدي ﷺ څخه روايت دی چې محمد ﷺ وفرمايل :
په جنت کې ستاسې ديو قمچينې هومره ځای له دنيااو په دې کې چې څه دې له ټولو نه غوره دی ، او دالله په لاره کې يو سهار يا يو ماښام هومره وخت لګول له دنيااو ما فيهاڅخه بهتر دی . دجنت ديوې حورې ټيکرۍ له دنيا اوپه دنيا کې چې څومره څه دي له ټولونه غوره دی.

**ای دجهاد پريښودونکيه** ! تاله دومره لويې پاچاهۍ نه څوک منع کوي ؟ تاچې کوم نژدې خپلوان لـه دې لوی نعمت نه منع کوي هغوی به ډير ژر مړه شي . يابه پخپلو منځو کې داختلافاتوپه وجه تيت پرک شي اويابه د وخت ناخوالې هغوی پخپلو کې سره جلاجلا کړي.

ته داهم په يادوساته چې ته کله خپلوانو ته څه ګټه نشی رسولې نو هغوی به تاپرېږدي ، عناد اوعداوت به درسره کوي ناوړه چلن به درسره کوي دجالاتو دبدليدو په وجه به دهغوی له زړونو نه ستا مينه ووځي.

لدينه غټه خبره داچې ستا خپل خپلوان به هم له تانه وتښتي اويوه ذره نيکي به هم په محشرکې تاته نه درکوي ترڅو چې هريو به دا غواړي چې خپل ټول ګناهونه ستاپه اوږو واچوي او پخپله ترينه ځان خلاص کړي .

او ستامال تاڅنګه له جهاد نه لرې کوي ؟! حال داچې هغه ستا له لاس نه وتونکې او تلونکې دی . کله چې ستادلاس نه مال او دولت ولاړشي او خالي لاس پاتې شې

[1] - اخرجه البخاري . برقم ۲۸۹۲

نو ستا تول دوستان به تایواخې پرېږدي خپل اهل وعیال به درنه جداکیږي . اوستا ټول هغه دوستان چې له تاسره به یې ناسته ولاړه کوله درنه بیزاریږي.

بیا به دقیامت په ورځ درنه ستا دمال په باره کې پوښتنه کیږي چې څنګه اوله کوم ځای نه دی ګټلی و ؟ اوپه څه کې دی مصرف کړی و ؟ داځومره هیبت ناکه سوال دې څکه چې داسوال به درنه په هغه ورځ کیږي چې له وېرې او هېبت نه به ماشومان بوډاګان شوي وي ، تې ورکوونکي ښځې به له خپل اولاد نه غافلې وي اوحمل درلودونکي ښځې به دویرې له امله حمل وغورځوي .په دی ورځ به ټول مجرمان وپیژندل شي . دسر له ویښتو او پښو نه به ونیولی شي.

له مالدارو خلکو سره به دپیسې پیسې او ذرې ذرې حساب وکړې شي . فقیران او غریبان به له دوی نه پنځه سوه کاله وړاندې جنت ته لاړشي لکه چې محمد ﷺ مونږ ته ددی بیان کړی دی اوفرمایلي یې دي :

عن ابي هريرة رضي الله عنه عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال : يدخُلُ فقراءُ المسلمين الجنَّةَ قبل الاغنياءِ بنصفِ يومٍ ، وهو خمسمائة عامٍ.[1]

له ابي هريره رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله عليه وسلم وفرمايل:

غریب مسلمانان به له مالدارو خلکو نه نیمه ورځ مخکې جنت ته ځي اودانیمه ورځ پنځه سوه کاله ده که چیرته خپل اولاد یادوی اوپه هغه باندې ستا شفقت تا جهاد ته له تللو نه منع کوي نو بیا دالله تعالې داقول درپه یاد کړه چې فرمایي:

﴿إِنَّمَا أَمْوَالُكُمْ وَأَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ وَاللَّهُ عِنْدَهُ أَجْرٌ عَظِيمٌ﴾ [التغابن١٥].

بیشکه ستاسي مالونه او اولادونه ازمیښت دي. اوله الله سره ډیر لوی اجر دی .

---

[1] ـ اخرجه الترمذي : ٤/ ٨ـ ٩ وابن ماجه : ٢/ ١٣٨٠ واحمد في المسند ٢/ ٢٩٦ والحديث صحيح

په الله قسم چې په اولادو باندې له خپل مور ، پلار ، ورور ، او تره نه الله ډير زيات مهربان دی . هغه الله به څنګه مهربان نه وي چې دمور په ګيډه کې يې دهغه پالنه وکړه او پخپلو لاسو دمور انوپه ارحامواودپلارانو په شاګانو کې خای پرخای کړل . ته خپل اولاد ولې له دائمي نعمتونو، جنت، او دالله تعالې له قرب نه لرې کړی يې.

که ستا زوی ورو کې وي نو ته دهغه لپاره غمګين يې . او که ځوان وي نو ورته انديښمن يې .

که روغ رمټ وي نوله ناروغي نه يې ويريږې او که ناروغ وي نو دهغه په ضعف ستا زړه لړزيږي او خفه کيږې.

که ته خپل اولاد ته دادب خبرې کوې نو هغه درته غصه کيږي اوستا نافرماني پيل کوي .او که ورته نصيحت کوي نو له تاسره کينه کوي ، هروخت له تاسره داويره وي چې هسې نه دنورو خلکو دماشامانو په شان زما زوی هم نافرمان او سرکش نه شي.

که چېرته ته په جنګ کې مخکې کيدل غواړې نو هغه تابزدله کوي . که چېرته سخاوت کول غواړې نودهغه فکر تاشوم او بخيل کوي . که چېرته له دنيا سره خپله مينه کمول غواړې نو هغه ستا رغبت زياتوي . له دې کبله هغه ستالپاره لوی ازمېښت دی مګر ته هغه نعمت ګڼې ته هغه دځان لپاره راحت بولې خو هغه ستالپاره لوی مصيبت دې . ته خپل ځان خو په غم کې آچوي مګر دهغه خوشحالي خوښوی پخپله تاوان کوی او هغه ته ګټه رسوې . خپل تله تشوی خو دهغه جيب ډکوی . دهغه په وجه له خپل توان نه زيات تکليف زغمې او دهغه په خاطر خپل ځان په ډيره تنګسيه کې آچوي.

ته دخپل زوې فکر له خپل زړه نه وباسه او هغه چاته يې وسپاره چې ستا او دهغه خالق او پيداکوونکې دی . دهغه درزق په باره کې په هغه چاتوکل وکړه چې تاته او هغه ته يې روزي ورکړې ده ، ته څنګه الله جل جلاله داسمانونو او زمکو مدبراوچلوونکې بولې ؟ خودخپل زوی تدبير او حفاظت له خپل مرګ نه وروسته هغه ته نه سپاري حال داچې ته خوديو زوی پالنه هم سمه نشې کولای اوالله جل جلاله داسمانونو زمکو ، او ددوی ترمنځ چې څه دي دهغو ټولومالک او څښتن دی.

خپل اولاد هغه لوی ذات ته وسپاره چې داسمانونو او زمکو مالک د.ی . په الله قسم چې ته نه دخپل ځان دګټې او نقصان مالک یې اونه دهغه . نه دهغه دژوند او مرګ مالک یې او نه هم دهغه درزق ، ته دهغه لپاره لږ غوندې عمر او رزق هم نشې زیاتولې . تا چې کله ناڅاپي مرګ وداړي نو ته به پخپل قبر کې څملې او دخپلو اعمالو بندیوان به شې . ستا زوی به له تانه وروسته یتیم پاتې شي . ستا ټول مال به ستا په خپلوانو باندې که هغه ستا دوستان وي او که دشمنان تقسیم شي.

ستا خیلخانه به ټوله خواره او غریبه شي . بیابه ته ارمان کوې چې کاش زه هم مجاهد وای اولوی برې به مې ترلاسه کړې وای خو تاته به په خوب کې وویل شي:

تاچې کومه نیکي او بدي په دنیا کې کوله دهغوی له کولو نه خلاص شوې او لدینه وروسته نور هیڅ نشې کولې . په دې وخت کې به ستا غم نور هم زیات شي اوله خپل عمل سره به یواځې پاتې شې.

ای مسلمانه ! ته دبښونکي او غالب الله هغه قول واوره چې ته په کومه دوکه کې پرې وتی یې له هغه نه دوتو لپاره یې بیان کړیدې او فرمایلي یې دي:

﴿ يَاأَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمْ وَاخْشَوْا يَوْمًا لَا يَجْزِي وَالِدٌ عَنْ وَلَدِهِ وَلَا مَوْلُودٌ هُوَ جَازٍ عَنْ وَالِدِهِ شَيْئًا إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا وَلَا يَغُرَّنَّكُمْ بِاللَّهِ الْغَرُورُ﴾ [لقمان٣٣] .

ای خلکو! له خپل رب نه وډارشئ اوله هغې ورځې نه وویرېږئ چې هیڅ پلار دخپل زوی په بدل کې څه نشي ورکولې اونه به زوی دخپل پلار په ځای دڅه بدلې ورکوونکي وي . اوپوه شئ چې دالله وعده حقه ده نو باید چې ددنیاژوند موونه غولوي . اونه مو باید هیڅ غولونکې دالله په باره کې وغولوي.

په دې خبره ځان پوه کړه چې که ستا زوی نیک او صالح وي نو ژربه الله پاک تاسو په جنت کې یوځای کړي او که بدبخت وي نو له اوسه نه دې درنه جداوي ځکه چې جنتیان له دوزخیانو او دوزخیان له جنتیانو سره نشي یو ځای کیداې او نه غوره خلک له بدو خلکو سره یو ځاې کېداې شي.

کیداې شي چې الله تعالې تاته شهادت در نصیب کړي اوته دهغه شفاعت وکړې او ستا دنن ورځې جدايې به دهغه دخلاصون وسیله وګرځي . ته دهغه کار په لټه او شوق کې شه چې تاته له عذاب نه خلاصون درکوي . دقیامت په ورځ به یو سړې خپل ورور ، مور پلار ښځې او ځامنونه تښتي هرځوک به پخپل غم کې اخته وي او دبل چا خیال به ورسره نه وي ، داډیر لوې او کافي بیان دې خودالله جل جلاله چې چاته خوښه شي هغه ته دنیکې لارې هدایت کوي .

**ستا ددریم دلیل ابطال** : که ته وایې چې زه له جهاد نه ځکه شاته شوې یم چې زه دخپلو وروڼو ، خپلوانو ، دوستانو او ملګرو جدايي نشم زغملی نوستا داخبره باطله او دلیل دې دمنلو وړندی .

ته قیامت ورځ درپه یادکړه چې په ټولو خلکو باندې راځي .پدې ورځ به ټول دوستان یو دبل دښمنان وي مګر متقیان به پخپلو کې دوستان وي . که چېرې ستاسې دوستې رښتیادالله درضا په خاطر وي نو هغه جل جلاله به په آخرت کې تاسې ټول په علیین کې راجمع او په جنت کې به مو داخل کړي او تل ترتله به هلته یو ځای اوسیږئ .او که ستاسې دوستي دالله درضا لپاره نه وي نو بیابه .زرترزره دوستي ورسره وشکوه . مخکې دهغه نه چې دقیامت په ورځ ددې باطلې دوستي له امله یو ځای سره حشر اوراټول کړې شي . هر سړې به دقیامت په ورځ له خپل محبوب سره وي ځکه چې هغوی دواړه پخپل مطلوب کې شریک وي . که چېرته هغه نیک او پرهیز ګار وي نو تاته به ګټه ورسوي او که بدبخته وي نو تاته به تاوان ورسوي .

په دې دنیا کې له خپلو خپلوانو او دوستانو څخه دخیر ښیګڼې طمعه کوې ، هغوی درسره جفا او بې وفائي کوي . په زړه کې درسره کینه ساتي . په مشکل وخت کې درنه تښتي او یواځې دې پریږدي . په دوی کې زیاتره ترهغه ستا دوستان وي ترڅو چې له تاسره مال او دولت وي.

که ته کمزوری او غریب شې نو دوی به ستا دشمنان شي او تابه یواځې پریږدي ځکه چې هغوی دخوشالي په وخت کې دوستان اوپه مشکل وخت کې ستا دښمنان دي .دهغوی دوستي او ملګرتیا ستا ترمال او دولت پورې تړلې . که چېرته ستا مال ختم شي نو تاخفه کوي او درنه بیزاریږي .

که چېرته په دې خبره کې شک کوې نو دامتحان په وخت کې به هرڅه درته یقیني څرګندشي .
که چېرې ته کوم ریښتونی او وفادار ورور لرې . خو نن صبا چیرې دې- یا صفااو مخلص ملګری لرې . خو ګمان مې نه اخلي . ( او هغوی ستاپه تللو خفه کیږي ) نو صباته به په جنت کې داسې یئ لکه الله جل جلاله فرمایلي دي :
﴿وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِمْ مِنْ غِلٍّ إِخْوَانًا عَلَى سُرُرٍ مُتَقَابِلِينَ﴾[ الحجر ۴۷ ].
ددوی په زړونو کې چې کومه کینه ده هغه به راوباسو دوی به پخپلو کې ورونه ورونه وي او په تختونو باندې به یو بل ته مخامخ ناست وي.
بیانو تاته روانه ده چې ستا دغه دوستان ستادجهاد په لاره کې خنډ وګرځي.
ځکه کیدی شي چې تاسې دواړه جداشئ او ته به له دوست نه هم محروم شې او دجهاد لوی ثواب او مرتبه به هم ستا له لاسه ووځي .بیا به پخپله په دی کار سخت پیښمانه یې مګر هیڅ ګټه به درته نه رسوي.
رسول الله ﷺ فرمایي:
(( عن سهل بن سعد الساعدي رضي الله عنه قال : (( جاءَ جبريل اِلَى النَّبِيِّ ﷺ فقال : يامحمد : ان الله يقول لك: عِشْ ماشئتَ فانك مَيِّتٌ ، واحبِبْ مَنْ شئتَ فانك مفارقُهُ ، وَاعْمَلْ ماشئت فانكَ مَجْزِيٌّ به .... واعلمْ ان شرفَ المومن قيامُهُ باليل ، وعزَّهُ استغناؤُهُ عن الناس ١ )) .
له سهل بن سعد الساعدي رضي الله عنه نه روایت دې هغه وایي چې جبریل امین نبي کریم ﷺ ته راغې او ورته یې وویل : ای محمده ! الله تعالی تاته فرمایي : په دنیا کې چې څومره ژوند تیرول غواړې تیریی کړه . ته یوه نه یو ورځ مړکیدونکې یې . له چاسره

---

[1]- شعب الايمان للبيهقي : ٣/ ٣٧٣ . والمستدرك للحاكم : ٤/ ٣٢٥.

چې دوستي غواړې ورسره ويې کړه . يوه ورځ ته له هغه نه جدا کيدونکې يې، څنګه عمل چې کول غواړې هغه وکړه ځکه چې دهغه جزا درکول کيږي به .

يوه شه چې دمومن شرف دادې چې دشپې تهجد لمونځونه وکړي اوعزت يې دادې چې لـه خلکو نه بې نيازه شي . په دغو لنډو کلمو کې چې دمرګ ، له دوستانو نه جدايي اودعملونو دجزا کومه يادونه شويده داستادنصيحت او انذار لپاره کافي دی او دا دعقل خاوندانو لـه پاره عبرت دی.

**ستا دځلورم دليل ابطال** : که ته وايې چې زما دجهاد په وړاندی زما منصب ، زما اوچت شان او زما عزت خنډ جوړ شويدې نو ستا دادليل باطل او کمزوی دی.

کاش تابه دې خبره غور کړی وای چې دامنصب لـه هغو خلکو نـه ستا لاس ته رسيدلی دې چې ډيره مينه يې ورسره وه او تر پرونه پورې وربانديې خوشاله وو. اوله ډيروقدرت مينو خلکو نه ددی سورې لرې شوې تردې چې سورې يې ترتا ورسيد.

داخبره په يادوساته چې لکه څرنګه دغه منصب لـه مخکنيوخلکو سره بې وفايې کړې همدغسې به لـه تاسره هم وفا ونکړي. اوله دی نه جدايي به ستا زړه غمګين او پريشان کړي . اوپداسې حال کې به ترې جداکيږي چې زړه به دې له حسد او کينې نه جوش کوي . اوسينه به دې له غمونه ډکه وي . منصب او مرتبه لـه تاسره دتل لپاره نشيَ پاتې کيدې او داستادنجات لاره نده بلکې تابه لـه ناکامي اوپريشاني سره مخامخ کوي . بيا به لاسونه مروړې خو هيڅ به درته په لاس نه درځي.

لـه دوزخ نـه چې دمسلمانانو کوم آخري موحد ويستل کيږي اونورو جنتيانو وروسته جنت کې داخليږي هغـه ته به الله تعالي ددنيا دټولو پاچايانو دپاچاهي لس برابره په جنت کې ځای ورکوې نودهغو خلکو په باره کې ستا څه خيال دی چې هغوی انبياء صديقين ، شهدا اوصالحين دي،دهغوی مقام به څومره اوچت وي ؟.

مګر ډير افسوس چې تـه نـن دهغـه مقام لپاره مړکيږې چې تاهميشـه پـه ستړيا او اندېښنه کې آچوي اوانجام او راتلونکې يې هم ډيـر بد دی . ستا ددښمنانو شمير ورځ پـه ورځ زياتيږي اودهغـوی پـه زړونو کې ستا دښمني وده کوي . کله چې لـه تانه دامنصب واخستل شي نوستا دشمنان به پـه تا وخاندي ، ستانوکران او خدمتګاران

به درنه وتښتي . هغه خلک چې نن سبا ستاپښې ښکلول خپل عزت ګڼي بیابه ستا مخ ته هم ونه ګوري.

ته ددنیا دافنا کیدونکې څو ورځنې نعمت پرېږده او دجنت تل پاتې نعمتونه او عزت ولټوه . دالله تعالی دغه ویناته غوږ کیږده چې فرمایي:

﴿ جَنَّاتُ عَدْنٍ يَدْخُلُونَهَا وَمَنْ صَلَحَ مِنْ آبَائِهِمْ وَأَزْوَاجِهِمْ وَذُرِّيَّاتِهِمْ وَالْمَلَائِكَةُ يَدْخُلُونَ عَلَيْهِمْ مِنْ كُلِّ بَابٍ۝ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ﴾ [الرعد٢٣-٢٤].

ژباړه : تل پاتې جنتونه وي چې دوی . ددوی نیک عمله پلرونو دژوند جوړې او بچیان به یې ورننوځي او ملائکې به هم له هرې دروازې پرې ورننوځي . او ورته به وايي چې دصبر په بدل کې ،، ته تل پاتې سلامتیا ده هو! داله هرڅه نه غوره کوردی.

په الله قسم دادالله تعالی داسې فرمان دی چې سترګې ورباندې یخیږي . او زړه ورباندې خوشالیږي. اودی ته ورته آیتونه باندې عمل کول واجب دی .

**ستا دپنځم دلیل ابطال** : که ته دا دلیل وړاندې کوې چې زمادجهادپه وړاندې زما ښکلی محل ، په هغه کې زما خوشالي زما خادمان . زما ډل ډول نعمتونه اودانور دنیاوي عزت څنګه جوړیږي نو ستا دادلیل هم بالکل غلط او دمنلو وړ نه دی.

ته چې دخپل کوم محل په باره کې خبرې کوې اوته یې له جهاد نه منع کړې یې هغه دکاڼو خاورو ، خښتو. اوسپنو. لرګیو او لوښونه جوړ شویدی . که هره ورځ یې صفایې ونشي نو ګنده کیږي که پکې برق او رڼا ونه لګولی شي نو هغه توره تیاره شي ، که دمرمت خیال یې ونه ساتې شي نو غورځیږي. که هرڅومره خیال بې وساتل شي بیا هم یوه نه یو ورځ غورځیږي اودخاور ډېران به ترې جوړیږي اوسیدونکې به یې فناشي اوله دې ځایې نه به کوچ کولې شي. شکل به یې هم ختم شي او نوم به یې هم له خلکو هیرشي او دهرڅه نښې نښانې به ختمې شي.

ای دوکه شوې انسانه ! خپل دغه ژرفناکیدونکی محل له داسې تل پاتې محلونو سره بدل کړه چې ډير اوچت او ښکلی دی، رڼا يې نه ختميدونکې او تيزه ده ، لاندې ترينه ويالې بهيږي ، په خواکې دميوو ونې دي او هميشه پکې خوشالي ده.

دجنت دمحلونو يوه خښته به دسرو زرو اوبله به دسپينو زرو وي ، په دې کې به سرې ته هيڅ قسم ستوماني او پريشاني نه محسوسيږي . دهغه کاڼي لؤلؤ ، مرجان او جواهرات دي ، خاوره يې دمشکوده، ويالې يې دشيدو او شاتو دي او دکوثر نهرونه پکې بهيږي . پدې ماڼيو کې به يوه ماڼۍ دملغلرو وي . دا ماڼۍ به پورته اويا ميله اوږده وي يابه شنو زمروتو اويابه له سرو ياقوتو نه جوړې شوي وي .مومنانو لپاره به دمحلونو په هره زاويه او کونج کې حورې او خدمتګاران ولاړ وي او دوی به په خپلو کې يوله بل سره دلرې والي له کبله له يوبل سره نه ويني . ددغو محلونو د فرش لاندی طرف به له وريښمونه وي نوظاهر طرف به يې څومره ښکلې وي . ددوه بسترو په منځ کې به دځلوينښتو کلو په فاصله کې اوچتوالې وي . په هغه باندې به نه خوب راځي او نه پرکالې بلکې په دغو توشکو باندې به يو بل ته مخامخ تکيه وهلې ناست وي اوله يوبل سره به خبرې اترې کوي.

په دغو محلونو کې به داوسيدونکو لپاره خوراک هروخت کې په دسترخوان تيار پروت وي اوهيڅ کله به نه ختميږي ، ميوې به هروخت موجودې وي او څوک به دې له خوراک نه منع کولی نه شي او هر ډول ميوې ته دی چې زړه کيږي خورې به يې ، دمرغانو غوښه به ورکول کيږي څښاک به يې رحيق مختوم وي . يعنې داسې څښاک چې مهر به يې دمشکو وي. ددغو شيانو په لاس ته راوړلو کې دې مسابقه کوونکي مسابقه وکړي په دغو محلونو کې اوسيدونکې جنتيانوته به دتقاضا ضرورت نه وي ، نه به لاړې توکوي اونه ګړنګ.دهغوی خوراک به دخولو په شکل بهر وځي خوله به يې دمشکوپه شان خوشبويه وي. او رنګ به يې دملغلرو پشان وي اوپه وتلو به يې ګيډۍ بېرته خپل حالت ته راځي . يعنې په خولو سره به دهغوی خوراک څښاک هضم شي.دهغه ځای خادمان به هميشه پاتې کيدونکې هلکان وي چې الله تعالې دهغوی بيان پخپل کلام کې داسې کړيدې:

﴿ وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ مُخَلَّدُونَ إِذَا رَأَيْتَهُمْ حَسِبْتَهُمْ لُؤْلُؤًا مَنثُورًا ۝ وَإِذَا رَأَيْتَ ثَمَّ رَأَيْتَ نَعِيمًا وَمُلْكًا كَبِيرًا ۝ عَالِيَهُمْ ثِيَابُ سُندُسٍ خُضْرٌ وَإِسْتَبْرَقٌ وَحُلُّوا أَسَاوِرَ مِن فِضَّةٍ وَسَقَاهُمْ رَبُّهُمْ شَرَابًا طَهُورًا ۝ إِنَّ هَٰذَا كَانَ لَكُمْ جَزَاءً وَكَانَ سَعْيُكُم مَّشْكُورًا ﴾ [الإنسان١٩-٢٢].

هغه هميشني هلكان به پرې ګرځيږي چې ويې ګوري نو ګمان به وكړي چې ګويا شيندلې شوې ملغلري دي . او چې په هر لوري ګورې نوپه نعمتونو او لويه پاچاهۍ به دی ستر ګې نبنلي ، دشنو نريو او دشنو پيړو وريښمينو كالي به يې په تن او دسپينو زرو بنګړي به ورته په لاس كړی شوي وي ، او رب به يې په پاك څښاك خړوبه وي . بيشكه چې داستاسې دنيكو كړنو بدل او هڅې مومنل شويدي.

داماچې دكومو نعمتونو يادونه وكړه داهغه نعمتونه دي چې يادونه يې په قرآن او حديث كې شويده . كنې په جنت كې داسې نعمتونه هم شته چې نه ستر ګو ليدلي دي ، نه غوږونو دهغوی نومونه آوريدلي دي اونه هم دهغه خيال دچا په زړه كې تير شوی دی.

كه ته دا پوښتنه وكړې چې جنتيان به څومره موده په جنت كې له دغو نعمتونونه ګټه اخلي ؟ نو ددې ځواب دادې چې دوی به د تل لپاره په جنت كې اوسيږي د تل لپاره به ژوندي وي او كله به هم ورته مرګ نه راځي . هميشه به ځوانان وي بوډاكيږي به نه ، تل لپاره به روغ رمټ وي اوناروغي به په ستر ګو نه ويني هروخت به خوشال وي خفګان به نه ورباندی راځي . دنعمتونو دزوال له غم نه به په امن كې وي .

﴿دَعْوَاهُمْ فِيهَا سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَتَحِيَّتُهُمْ فِيهَا سَلَامٌ وَآخِرُ دَعْوَاهُمْ أَنِ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴾ [يونس١٠] .

په جنت كې به ددوی يوائينې غږ همداوي چې : ای الله ! پاكي يوائې ستا ده.

اويوبل ته به يې ښه راغلاست دسلام كلمه وي . اودټولو په پای كې به وايي چې : دټولو ستاينو وړ يوائې هغه الله دې چې دټول عالم رب دی.

پخپله غور او فکر وکړئ چې تاسوته دجنت دغه لويه پاچاهي او تل پاتې نعمتونه پکار دي اوکه ددنيا ژرفناه کيدونکي محل ؟ او په دې خبره هم غور وکړه چې که چېرته ستادشهادت په وجه ددنيا محل درنه پاتې شي نوپه آخرت کې ددې پرځای څومره اوچته نعمت او مرتبه درکول کيږي؟ .دباخبر الله پشان تاته بل څوک خبر نشي درکولې.

**ستا دشپږم دليل ابطال**: که ته وای چې زه له جهاد نه ځکه شاته کيږم چې د عملونو داصلاح په خاطر اوږد عمر ترلاسه کړم ستا داخبره بالکل غلطه او مردوده ده . ته په دوکه کې پرې وتې يې په الله قسم د اجل کومه نيټه چې مقرره شوی ده هغه ذره برابر نه وروسته کيږي . ته دالله تعالې دغه آيت شريف ته وګوره چې فرمايي:

﴿ يَـاأَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا وَلَا يَغُرَّنَّكُم بِاللَّهِ الْغَـرُورُ ٥. إِنَّ الشَّيْطَانَ لَكُـمْ عَـدُوٌّ فَاتَّخِذُوهُ عَدُوًّا إِنَّمَا يَدْعُو حِزْبَهُ لِيَكُونُوا مِنْ أَصْحَابِ السَّعِيرِ ﴾ [فاطر٥-٦].

ژباړه :ای خلکو! بيشکه دالله تعالې وعده حقه ده پس ددنيا ژوند دی تاسې په دوکه کې وانه چوې اودوکه دې نکړي تاسو لره په الله باندې دوکه کوونکې.

ستادغه خبره درټل شوي شيطان يو جال دی اوداولياؤ او صالحو خلکو لاره نه ده.

ايا درسول الله ﷺ اصحاب او تابعين له تانه زيات دعبادت او دالله تعالی دقرب غوښتونکې نه وو ؟

که چېرته هغوی هم له جهاد نه دځان د ايستلو لپاره بهانې لټولې وای نو هغوی به هم دالله په لاره کې دومره سختيانې او کړاوونه نه وو زغملي ، له کفارو سره به يې جهاد نه و کړی او نه به يې وطنونو نه اوښارونه فتح کړي وو.

ای په فتنه کې پروت انسانه ! ايا ستا غوږوته دالله داقول ندې رسيدلې:

﴿انفِرُوا خِفَافًا وَثِقَالًا وَجَاهِدُوا بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ [التوبة٤١].

اوخۍ سپک او درانه اودالله په لاره کې په. مال اوځان جهاد وکړی داستاسو لپاره بهتر دی که پوهیږئ.
که الله تعالې تاته پوهه درکړې وي نو بیا دالله تعالې په دې فرمان باندې فکر او غور وکړه چې فرمايي :

﴿ وَفَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ أَجْرًا عَظِيمًا ﴾ النساء٩٥.

او الله تعالې مجاهدینو ته په ناستو کسانو باندې لوی اجر ورکړېدی.

له ابي هريره ﷺ نه روايت دی چې رسول الله عليه وسلم وفرمایل:

( اِنَّ قيامَ الرَّجُلِ في الصَّفَّ في سبيل الله ، افضل مِنْ عبادته في اهله سبعين عاماً )[1].

دالله په لاره کې دجهاد لپاره دجنګ په صف کې دریدل پخپل کور کې له اویاکاله عبادت نه افضل او غوره دی .

ای دوکه شوي انسانه! په دې خبره ځان پوه کړه چې دمجاهد خوب دټول عمر له تهجد لمونځ او روژې نه زیات غوره دی.

فرض کړه نن چې ته په کومو اعمالو کې لګیایې ایا ستا دایقین شته چې ستا داټول اعمال به دالله په درګاه کې قبلیږي ؟ ایا ستا په ورانديې دقیامت منظر نه ښکاري ؟

په الله قسم ! تاته هیڅ معلومات نشته چې ستادغه عملونه به تاته نجات درکړي اوکه دهلاکت کندې ته به دې وغورځوي.ستاپه مخ کې خو دقیامت وحشتناک ورځ ده .

تاسې چې په سینه کې څه پټوئ او څه ښکاره کوئ بیشکه الله تعالی په هغو ټولو پوهیږي . که چېرته تاسي مړشئ یاووژل شئ نو همدی الله ته به راغونډیږئ.

---

[1] _ اخرجه البيهقي في السنن الكبري ٩/ ١٦٠ ١٦١ . والترمذي : ٣/ ١٠١ _ ١٠٢ الحاكم ٢/ ٦٨ واسناده حسن.

**ستا د اووم دليل ابطال** : كه چېرته ته داوايې چې زه دخپلې ښځې جدايي نشم زغملې او زه دهغې دښايست اوجمال مقروض يم . دهغې په قرب او وصال كې مې زړه خوشاليږي . نو ستا داوينا غلطه او باطله ده.

فرض كړه چې ستا ښځه لـه ټولو ښځو نه ښكلې ده او پدې زمانه كې دهغې پشان بله ښايسته ښځه نشته ؛ نو لږ غوندې پدې هم فكر وكړه چې ايا دالومړې دمني يو ګنده څاڅكي نه وه ؟.

ايا په آخر كې به ترينه يو بوې ناک لاش نه جوړيږي ؟ ايا هغه په ګېډه كې ګندګي نه ساتي ؟ ايا دهغې دحيض په وجه ته ترينه نه جداكيږې ؟ ايا دهغې بدياني دهغې لـه نيكيو نه ډيرې نه دي ؟ كه په سترګو كې رانجه پورې نه كړي نو سترګې به يې بدې ښكاره شي اوچوخاړي كوي، كه ډول او سينګار ونكړي نو عيبونه به يې برالاشي . كه خپل سرګومنځ نكړې نو ويښتان به يې ګډوډ او ببر شي . كه ويښتان غوړنكړي نو بدرنګه او وچ به شي او سپږې به پكې پيداشي كه صفائي يې ونكړي نو ګنده بوې به ترينه لاړشي . زياتره وخت ناجوړه وي او ډير زيات تنګول كوي.

كله يې چې عمر ډير شي نو ديو كار هم نه وي ، او چې بوډۍ شي نو كمزورې شي ؛ كه ټول عمر ورسره احسان وكړې نو دغصې په وخت كې هرڅه يې لـه ياده ووځي.

دښځودناشكري په باره كې درسول الله ﷺ مبارک ارشاد دى:

(لَوْاَحْسَنْتَ اَلى اِحْدَا هُنَّ الدَّهْرَ، ثُمَّ رَأَتْ مِنْكَ قَالَتْ مَارأيتُ منك خيراً قطُّ)[1]

كه ته لـه ښځې سره ټول عمر نيكي وكړې او بيا درنه لږ غوندې څه تكليف ووينې نو وايي چې ما لـه تانه چېرته هم خير او ښيګڼه نده ليدلې.

ته هميشه دهغې دجدايي او سركشي په ويره كې يې اولـه دې ويريږې چې راسره جفاونكړي دهغې مينه تاپه ډول ډول مصيبتونو او پريشانيو كې آچوي دهغې لپاره ته لوږه تنده ، يخني ګرمي ، او ستړيا هرڅه په ځان راوړې ، دخپل معمولي خواهش

---

[1] - اخرجه البخاري برقم : ۲۹_ مسلم برقم ۹۰۷

په خاطر تاهلاکت ته غورځوي ، ترهغه درسره مینه کوي ترڅو پورې چې حاجت او اړتیایې پوره کوې که پوره یې نه کړې نو مخ درنه آړوي اوله بل چاسره لاره نیسي ، په تا ملامتي آچوي او اختلاف درسره کوي دحال په ژبه دادر ته وایې اګرکه صراحتا نه درته وایي چې که له ماسره وصال غواړې نوبرما خرچه کوه اوکه ته زما ضرورت نشې پوره کولی نو طلاق راته راکړه بلکه خبره داده چې ته به له هغې نه په هغه صورت کې ګټه اوچته کړې چې دهغې کوږ والې وزغمې .اوکه دوامداره ملګرتیا یې غواړې نو په ځان به سختي اوتکلیف راولې .

څومره دتعجب خبره ده چې دیوې داسې ښځې محبت تا دهغه چاله مینې نه آړوي چې هغوې له نور نه پیدا او دمحلاتو په سیورو کې له غلمانو او حورو سره یو ځای لوېې شوې دي په الله قسم چې دشهید وینه لانه وي وچه شوې چې هغه خپلې دغټو غټو سترګو واله حورې وینې اوخوندترې اخلي. هغوی ډیرې ښایسته او ښکلې وي اودیاقوتو پشان ښایسته پاکې او حیاناکې پیغلې وي چې دانسان او پیري لاس وربانډې نه وی لګیدلې خبري یې پستې .، قدونه یې ښه برابر او ویښتان یې تک تور وي ، دسترګو بانه یې ښایسته او شکل یې دګلونو پشان ښایسته وي .جوړښت یې حیرانوونکې ، عادت یې ډیر په زړه پورې سترګې به یې تکې تورې وي پوهه به یې ډیره وي خبرې به یې خوږې وي . دښائسته اخلاقو خاونده به وي .، جامې یې پړقیدونکې اوله ګاڼونه ډکې وي ،ډیرې مینه ناکې وي اوله تانه پرته بل چاته نه ګوري یواځې به له تاسره محبت کوي او ستا هره غوښتنه به پوره کوي.

که چېرته دهغې یو نوک دنیا ته داښکاره شي نو دڅوارلسمې شپې سپوږمۍ به دهغې په وړاندې توره شي ؛ که چېرته خپل بنګړي دشپې په وخت کې دنیا ته وښایي نو تیاره به یې په رڼا بدله کړي . که چېرته خپل ځان دنیا ته ښکاره کړي نو ټوله دنیا به له خوشبویې نه ډکه کړي .او که په مالګین اوتریخ سمندر کې لاړې توکړي نو دټول سمندر اوبه به خوندورې او خوږې وګرځي کله چې هغې ته په ځیرځیر وکتل شي نو دښکلا اسرار به یې نور هم زیات څرګندیږي چې ورسره کیني او مجلس ورسره وکړي نو حسن به یې نور هم درته څرګندیږي .

دجنت دحورو ددغه ښکلا او حسن له اوریدونه وروسته کوم عقلمند داسې کار کولی شي چې دالله په لاره کې جهاد پرېږدي .او آرام پخپل کورکې کینني. داکیښناستل به ده ته څنګه زیباوي حال داچې په جنت کې دحورو پشان نور هم خورا زیات نعمتونه دي .

ای انسانه ! په دې خبره ځان پوه کړه چې ددنیا له دې ښځې نه دې جدایي ضروري او یقیني ده که داښځه صالحه وي انشاء الله تاسې به بیا په جنت کې سره یوځای کیږئ . هلته به ستا داښځه له حورو نه هم زیاته ښایسته وي خوددې لپاره یوځل فراق او جدایي ته اړتیا ده چې هغه مرګ دې اوداښائیست به یې دومره زیات وي چې دالله جل جلاله نه سوادبل چاعلم ورته نه رسیږي اخلاق به یې ښایسته شي جوړښت به یې ښه برابر شي سترګي به یې غټې اوتکې تورې شي ښائست به یې څو چنده زیات شي لنډه داچې هره نوعه او هرډول خوبیانې به پکې راشي نور او پړقیدابه یې زیاته شي دتاپه سترګه کې به یې عزت او مرتبه لوړه شي اوپه حورعینو باندې به په ښائست او انوارو کې دومره زیاتې شي لکه په دې دنیا کې چې حورېورباندې زیاتې دي . په دنیا کې چې دهغې کوم عادتونه ستاخوښ نه وو هغه به ټول ختم شوي وي پاک لمنه پیغله اوله حیض او نفاس نه به پاکه وي ، ټول کوږوالی او نقصانونه به یې ختم شوي وي .

که چېرې تاسن په دی دنیا کې دجهاد په خاطر خپله ښځه پریښوده او ترې نه جلا شوې نو الله تعالې به ددې عوض ډیر ژردرکړي . که چېرته جنتي وي نو په آخرت کې به ضرور له تاسره یو ځای کیږي.

ای مسلمانه وروره ! تا دی ددغه دنیا ښایست دوکه نکړي . په حقیقت کې دادنیا داوسیدو اودمال دجمع کولو او دګپ شپ لګولو ځای نه دی.

که ته نن په دې دنیا کې که نن خاندی نوصباته به پکې ژاړې ، ددې دخوشالیو ترشا غمونه دي . دنیاچې کله تروتازه شي وچ کالې او قحط سالې پرې راځي که څوک یې وګني اوراجمع یې کړې ترې نه تیت پرک کیږي او غریب یې پریږدي چې له چاسره نه وي دهغه شي مرتبه کموي . چې له چاسره وي هغه نا ارامه او ستړې وي . چې له چاسره زیاته شې هغه تباه کوي . که څوک یې ابادوي داترې نه ورانیږي که چاته یې

حقیقت معلوم شي نوبیا ترې ښتي که په خپل ښائست کې درته راڅرګنده شي نوزړه درنه وړي کله چې درته په بله شي نوکندې ته ورغوځوي که خپلې متحفې درته را ډیرې کړي . نو کړاوونه هم درته راډیر کړي که دوصال سخادر سره وکړې نو ژربیا درنه جداکیږي دیته نژدې له خدای نه لري ، اوددې عاشق دخدای له دربار نه رټل شوې دغمونو تکلیفونو . فکرونو جدایي ، سترتیا بدبختي ، او مشقتونو کوردې ددی ډیر په حقیقت کې لږ دې ، عزتمند یې ذلیل دې ، غني یې فقیر دې ، لوی شی یې په حقیقت کې وړوکي دې . له افتونو نه ډکه ده د پښیمانتیا ونه مالا مال ده ، په وعدویې باور نشي کیدې وفادسره پکې نشته . اونه خپل لوزونه پوره کوي مینه کوونکي ورسره هر وخت سترې عاشق یې سخت غمژن اوباور کوونکي وربانديې رسوا کیږي ، خپل عیبونه یې پټ کړي په خپلو مصیبتونو یې پرده اچولې پخپلو زرغونو چاته دوکه ورکوي په خپلو رشوتونو له چاسره تګي کوي خپل جالونه یې خواره کړي دي لومې یې هم ایښې دي . خپل کونه شي یې ښائسته کړیدې خپل توره یې راباسلې ده . خپل خواره شیان یې راوړاندې کړي دي اوپه خپلو بدیو یې پردې اچولي دي اودا اوازنه کوي چې اې خلکو له ماسره وصال وکړئ له ماسره وصال وکړئ نو څوک چې یې دوصال قصد وکړي هغه به ددې په لومو کې راګیر شي هلته به ددې بد حال ورته واضح شي چې کله دوی په سخت عذاب کې راګیر شي اودناپوهي له وجهې نه به دې ددنیا بندیوان شي دې چې په ځان پوهیږي نو ددنیا ټول چل ول به یې داسې را ایسار کړې وې چې هیڅ به نه ویني پدې وخت کې به دې دپښیمانی لاسونه مروړي او خوله به پرې لګوي داوښکو پرځای به له سترګونه ویني اوبهوي خو هیڅ فائده به ورنکړي اودڅه شي په طلب کې چې دی و هغه به یې هلاکت ته وغورځوي دې به دتیښتې کوښښ کوي خو تیښته به ورته ممکنه نه وي .

ای انسانه ! له مړکیدونه مخکې مخکې دغفلت له خوب نه بیدار شه او خپل ځان له بندي کیدونه وړاندې وړاندې ددی له بندي خانې نه وساته.

دنیکبختي او سعادت په لور ګامونه اوچت کړه کیدې شي الله تعالی دشهادت فضیلت درته په نصیب کړي .او ددې ثواب په لاس ته راوړلو کې دی هیڅ یو سبب ستادپښو زنځیر نشي جوړیدلې.

هوښيار سړي هغه دي چې په جهاد کې برخه واخلي او لوی اجر ترلاسه کړي. کوم سړي چې دسستي او تنبلي په وجه دالله په لاره کې له جهاد نه محروم شو نو بيا به ارمان کوي خو هيڅ ګټه به يې نه وي. کله چې شهيدان دجنت په اوچتو اوچتو ماڼيو کې وويني نو دافسوس لاسونه به مروړي او وايي به کاش مونږ هم جهادکړي وای او دالله په لاره کې شهيدان شوي وای.

﴿ والله يقول الحق وهو يهدي السبيل ﴾ [الاحزاب ٤]. الله حقه خبره کوي او نيغه لاره ښايي.

﴿ وحسبناالله ونعم الوكيل ﴾. الله مونږ ته کافي دی او ډير ښه کار جوړونکې دی.

# د ویم باب

# دجهاد او دالله جل جلاله په لاره کې دمجاهدینودفضیلت په باره کې

الله تعالى فرمايي:﴿ لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ وَالْمُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ عَلَى الْقَاعِدِينَ دَرَجَةً وَكُلًّا وَعَدَ اللَّهُ الْحُسْنَى وَفَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ أَجْرًا عَظِيمًا ۝ دَرَجَاتٍ مِنْهُ وَمَغْفِرَةً وَرَحْمَةً وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا ﴾ . [ النساء ٩٥- ٩٦ ].

کوم مومنان چې ( په جسماني لحاظ سره ) معذورنه وي او په کور کې ناست وي له هغو مومنانو سره نشي برابریدلې چې پخپل سر اومال سره جهاد کوي . الله تعالې په سر او مال سره جهاد کوونکو ته په کور کې له ناستو خلکو نه ډیره غټه درجه ورکړیده که څه هم له هریو سره یې دجنت وعده کړیده . خو الله تعالې مجاهدینو ته په ناستو خلکو باندې دډیرلوی اجر په ذریعه فضیلت ورکړیدې . دهغوی لپاره دالله له طرف نه لوی لوی مرتبې دي . بخښنه ده او رحمت دی . او الله تعالې بخښونکې او مهربان دی.

الله تعالې فرمايي :

﴿ فَلْيُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ الَّذِينَ يَشْرُونَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا بِالْآخِرَةِ وَمَنْ يُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيُقْتَلْ أَوْ يَغْلِبْ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا ﴾ [النساء٧٤].

نو دالله په لیارکې دی هغه کسان جهاد وکړي چې ددنیا ژوند په اخرت خرڅوي . او څوک چې دالله په لیار کې جهاد وکړي او شهید یابریمن شي نوموږ به ډیر ژر هغه ته لوی اجر ورکړو.

الله تعالې فرمايي :

﴿ الَّذِينَ آمَنُوا وَهَاجَرُوا وَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ أَعْظَمُ دَرَجَةً عِندَ اللَّهِ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَائِزُونَ ۝ يُبَشِّرُهُمْ رَبُّهُم بِرَحْمَةٍ مِّنْهُ وَرِضْوَانٍ وَجَنَّاتٍ لَّهُمْ فِيهَا نَعِيمٌ مُّقِيمٌ ۝ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا إِنَّ اللَّهَ عِندَهُ أَجْرٌ عَظِيمٌ ﴾ [التوبة ٢٠_ ٢٢.] .

کومو کسانو چې ايمان راوړي هجرت يې کړې او پخپلو مالونو او سرونو سره يې دالله په لیار کې جهاد کړې دالله په وړاندې يې مرتبه ډيره لويه ده. او همدغه خلک بريمن دي هغوی ته خپل رب دمهرباني خوښی او هغو جنتونوزيرې ورکوي چې دهغوی لپاره پکې تل پاتې نعمتونه دي تل پرتله به هملته وي . بې شکه چې له الله سره تيار اجر خورا لوی دی.

﴿ إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَىٰ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيَقْتُلُونَ وَيُقْتَلُونَ وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنجِيلِ وَالْقُرْآنِ وَمَنْ أَوْفَىٰ بِعَهْدِهِ مِنَ اللَّهِ فَاسْتَبْشِرُوا بِبَيْعِكُمُ الَّذِي بَايَعْتُم بِهِ وَذَٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴾ [التوبة١١١].

بې شکه الله پاک له مومنانو نه دهغوی ځانونه او مالونه اخستي دي . په بدل کې به يې جنت ورکوي هغوی دالله په لاره کې جنګيږي ، نور وژني او دوی هم وژل کيږي. داهمغه رښتيني او پخه وعده ده چې په تورات ، انجيل او قران کريم کې ياده شويده او ايا په وعده پوره کولو کې له الله نه بل څوک پورته شته ؟ نوای مومنانو! پرخپله معامله خوښ اوسئ همدالويه کاميابي ده.

الله تعالې فرمايي : .

﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِن تَنصُرُوا اللَّهَ يَنصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ ﴾ [محمد٧].

ای مومنانو! که تاسې دالله ددين ملاتړ وکړئ هغه به ستاسې ملاتړ وکړي او پښې به مو کلکې کړي.

الله تعالی فرمايي:

﴿إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوا وَجَاهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أُولَئِكَ هُمُ الصَّادِقُونَ﴾ [الحجرات١٥].

حقيقي مومنان هغه کسان دي چې په الله اورسول يې ايمان راوړی بياهيڅ شک يې نه دی کړی او دالله په لياره کې يې خپل مال او سرسره جهاد کړې پس همدغه رښتيني خلک دي.

الله تعالی فرمايي :

﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَى تِجَارَةٍ تُنجِيكُمْ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ۝. تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَتُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنتُمْ تَعْلَمُونَ۝. يَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَيُدْخِلْكُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ وَمَسَاكِنَ طَيِّبَةً فِي جَنَّاتِ عَدْنٍ ذَلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ۝. وَأُخْرَى تُحِبُّونَهَا نَصْرٌ مِنَ اللَّهِ وَفَتْحٌ قَرِيبٌ وَبَشِّرْ الْمُؤْمِنِينَ۝.يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا أَنصَارَ اللَّهِ كَمَا قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ لِلْحَوَارِيِّينَ مَنْ أَنصَارِي إِلَى اللَّهِ قَالَ الْحَوَارِيُّونَ نَحْنُ أَنصَارُ اللَّهِ فَآمَنَتْ طَائِفَةٌ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ وَكَفَرَتْ طَائِفَةٌ فَأَيَّدْنَا الَّذِينَ آمَنُوا عَلَى عَدُوِّهِمْ فَأَصْبَحُوا ظَاهِرِينَ﴾[الصف١٠- ١٤].

ژباړه : ای مومنانو! ايا داسې تجارت دروښايم چې تاسې له دردناک عذاب څخه وژغوري په الله او رسول يې پوخ ايمان راوړئ . په مال اوسر دالله په لاره کې جهاد وکړي که پوهيږئ نو دادرته غوره ده الله پاک به ستاسې ګناهونه وبخښي او هغو

باغونو ته به مو داخل کړي چه لاندې له ونو او ماڼیو به یې ویالې بهیږي او په تل پاتې باغونو کې به ډیرّه غوره او ښه کورونه درکړي همدغه ډیر لوی بری دی او هغه بل څیز چه تاسې یې ډیر خوښوئ دالله کومک او نژدی بری دی . ای پیغمبره! دی مومنانوته زیرې ورکړه . ای مومنانو! دالله لښکر شئ لکه چه عیسي بن مریم خپلو ملګرو ته وویل : دالله په لور بلنه کې به زما لښکر څوک وي ؟ نژدی ملګرو یې وویل : مونږ دالله لښکر یو بیا دبني اسرائیلو یوې ډلې ایمان راوړ اوبله یې کافره شوه . مونږ له مومنانو سره دهغوی ګدښمن په خلاف لاس وکړ نو پرې برلاسي شول .

دجهاد دفضیلت په باره کې ګڼې آیتونه راغلي او دجهاد فضیلت نشي منحصر کیدلې خوله هغوی نه یو څو مهم یې لاندې بیانوو.

***

# فصل

## په د ې باره کې چې جهاد له غورو اعمالو څخه دی

روی البخاري ومسلم عن عبدالله بن مسعود ﷺ قالَ سالتُ رسولَ الله ﷺ ایُّ الاعمال افضل ؟ قال : الصَّلاة على وقتها . قلت ثم ای ؟ قال برُّ الوالدينِ . قلت ثم ای ؟ قال الجهادُ في سبيل الله [1]

بخاري او مسلم له عبدالله بن مسعود نه روایت نقل کړیدې چې ماله رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړچې کوم یو عمل غوره دی ؟

هغه ﷺ وفرمایل : پخپل وخت دلمونځ کول. ماووېل بیاکوم یو عمل غوره دی ؟

هغه ﷺ وفرمایل : له مور او پلار سره ښیګڼه کول.ماووېل بیاکوم یو ؟ هغه ﷺ وفرمایل : دالله په لاره کې جهاد کول .

---

[1] اخرجه البخاري برقم : ۲۷۸۲. ومسلم برقم : ۸۵

وروى البيهقي والدارمي عن ابي قتادة الانصاري رضى الله عنه قل : خطبَ رسولُ الله صلى الله عليه وسلم فَذكر الجهادَ ، فلم يُفَضّلْ عليه شيئاً إلّا الصّلاةَ المكتُوبة .[1]

بيهقي او دارمي له ابي قتادة ﷺ څخه روايت کړی دی هغه وايي :
رسول الله صلى په يوه خطبه کې دجهاد يادونه وکړه او له فرض لمونځ نه علاوه بل هيڅ څيز ته يې په دی باندې فضيلت ورنکړ .

وكان عبدالله بن عمر رضى الله عنهمايرى ان الجهادَ في سبيلِ الله افضل الاعملِ بعد الصلاة .[2]

عبدالله بن عمر ﷺ په نزد له فرضي لمونځ نه وروسته في سبيل الله جهاد غوره عمل دی .

***

# فصل

## له ايمان نه وروسته جهاد له غوره اعمالو څخه دی

روى البخاري ومسلم عن ابي هريره ﷺ قل سُئِلَ رسولُ الله ﷺ ایُّ العمل افضل ؟ قل ايمانٌ بالله ورسوله

قيل: ثم ماذا؟

قل : الجهاد في سبيل الله

قيل : ثم ماذا ؟

---

[1]- اخرجه البيهقي في السنن الكبرى برقم ۴۸/۹ والدارمي : ۲۰۷/۲ والحديث صحيح.

[2]_ اخرجه البيهقي في السنن الكبرى : ۴۸/۹

قالَ : حَجٌّ مبرورٌ.[1]

بخاري او مسلم لـه ابي هريره ﷺ نه روايت كړى دى چې لـه رسول الله ﷺ نه پوښتنه وشوه چې كوم يوعمل غوره دى ؟ هغه ﷺ وفرمايل:

په الله اودهغـه په رسول باندې ايمان . وويل شو بيا كوم يوعمل غوره دى ؟ هغه ﷺ وفرمايل: دالله په لاره كې جهاد . وويل شو بيا كوم يو ؟ هغه ﷺ وفرمايل مبرور حج

مناسب دادى چې داحديث پـه هغـه چاباندې حمـل كـړى شـي چـې دچـامور او پلارژوندي نـه وي چې نيكـي اوښيگنـه ورسره وكـړي . يـامور او پـلار خويې وي خو هغـوى دواړو دجهـاد لپاره اجازه وركړې وي يادى پر هغه جهاد باندې حمل كړى شي چې هغه فرض عين وي ځكه چې دا دمور او پلار لـه خدمت نه مهم او مقدم دى.

وروى الـبخاري ومسـلم عـن ابـي ذر الغفـاري رضـى‌الله عنه قال : سالتُ

رسولَ الله ﷺ : ایُّ العمل افضل ؟

قال ایمانٌ بالله وجهادٌ في سبيله .

قُلتُ : فایُّ الرِّقاب افضل ؟

قال : انفَسُها عند اهلها واغلاها ثمناً .[2]

بخاري او مسلم لـه ابي ذر الغفـاري ﷺ نه روايت كړيدې هغـه وايـي : مالـه محمد ﷺ نه پوښنه وكړه چې كوم يو عمـل غوره دى ؟ هغـه ﷺ وفـرمايل : پـه الله ايمان اودهغه په لاره كې جهـاد كـول ، ماوويل دكوم يو غلام آزادول بهتر دى ؟ هغه ﷺ وويل : دهغه غلام چې دمالک خوښ وي او قيمت يې زيات وي.

---

[1] ــ اخرجه البخاري برقم : ٢٦ ومسلم : ٨٣

[2] ــ اخرجه البخاري برقم : ٢٥١٨ ومسلم برقم : ٨٤

وروى المسلم عن ابي قتادة الانصاري ﷺ: ان رسول الله ﷺ قام خطيباً فذكرَ اَنَّ الجهاد في سبيل الله والايمان بالله افضلُ الاعمال فقام رجلٌ فقال: يارسولَ الله ! ارأيتَ ان قتلتُ في سبيل اللهِ اتُكَفَّرُ عَنِّي خطايا یَ كلها ؟ فقالَ رسول الله صلى الله عليه وسلم نعم ، ان قُتِلْتَ في سبيل الله وانتَ صابرٌ محتسبٌ مقبلٌ غير مدبرٍ. ثم قال رسول الله ﷺ كيف قلتَ ؟ قال :ارأيتَ ان قتلتُ في سبيل الله اتكفرُ عَنِّي خطاياي ؟

فقالَ رسول الله ﷺ : نعم ، وانت صابر محتسب ، مقبلٌ غير مدبر . الا الدَّينَ ! فانَّ جبريلَ قالَ : لِي ذالك .[1]

مسلم له ابي قتادة الانصاري ﷺ څخه روايت كړى دى چې نبي كريم ﷺ خطبې ته ودريد. او ويې ويل : بيشكه دالله په لاره كې جهاد اوپه الله باندې ايمان له غوره عملونو څخه دى پس يوسړې ودريد او ويې ويل : يا رسول الله ! ماته خبر راكړه چې كه چيرته زه په جهاد كې ووژلې شم نو ايا زما ټول ګناهونه بخښل كيږي ؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل هو . كه چېرته ته دالله په لاره كې ووژل شي او ته صبر كوونكې يي ، دثواب اميد وار يې مخامخ جنګ.كوونكې يې او دشمن ته شاه اړوونكې نه يې.

رسول الله ﷺ له هغه‌نه يو ځل بيا پوښتنه وكړه چې تاسې څه ويلي وو ؟
هغه ورته وويل : تاسې ماپوه كړئ چې كه چېرته زه دالله په لاره كې ووژل شم ؟ ايا زما ګناهونه بخښل كيږي ؟ نبي كريم ﷺ وفرمايل هو . په دې شرط چې ته صابر او دثواب اميدوار يې . له دشمن سره مخامخ جنګيدونكې يې او شاه دې ورته نه وي اړولې . خو داخبره په يادلره چې دبل چا قرض درته نه بخښل كيږي . ځكه چې جبريل امين ماته داخبره كړېده .

---

[1] اخرجه مسلم برقم : ۱۸۸۵.

# فـصـل

## دمسجـد حرام له جوړولو نه جهاد زيات غوره د ی

روى الـمسـلم عـن الـنعمان بـن بشير ﷺ قال : كنتُ عند منبر رسول الله ﷺ : فقال رجل : ما أُبالي اَنْ لا اعملَ عملاً بعد الاسلامِ الَّا اَنْ اسقى الحاج!

وقـل الأخـر:لا ابـالي ان لا اعمـلَ عمـلاً بعد الاسلامِ الا ان اعمر المسجدَ الحرام !

وقالَ اخر: لا الجهاد في سبيل الله افضل مِمَّا قلتم !

فزجـرهم عمـر بن الخطاب ﷺ ، وقال : لا ترفعوا اصواتكم عند منبر رسول الله ﷺ وهـو يوم الجمعة ولكـن اذا صليت دخلتُ فاستفتيتُهُ فيما اختلفتم فيه .))

حضرت نعمان بن بشير ﷺ فرمايي : چې زه دمحمد ﷺ دمنبر په څنګ کې ناست وم

يو سړي پاڅيد او ويې ويل : زه خووروسته لـه مسلمانيدو نه بيا لـه ټولو کارونو ښخه غوره کار حاجيانوته اوبه ورکول ګڼم . يو بل سړي وويل: زه خوله ټولو عملونو ښخه ښه او غوره عمل دمسجد حرام ابادول ګڼم.

يو بل سړي وويـل نـه ستاسې خبره سمه نه ده بلکې دالله په لار کې جهاد لـه ټولو نه غوره عمل دی.

حضرت عمر ﷺ هغوی وځنډل او ورته يې وويل نن دجمعې ورځ ده تاسې دنبي کريم ﷺ دمنبر په خواکې شورمه کوئ . کلـه چې دجمعې لمونځ ولوستل شي نو زه به له نبي کريم ﷺ نه ستاسې داختلاف په باره کې پوښتنه وکړم.

بیا الله تعالی دهغوی په باره کې دا آیت شریف نازل کړ.

﴿ أَجَعَلْتُمْ سِقَايَةَ الْحَاجِّ وَعِمَارَةَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ كَمَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَجَاهَدَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ لَا يَسْتَوُونَ عِنْدَ اللَّهِ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ﴾ (التوبة۱۹) [۱]

ایا تاسې په حاجیانو باندې اوبه څښول اودمسجد حرام اباد ساتل دهغه چا دکارونو سره برابروئ چې په الله تعالی او
آخرت باندې ایمان لري اودالله په لاره کې جهاد کوي .دالله په نزد خو دوی برابرنه دي او الله ظالمانو ته دسمې لارې پوهه نه ورکوي.



[۱]_ اخرجه مسلم برقم : ۱۸/ ۷۹.

# فـصل

## على الاطلاق جهاد له ټولو عملونو څخه غوره عمل دی

روى احمد والبيهقي عن عمرو بن عبسةَ السُلمِّى ﷺ قال :

(( جاء رَجلٌ الى رسولِ الله ﷺ فقال : ما الاسلام؟

قال ﷺ: ان يُسلمَ قلبُك لله ، وان يَسلَمَ المسلمون من لسانك ويدك !

قال : فأىُّ الاسلام افضل ؟

قال ﷺ : الايمان .

قال : وما الايمان ؟

قال ﷺ : ان تُؤمنَ بالله وملائكته وكتبه ورسُله ، وتؤمن بالبعث بعد الموت !

قال : فأىُّ الايمان افضل ؟

قال ﷺ : الهجرة !

قال : وما الهجرة ؟

قال ﷺ : ان تهجر السوء !

قال : فأى الهجرة افضل ؟

قال ﷺ : الجهاد .

قال : وما الجهاد؟

قال ﷺ : ان تقاتل الكفار اذا لقيتهم .

قال : فاى الجهاد افضل ؟

قال ﷺ : من عقر جوادهُ واريق د مُه [1] )).

احمد او بيهقي لـه عمرو بن عبسه السلمي ﷺ څخه روايت كوي چې هغه وويل : محمد ﷺ ته يو سړى راغي او عرض يې وکړ چې اسلام څه شى دى ؟محمد ﷺ ورته وفرمايل : اسلام دادى چې ستا زړه الله ته تسليم شي ، او بل داچې مسلمانان ستا له ژبې او لاسونو څخه سالم پاتې شي .

هغه وويل : كوم يو اسلام افضل دى ؟ هغه ﷺ وفرمايل : ايمان ، هغه وويل : ايمان څه شې دى ؟ هغه ﷺ وفرمايل : ايمان دادى چې ته په الله ، دهغه جل جلاله په ملائكو ، كتابونو ، ټولو رسولانو اولـه مرګ نه وروسته په ژوندون باندې ايمان راوړې . هغه وويل كوم يو ايمان غوره دى ؟ هغه ﷺ وويل هجرت . هغه وويل هجرت څه ته وايي ؟ محمد ﷺ ورته وفرمايل : چې ته بدكارونه پريږدې . هغه وويل كوم يو هجرت بهتر دى ؟ هغه ﷺ ورته وفرمايل جهاد .

هغه وويل : جهاد څه شې دى ؟ محمد ﷺ ورته وويل : چې ته كله دكفارو لـه لښكرو سره مخامخ شې نو ورسره قتال وكړې . هغه وويل : كوم يو جهاد بهتر دى ؟

محمد ﷺ وفرمايل : دچاداس پښې چې غوڅې شي اوپخپله دده هم وينه تويې كړې شي.

الله تعالى دې په تارحم وكړي وګوره چې نبي كريم ﷺ جهاد څنګه داسلام دخلاصي خلاصه ګرځولې ده . او دا على الاطلاق لـه ټولو اعمالو نه غوره دى.

وروى البخاري عن عائشة رضى الله عنها قالت : يا رسول الله : نرى الجهاد افضل الاعمال ، افلانجاهد؟

[1] ـ مسن احمد : ٤/ ١١٤ . شعب الايمان للبيهقي : ٩/١ والحديث صحيح .

قل ﷺ : لكُنَّ افضل الجهاد ، حج مبرور )) [۱]

بخاري لـه عائشي ﷺ نه روايت کړی دی هغه وايي چې مارسول الله ﷺ ته وويل : يـارسـول الله ! مـونږ جهـاد پـه ټولـو اعمـالو کې ښـه او غـوره ګڼو ، ايامونږ جهـاد ونکړو ؟

هغه ﷺ وفرمايل : لېکن ستاسو لپاره بهترين جهاد مبرور حج دی.

(( وروى ابن ماجه وابن خزيمه عن عائشة رضى الله عنها قالت : قلت

يارسول الله! هل على النساء من جهاد ؟

قل عليهن جهادٌ لا قتالَ فيه ، الحج والعمرة )) . [۲]

ابن ماجه او ابن خزيمه لـه عائشه رضىالله عنها څخه روايت کړی دی: هغه رضي الله عنها وايي : ما وويل : ای دالله رسوله ! ايا پرښځو باندې جهاد شته ؟ هغه ﷺ وفرمايل هو ! پرښځو باندې داسې جهاد شته چې قتال پکې نشته يعنې حج او عمره

ابن عساکر لـه مفضل بن فضاله نه روايت کوي چې زما پلار وايي:

څه خلکو لـه امير المؤ منين عبدالملک بـن مـروان سره دليدنـې لپـاره اجازه وغوښتله هغـه پدې وخت ډير سخت ناروغ و . هغوی چې ورتـه ورغلل نو ده ورته وويـل : تاسې په داسې وخت کې زما خواته راغلي ياست چې زه دآخرت په طرف روان يم اوله دنيـا نـه مخ آړوم ، ماخپل ټول عملونه په ياد کړل اوپه ټولو کې مې هغه عمل غوره ومونـد چې مـادالله په لاره کې جهاد کړی و په کوم وخت کې چې لـه ماسره زما داحکومت او اقتـدار نـه وي نوتاسې خلک زمونږ دحکمرانانو په دغو خبيثو دروازو باندې لـه چکر وهلو نه ډډه وکړئ. [۳]

---

[۱]_ اخرجه البخاري برقم : ۱۹۱۵

[۲]_ اخرجه ابن خذيمه برقم : ۳۸۷۴ وابن ماجه : ۲/ ۹٦۸ واسناده صحيح .

[۳]_ الكامل في التاريخ لابن الاثير : ٤/ ٥٢٠.

دلته عبدالملک بن مروان خلک دپاچایانو له قرب نه منع کړل.

عبدالملک بن مروان له امارت نه وړاندې له تابعي علماوو څخه وو او روم ته دجهاد لپاره يې په سمندر کې سفر کړی دی.

خطيب بغدادي پخپل کتاب تاريخ بغداد کې دمحمد بن الفضيل بن عياض روايت نقل کړيدی چې ما عبدالله بن المبارک په خوب کې وليد او پوښتنه مې ترينه وکړه چې تاکوم يو عمل ښه اوغوره وموند؟

هغه راته وويل همغه عمل چې زه پکې مشغول وم . ماورته وويل دسرحدونو حفاظت او جهاد ؟ هغه وويل هو.

ماورته وويل الله له تاسره څه وکړ؟ هغه وويل الله تعالى ماته دومره زياته بخښنه وکړه . چې له هغې نه وروسته نوره بخښنه نشته .[1]

يو ځل دامام احمد بن حنبل رحمه الله عليه په وړاندې دجهاد يادونه وشوه نو هغه رحمه الله ډير وژړل او ويې ويل چې هيڅ يو نيکي له دې نه مخوره نه ده . اوله دشمن سره دمخامخ کيدو سره بل هيڅ شی نشي برابريدلې .

پخپله قتال ته مخامخ کيدل له ټولونه غوره عمل دی . کوم خلک چې له دشمن سره مقابله کوي او مخامخ ورسره جنګ کوي همغه داسلام او مسلمانانواودهغوی دحريمونو دفاع کوي . له دې نه ورسته به کوم عمل غوره وي ؟ حال داچې نور خلک ښه په امن کې ناست وي او مجاهدين دويرې په حالت کې شپې ورځې تيروي اودالله په لاره کې خپل ژوند قربانوي ؟[2]

---

[1]_ تاريخ بغداد للخطيب البغدادي : ١/ ١٦٨.

[2]_ المغني لابن قدامة ٨/ ٣٤٨ _ ٣٤٩.

# فصل

## الله تعالى ته جهاد له ټولونه محبوب عمل دی

(( روى الترمذي والبيهقي والحاكم عن عبدالله بن سلام ﷺ قل : قعدنا نفر من اصحاب رسول الله ﷺ فقلنا: لونعلم اى الاعمال احب الى الله عملناه . ))

فانزل الله عز وجل:

﴿سَبَّحَ لِلَّهِ مَا فِي السموات وَمَا فِي الْأَرْضِ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ۝. (يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفْعَلُونَ۝. كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللَّهِ أَنْ تَقُولُوا مَا لَا تَفْعَلُونَ ۝. ( إِنَّ اللهَ يُحِبُّ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِهِ صَفًّا كَأَنَّهُمْ بُنيَانٌ مَرْصُوصٌ۝. [الصف:۱- ٤] .

فقراها علينا رسول الله صلى الله عليه وسلم .[۱]

ترمذي ، بيهقي او حاكم لـه عبدالله بن سلام ﷺ نه روايت كوي چې هغه وويل :

مونږ درسول الله ﷺ څو اصحاب په يو ځاى كې ناست وو . مونږ وويل: كه چېرې مونږ پوه شو چې كوم يو عمل الله تعالې ته محبوب دى نو همغه به وكړو . نو الله تعالې دغه آيت شريف نازل كړ.

ترجمه : الله تـه تسبيح وايي ټول هغه چې په اسمانونو او زمكه كې دي او هغه غالب او دحكمت څښتن دى . اى مومنانو ! هغه څه ولې وايئ چې كوئ يې نه ، دالله په نزد ډيره لويه ګناه ده هغه څه چې وايئ اوكوئ يې نه . بيشكه الله تعالې هغه خلك

---

[۱]_ اخرجه الترمذي : ٥/ ٨٥ والبيهقي في السنن الكبرى ٩/ ١٥٩_ ١٦٠ والحاكم : ٢/ ٦٩.
والحديث صحيح .

خوښوي چې دالله په لاره کې قتال کوي دمحکم بنياد پشان . او حضرت محمد ﷺ دغه آيت مونږ ته ولوست

او بيهقي له عبدالله بن سلام نه يو بل روايت داسې نقل کړی دی.

درسول الله ﷺ لـه اصحابو نـه څو تـنو وويـل : کـه مونـږ رسـول الله ﷺ تـه خپـل يـو استازې ليږلی وای چې لـه هغـه ﷺ نـه دهغـو اعمالو پوښتنه کړې وای چی دالله ډير خوښ دي . لـه مونږ نه هيڅوک دهغه ﷺ خواته ورنغې .او مونږ داغوښتل چې په دی باره کې له هغه ﷺ نه پوښتنه وکړو

بيا محمد ﷺ دغه کسان يويو .راوغوښتل تردې چې ټول سره راجمع شول او دهغوی په باره کې سبح لله مافي السموات سوره نازل شو.

ابن سلام وايي چې رسول الله ﷺ داټول مونږ ته ولوست .[1]



## فصل

## دالله په نزد مجاهد له ټولو خلکو نه غوره دی

قـال الله تعـالي:﴿ فَضَّـلَ الـلَّهُ الْمُجَـاهِدِينَ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ عَلَى الْقَاعِدِينَ دَرَجَـةً وَكُـلًّا وَعَـدَ الـلَّهُ الْحُسْنَى وَفَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ أَجْرًا عَظِيمًا۝ دَرَجَاتٍ مِنْهُ وَمَغْفِرَةً وَرَحْمَةً وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا﴾ (النساء :۹۵- ۹۶).

الله تعالې په سر او مال سره جهاد کوونکو ته په کورکې دناستو خلکو په نسبت ډيره غټه درجه ورکړی ده . که څه هم لـه هريو سره يې دجنت وعده کړی ده خو الله تعالې مجاهدينو ته په ناستو خلکو باندې دډيرلوی اجر په ذريعه فضيلت ورکړی

[1]ــ البيهقي في السنن الكبرى : ۹/ ۵۹ والحديث صحيح .

دی . هغوی لپاره دالله لـه لوری نـه لويی لويی مرتبې دي ، بخښنه او رحمت دی او الله تعالې بخښونکې او مهربان دی.

(( وروى البخاري ومسلم عن ابي سعيد الخدري ﷺ قال : (( اتى رجلٌ رسولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم ، فقال : اى النَّاس افضل ؟

قال : مومن يجاهد بنفسه وماله في سبيل الله.

قال: ثم من ؟

قـال : رجـلٌ معـتزل في شِـعْبٍ من الشِّعاب يعبدُ رَبَّه ، ويدعُ النَّاس من شره . )).[1]

بخاري او مسلم لـه ابي سعيد الخدري ﷺ نه روايت کوي چې يو سړی رسول الله ﷺ ته راغې او پوښتنه يې وکړه چې کوم خلک غوره دي ؟ محمد ﷺ وفرمايل : هغه مؤمن چې دالله په لاره کې پخپل ځان او مال سره جهاد کوي . هغه وويل بيا څوک ؟ محمد ﷺ وفرمايل : هغه سړی چې دغرونو په يوه ناوه کی ځان ته اوسيږي او دخپل رب عبادت کوي او خلکو ته شرنه رسوي.

(په عربي کې شعب ددوه غرونو ترمنځ پراخي ناوې يادرې ته ويل کيږي)

امام نووي رحمه الله عليه وايي چې په حديث کې مطلق شعب مراد ندې بلکې لـه دی‌نه انفراد او اعتزال يعنې ګوښه والې مراد دې . اګر چې پخپل کور کې وي . اوپه حديث کې يې دشعب يادونه ځکه کړی ده چې داغالباً لـه خلکو نه خالي وي.

(شرح النووي على صحيح مسلم :۱۳/ ۳۴.

محمد ﷺ په صراحت سره ويلي دي چې جهاد له ګوشه نيشی نه غوره دی او په دی باندې دالله تعالې داقول دلالت کوي:

---

[1] اخرجه البخاري برقم : ۲۷۸٦ ومسلم برقم ۱۸۸۸

﴿لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ غَيْرُ أُوْلِي الضَّرَرِ وَالْمُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ ﴾ . [ النساء : ٩٥] .

بی لـه عذره ناست مومنان لـه هغو مجاهدينو سره برابر نـه دي چـه دالله په ليار کې پخپلو مالونو او ځانونو سره جهاد کوي .



# فصل

## له جهاد سره هيڅ شي نشي برابريدلې

(( عن ابي هريرة ﷺ قال : يارسولَ الله ! مايعدلُ الجهادَ في سبيل الله :

قال ﷺ .

فاعادوا عليه مرتين او ثلاثاً ، كل ذالك يقول : لاتستطيعُونَه.

ثم قال : مثل المجاهد في سبيل الله كمثل الصائم القائم القانت بايات الله ، لاَيَفْتُرُ من صلاةٍ ولا صيام حتى يرجعَ المجاهدُ في سبيل الله .[1] ))

له ابي هريره ﷺ نه روايت دې چې ما محمد صلى الله عليه وسلم ته وويل : اى دالله رسوله ! له في سبيل الله جهاد سره څه شي برابريدلې شي ؟ هغه ﷺ وفرمايل : تاسې دهغه توان نلرئ.

دوه درې کرته مو داپوښتنه تکرار کړه ؛ خو هريو ځل يې همدا يې وويل چې طاقت يې نـه لـرئ ؟.بيـا يـې وفـرمايل : دالله پـه لاره کـې دمجـاهد مـثال دهغـه روژه دار ،اودهغـه لمونځ گذار چې مسلسل په قيام کې ولاړ دالله جل جلاله دآيتونو تلاوت

[1] اخرجه مسلم برقم : ١٨٧٨

کوي پشان دی چې نه لـه روژې نه ستړی کيږي اونه لـه لمانځه نه تردې چې دالله دلارې مجاهد بېرته راشي.

(( عن ابي هريرة ﷺ انَّ رجلا قل : يارسول الله !

دلني على عمل يعدل الجهادَ ؟

قـال لا اجـدُ هُ : ثـم قـال : هـل تستطيعُ اذا خرج المجاهد ان تدخل مسجدكَ

فتقومَ ولا تفتر وتصوم ولا تفطر .؟

قل الرجل : ومن يستطع ذلك[1] ؟.))

بخاري .لـه ابي هريـره ﷺ څخـه روايت کړيدی چې يوسړي ووېل : ای دالله رسوله ! ماتـه داسې يـو کـار وښايه چې لـه جهاد سره برابر وي . محمد ﷺ وفرمايل : زه داسې کار نـه وينم چې له جهاد سره برابر وي . بيا يي وفرمايل : ايا ته ددې وس لرې چې کله مجاهد جهادتـه ولاړشي لـه همغـه وخت نه خپل مسجد ته ننوځي او مسلسل په لمونځ ودريږي او ستړي نشي . او روژې ونيسي مګر ماتې يې نکړي ؟ سړي ورته وويل يا رسول الله ددی طاقت او توان څوک لرلی شي.

اصحابو پشان خلکو ددې طاقت او توان درلود چې داسې يو عمل ترسره کړي چې لـه جهاد سره برابر ثواب ولري . ددې سره سره چې اصحابان دلوې همت خاوندان وو نفسونه يې پاک وو. لـه ديني شهامت نه ډک وو هريوه کمال ته به يې منډه وهله، لـه رسول الله ﷺ سره دصحبت پـه وجه يې اجرونه ډير وو پـه اوچتو اوچتو جهادونو کې شريک شوي وو اوپه جهاد کې يې اوچتو مرتبو ته ځالونه رسولي وو .. کـه هغوی لـه جهاد سره برابر کوم عمل ندی موندلی نو مونږ غونډې خلکو زړونـه بـه څنګه لږ غونډې عملونو سره سکون ترلاسه کړي اوڅنګه بـه پـه غير لـه زيار باسلو زمونږ سترګې يخې شي سره لـه دې چې زمونږ پـه عملونو کې درياو احتمال زيات ده داخلاص نشتوالی پکې دې . اوپه زړونو کې مو ډول ډول سوچونه او دسيسې پرتې

[1]ـ اخرجه البخاري برقم: ٢٧٨٥.

دي . . اى الله ! زمونږ زړونه لـه دغه غفلت نه بيدار کړه . او جهاد لپاره توفيق راپه نصيب کړه . څکه دهر خير غوښتنه يواځې لـه تاکيږي . او دګناهونو دپريښودلو اونيکيو دکولو توفيق ورکوونکې يواځې ته يي .

(( اخرج ابن عساكر عن ابي الغادية المزني قل : سمعت عثمان بن عفان ﷺ وهو يخطب على المنبر ويقول : يا اهلَ المدينةِ : الا تاخذون بحظّكم ونصيبكم من الجهاد في سبيل الله ؟ الا ترون اخوانكم من اهل الشام ، واخوانكم من اهل مصر ، واخوانكم من اهل العراق ،ووالله ليومٌ يعمله احدكم وهو يجاهد في سبيل الله خيرٌ من الف يوم يعمله في بيته صائما لايفطر، وقائما لايفتر..... )).

ابن عساكر لـه ابي الغاديه المزني څخه روايت کوي هغه وايي چې: لـه عثمان بن عفان ﷺ څخه مې واوريدل ، هغه په منبر باندې په خطبه کې ويل : اى دمدينې خلکو! ايا جهاد في سبيل الله کې خپل حصه او برخه نه آخلئ؛ ايا تاسې دشام او دعراق او مصراوسيدونکو ورونو ته نه ګورئ؟

په الله قسم له تاسو نه چې څوک دالله په لاره کې يوه ورځ جهاد کوي لـه هغو زرو ورځونه بهتر دى چې پخپل کور کې پرله پسې روژې نيسي اونـه يې ماتوي او مسلسل په لمانځه ولاړ وي او نه ستړيږي.



# فصـــل

## جهاد په ګوښه کې له ناستې اوپه مسلسل عبادت کې له مشغوليدو نه غوره دی

له دی نه مخکې دبخاري او مسلم په حواله دابي سعيد الخدري ﷺ حديث تير شو په هغه کې رسول الله ﷺ ددې خبرې وضاحت کړی دی چې په ټولو خلکو کې غوره انسان دالله په لاره کې جهادکونکی دی او بيا لـه دی نه وروسته هغه سړی غوره دی چې دالله دعبادت لـه پاره يې خپل ځان ګوښه کړی وي .

((عـن ابـي هريـرة ﷺ ، قـال مَرَّ رجلٌ من اصحاب رسول الله صلى‌الله عليه وسلم بِشِعْبٍ ، فيهِ عُيَيْنَةٌ من ماءٍ عُذبةٍ ، فقال : لو اعتزلت النَّاس فاقمت في هذا الشعبِ ! ولن افعلُ حتى استأذن رسول الله ﷺ .

فذكـر ذلكَ لِرَسُول الله ﷺ . فقال لـه : ((لاَتفعل فَاِنَّ مقامَ . احدِكُم في سبيل اللهِ افضـلُ مِـنْ صلاتِهِ في بيتِهِ سبعين عامـاً. الا تُحِبُّونَ ان يغفـرالله لكم ويدخِـلكُمْ الجنة ؟ اغـزوا في سبيل الله ، مـن قاتَلَ في سبيل اللهِ فُواقَ ناقةَ ، وجبتْ لَـهُ الجنَّةَ ))[1]

له ابي هريره ﷺ نه روايت دې . هغه وايـي چې دنبي کريم ﷺ لـه اصحابو نه يو اصحابي لـه يوې ښکلې درې نه تير شو چې په هغې کې دخوږو اوبو چينې وې . هغه وويل که چېرته زه لـه خلکو نه ګوښه کيدل وغوارم نو په دی دره کې به اوسم او داکار به هرګز ونکړم ترڅو پورې چې لـه رسول الله ﷺ نه اجازه ونه غوارم.

---

[1] _ اخرجه الترمذي : ۱۳/ ۱۰۱ _ ۱۰۲ . والبيهقي : ۹/ ۱۶۰ _ ۱۶۱. والحاكم ۲ / ۶۲ والحديث حسنن.

هغه محمد ﷺ ته داخبره وکړه . هغه ﷺ ورته وفرمايل : داسې مکوه ځکه چې دالله په لاره کې ستاسې دهريولږ غونډې دريدل دهغه اوياکلو دهغولمونځونو نه غوره دی چې پخپل کور کې يې کوی . ايا ته دانه خوښوې چې الله ستاسپاره بخښنه وکړي اوپه جنت کې دی داخل کړي ؟

دالله په لاره کې غزا کوئ چاچې دالله په لاره کې داوښې دلوشلو ترمنځ دوقفې په اندازه هم جهاد وکړ نو هغه لپاره جنت واجب وګرځيد.

په حديث شريف کې چې دفواق ناقة کوم لفظ راغلې دې ددی مطلب دادی چې کله اوښه ولوشلې شي نو لږ وخت لپاره لوشل يې بندوي او خپل بچې ورته خوشی کوي ترڅو اوښه هغه پې بېرته راښکته کړي چې پخپله سينه کې يې راټې کړې وي او بېرته يې ولوشي دالږ غونډې وخت وي . په دی حديث کې دالفظ ددی لپاره استعمال شوی دی چې خلک جهاد ته ترغيب کړي او ويې هڅوي.

داحديث شريف ددې خبرې صراحت کوي چې جهاد او غزا دعبادت لپاره له ګوښه کيدونه ډير افضل دې.

دادغور او فکر ځای دی چې يو اصحابي چې په حقيقت کې دخپل خلوت او عبادت حق اداکولې شو اوروزي يې هم بالکل حلاله وه مګر بيا هم رسول الله صلی الله عليه وسلم هغه ته دعبادت له پاره دګوښه کيدو اجازه ورنکړه بلکې دجهاد کولو تاکيد او حکم يې ورته وکړ نو زمونږ غونډې خلکو ته دجهاد پريښودل څنګه رواکيدې شي ؟

حال داچې زمونږ عملونه هم کمزوري او دباور وړ نه دي او زمونږ ګناهونه هم ډير زيات دي چې نجات ترينه ممکن نه دې . زمونږ اندامونه هميشه په ګناه کې اخته او نفسونو مو هغه څه کوي چې الله ترې منع کړي يو په خورا کونو کې مودحرامو شانيې دی او داسې سوچونه مو په ذهنونو کې دي چې خدای جل جلاله پرې خبر دی او زړونه مو له اخلاص نه خالي دي. اوپه داسې مصيبتونو کې راګير يو چې بې له تکليف نه خلاصيدل ترې مشکل دی .

په ياد وساتئ چې په مونږ کې هغه سړې بهتر دې چې الله تعالې ورته دجهاد کولو توفيق ورکړي او لاره ورته آسانه کړي . هغه سړې بدبخت او شقي دی چې دمرګ له ويرې

اوله دنيا سره دميني په وجه جهاد پريږدي اوپه تاوان کې غورځيږي.ای الله ته مونږ ته جهاد کول آسان کړې او مونږورته اماده کړې او ته مو دهغو خلکو له جملې څخه وګرځوې چې دکوم کار اراده وکړي نو کوي يې او نيکو افعالو او اقوالو توفيق ورته تا ورکړې وي بيشکه ته نژدې او دعاقبلوونکي يې.

امام عبدالله بن مبارک دجهاد او غزا ډير زيات حريص اوشوقي و.خلک به يې دجهاد لپاره هڅول او هغه څوک به يې بدګاڼه چې دعبادت لپاره به ناست وو اوله جهاد کولو نه به يې ډډه کوله.

محمد بن ابن ابراهيم بن ابي سکينه وايي چې : مونږ په طرسوس کې دعبدالله بن مبارک سره يو ځای دسرحدونو حفاظت کاوو . ماحج ته دتللو اراده وکړه او فضيل بن عياض دکعبې په څنګ کې په مسجد حرام کې معتکف و.

ابن المبارک ابن عياض ته په يو خط کې وليکل.

ياعابدالحرمين لوابصرتنا لعلمت انك في العبادة تلعب

من كان يخضب خيله بد موعه فنحو رنا بدمائناتتخضب

اوكان يتعب خيله في باطل فخيو لنا يوم الصبيحة تتعب

ريح العبير لكم ، ونحن عبيرنا رهج السنابك والغبار الاطيب

ولقد اتانا من مقال نبينا قول صحيح صادق لايكذب

لايستوي وغبار خيل الله في انف امرىء ودخان نار تلهب

هذا كتاب ينطق بيننا ليس الشهيد بميت لايكذب

قـال : ولما لقيـت الفضيل بن عياض عند العكبة ناولته رسالة ابن المبارك لـه،فلما قراها ذرفت عيناه بالدمع ، وقال : صدق ابو عبد الرحمن ونصحني .

ای په حرمینو کې عبادت کوونکیه ! که چېرته مونږ ووینې نو ته به پوه شې چې له عبادت سره لوبې کوې.

څوک چې خپل اننګي پخپلو اوښکو سره لمده وي نو زمونږ مری زمونږ په وینو باندې سرې دي.

که دهغوی اسونه په عبثو کارونو کې ستړی کیږي . نو زمونږ اسونه دیرغل په ورځ ستړي کیږي.

دعنبر خوشبوی دی تاسې ته مبارک وي . زمونږ خوشبوی خو داسونو لـه پښونه الوتونکې خاوره اودالله دد رې ږاکه دوړه ده.

یقیناً مونږ تـه دخپـل نبي داسې فرمان راغلی دی چې بیشکه صحیح دی او دروغ پکې نشته چې دیـو سړي په پوزه کې دالله دلارې خاوره او ددوزخ لوګې دواړه نشي یوځای کیدی . دالله داکتاب زمونږ په منځ کې اعلان کوي چې شهید مړنه دی . او داخبره رښتیا ده محمد بن ابراهیم وایي چې کله ما په مکه کې فضیل بن عیاض ولید نو دابن مبارک خط مې ورته ورکړ . هغه چې داخط ولوست نوله سترګونه یې اوښکې روانې شوې او ویې ویل چې ابو عبدالرحمن رښتیا ویلي دي او ماتـه یې نصیحت کړی دی.[1]



[1]_ سیر اعلام النبلاء للذهبي : ۸/ ٤١.

# فـصل

## مجا هد له ټولو خلکونه غوره اوپه الله ګران د ي

(( روی الترمذي والنسائي والحاكم ابن حبان عن ابن عباس ﷺ ان رسول الله ﷺ خـرج عـليهم وهـم جلوس في مجلس:فقال : الا اخبركم بخير الناس منزلاً؟

قلنا: بلى يارسول الله.

قل : رجل اخذ برأس فرسه في سبيل الله ، حتى يموت او يقتل.

الا أُخبركُم بالذ ي يليه ؟

قلنا: بلى يارسول الله.

قـل : إمرؤمعـتزل في شِـعبٍ ، يقيـمُ الصلاةَ ، ويوتي الزكاة ، ويعتزلُ شرور النَّاس .[1] )).

ترمذي ، نسائي،حاكم او ابـن حبان لـه ابن عباس ﷺ عنهما نه روايت نقل کړی دی چې رسول الله ﷺ پرمونږ باندی راغی او مونږ ناست وو.

هغه صلی الله عـليه وسلم وفرمايل : ايا زه تاسو ته دهغو خلکو خبر درنکړم چې په مرتبه کې له نورو خلکو نه غوره دي ؟

مونږ وويل ولې نه يارسول الله.! هغه ﷺ وفرمايل : هغه سړی چې ترمرګه پورې يې دالله پـه لاره کـې دخپـل اس واګـې پـه لاس کـې نيولـې وي او جهـاد کـوي .بيـا يـې

[1] ـ الترمذي : ۳/ ۱۰۲. والنسائي : ۵/ ۸۳ والحاكم : ۲/ ۶۷ وموارد الظمآن . ص : ۳۸٤ والحديث حسن.

وفرمایل : ایا تاسې لـه هغه چانه خبر نه کړم چې مجاهد ته نژدې دی ؟ مونږ وویل : ولې نه یارسول الله ! هغه ﷺ وفرمایل : هغه سړی چې په یوه دره کې ځانله دګوښې په حالت کې لمونځونه اداکوي . زکات ورکوي او دخلکوله شرونونه خپل ځان ساتي .لـه دی نه مخکې چې دابي سعید الخدري کوم حدیث تیر شو هغه هم دغه حدیث ته ورته معنی لري.



# فـصـل

## دمجاهد خوب دنوروخلکو د ټولې شپې د تهجد او دورځې له روژې نه بهتر دی

(( قالَ ابو هريرةَ ﷺ : اَيَسْتَطِيْعُ احدُكُمْ ان يقومَ فلا يفتر ، ويصُوم فلايفطر ماكان حيا ؟

قيـــل : ومن يطيق ذالك يا ابا هريرةَ ؟

قـــال : والـــذي نفسي بيده اِنَّ نومَ المجاهد في سبيل الله افضل منه [1] )) .

حضرت ابو هریره ﷺ فرمایي : ایا لـه تاسو نه څوک ددې توان لري چې ټول عمر په لمانځه کې بوخت وي او ستړي نشي ، مسلسلې روژې ونیسي او ناغه پکې ونکړي؟ خلکو ځواب ورکړ چې ای ابو هریره! ددی لاڅوک توان لرلې شي .

[1] الجهاد لابن المبارك : ١/ ٩٥

حضرت ابو هريره ﷺ وفرمايل : قسم دی په هغه ذات چې زما ځان دهغه په لاس کې دی بيشکه دالله په لاره کې دمجاهد خوب لـه دی نه غوره دی.
کله چې دالله په نزد دمجاهد خوب دومره لويه درجه او عزت لري نو ددښمن په مقابل کې قتال به څومره لويه درجه ولري . کلـه چې دهغوی دغافل دامرتبه ده نو دهغوی دعـامل بـه څومـره لويـه مرتبه وي ؟ او کلـه چـې دهغـوی دخـوب کوونکـي دامرتبه ده نـو دهغوی دتهجد کوونکي به څومره لويه مرتبه وي ؟ کله چې دهغوی د بوټانو دتسمودومره قيمت دی نو دهغوی دغټو عملونو بـه څومـره ډير ثواب وي ؟ داټول دالله تعالي ښکـاره فضـل دی او دی لپاره زياړکښو خلکو ته ملاتړل او پائڅې رابيډوهل پکار دي او کوم خلک چې لـه دی نه محروم دي هغوی ته ژړا پکارده او څوک چې لـه جهاد نـه عـلاوه خپـل ژوند پـه بل څه کې ضائع کوي هغوی ته په دی باندې خفګان پکار دي . ای الله مونږ ته زمونږ دنجات اسباب او لارې وښايې . اوپه هغه باندې تـلل راتـه آساني کـړې ، درحمت او خصوصي فضـل پـه سترګه مونږ ته اوګورې . زمونږ عمـر يقينـاً په بې مقصده او بې فايدوکارونه کې تيرشوې دی خو ته په هرڅه قادر يې زمونږ امداد او نصرت وکړې .

(( روى النسـايي وابـن المـبارك عن ابي هريرة رضى اله عنه قل:(( سمعتُ رسول الله ﷺ يقول : إنَّ مثلَ المجاهِدِ في سبيل الله – واللهُ اعلمُ بمن يُجاهدُ في سبيله – كمثل القائم الصائم الخاشع الراكع السَّاجد .)) [1]

ژباړه :نسـائي او ابن المبارک لـه ابي هريره ﷺ نـه روايت کـوي . هغـه وايـې : مالـه رسول الله ﷺ نـه واوريـدل چې ويل يې : بيشکه دالله په لاره کې دمجاهد مثال: _ الله هغه څوک ښه پيژني چې دهغه په لاره کې جهاد کوي ( يعنې نيت يې خالص دالله جل جلا لـه رضـاوي ) _ دهغـه چـا پـه شـان دې چـې ټـول عمـر لمونـځ کوونـکی روژه نيوونکی، لـه الله نه ويريدونکې ، رکوع کوونکی او سجده کوونکې وي.

[1] _ اخرجه النسائي : ٦/ ١٨ لابن المبارك في الجهاد ١: ١٦٥ والحديث صحيح :

(( روى احمد عن النعمان بن بشير الانصاري رضى الله عنهما قل : قل رسول الله صلى اله عليه وسلم مثلُ المجاهِدِ في سبيل الله كمثل الصَّائمِ نهاره ، القائِمِ ليله حتى يرجعَ متى يرجع [1] )).

ژباړه :احمد لـه نعمان بن بشير انصاري ﷺ نه روايت کوي هغه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل : دالله په لاره کې دجهاد کوونکې مجاهد مثال دهغه چا په شان دی چې ټوله ورځ روژه نيسي او ټوله شپه دتهجد لمونځ اداکوي ترڅو پورې چې بېرته نه وي راغلي اودا نده معلوم چې کله به راځي.



# فصل

## الله تعالې مجاهد ته په جنت کې سل د رجې زياتې ورکوي

قال الله تعالى :

﴿فَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ عَلَى الْقَاعِدِينَ دَرَجَةً وَكُلًّا وَعَدَ اللَّهُ الْحُسْنَى وَفَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ أَجْرًا عَظِيمًا۝ دَرَجَاتٍ مِنْهُ وَمَغْفِرَةً وَرَحْمَةً وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا﴾ ( النساء : ٩٥_ ٩٦.)

الله پاک هغه کسان چې په خپلو مالونو او ځانو سره جهاد کوي پرهغو چې ناست دي په درجه کې لوړ کړي دي . الله پاک لـه ټولو سره دښې جزا وعده کړې ده . او

[1] _ اخرجه احمد في المسند : ٤/ ٢٧٢ واسناده حسن لغيره

مجاهدین یې په ناستو خلکو په لوی اجر سره لوړ کړي دي دالله له لوري ورته درجې او مرتبې دي ببښنه او رحمت دې . او الله پاک ښه ببښونکي اوډیر مهربان دی .

له حضرت ابو هریره ﷺ روایت دی چې محمد ﷺ وفرمایل:

(( مَنْ امَنَ بِاللهِ وَرَسُولِهِ واقام الصَّلاةَ وآتى الزكاة وَصَامَ رَمَضانَ كَانَ حقًّا عَلَى الله اَنْ يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ ، هَاجَرَ فِيْ سَبِيلَ اللهِ اَوجَلَسَ فِي اَرْضِهِ الَّتِيْ وُلِدَفيها

قالوا : يارسول الله : افلاننبىءُ الناس بذالك ؟

قال : ان في الجنة مائةَ درجة ، اعدها اللهُ للمجاهدين في سبيله ، مابين الدرجتين ، كما بين السماء والارض ، فاذا سالتم الله فاسألوه الفردوس ، فانه وسط الجنة واعلى الجنة ، ومنه تفجَّرُ انهارُ الجنة ، وفوقه عرش الرحمن [1] )).

ژباړه : چاچې په الله او دهغه په رسول ایمان راوړ، لمونځ یې قائم کړ ، زکات یې ورکړ . او دروژې دمیاشتې روژې یې ونیولې . نو په الله باندې لازم دي چې هغه جنت ته بوځي . اګر که دالله په لاره کې هجرت یې کړی وي یایې نه وي کړې او پخپل هغه وطن کې ناست وي چې هلته زیږدلی وي .

خلکو وویل : یارسول الله ! ایا مونږ خلک له دی نه خبر نه کړو ؟ محمد صلی علیه وسلم وفرمایل : بیشکه په جنت کې سل درجې دي . الله پاک داهغو مجاهدینو لپاره تیارې کړې دي چې دالله په لاره کې جهاد کوي . دهرې یوې درجې په منځ کې دآسمان او زمکې ترمنځ فاصلې هومره فاصله ده . کله چې تاسې له الله نه سوال کوئ نو دفردوس سوال ترې نه کوئ ځکه چې دادجنت په منځ او اوچت ځای کې دی . له همدې ځای نه دجنت ویالې بهیږي او له پاسه یې درحمن عرش دی .

---

[1] ـ اخرجه البخاري برقم : ۲۷۹۰

(( وروى مسلم عن ابي سعيد الخدري ﷺ ان رسول الله ﷺ قل : من رضى بالله ربًا وبا لاسلام ديناً ، وبمحمدٌ رسولاً ، وجبت له الجنة.

فعجب لها ابو سعيد ، فقال : اَعِدْهَا عَلَيَّ يارسول الله !.

فاعَـا دهـا عـليه ، ثم قل : (( واُخرى يرفعُ الله بها للعبد مائة درجة ، مابين كل درجتين كما بين السماء والارض.

قل : وما هي يارسول الله ؟

قل : الجهاد في سبيل الله )).[1]

مسلم لـه ابي سعيد الخدري ﷺ نه روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چې په الله باندې درب په توګه اوپه اسلام باندې ددين په توګه اوپه محمد ﷺ باندې درسول په توګه رضاشو دهغه لپاره جنت واجب وګرځيد.

په ابو سعيد ﷺ باندې داخبره ډير ښه ولګيده اوويې ويل چې يارسول الله ! داخبره ماته يو ځل بيا تكراركړئ.

نو محمد ﷺ ورته بيا تكراره كړه . بيا يې وفرمايل:

يو عمل داسې دى چې دهغه په كولو سره الله تعالې دبنده سل درجې اوچتوي چې دهريوې درجې ترمنځ دآسمان او زمكې هومره فاصله ده . هغه وويل : يارسول الله ! هــغـه كـوم كـار دى ؟ محمد ﷺ ورته وفرمايل : دالله په لاره كې جهاد كول .



[1] ــ اخرجه مسلم برقم ١٨٨٤

# فـصل

## د د ې امت سیاحت جهاد د ی

الله تعالی دهغو مومنانو صفت بیان کړېدی چې خپل ځانونـه او مالونـه یې په الله باندې خرڅ کړیدي .

﴿التّـائبونَ الْعَبِدُوْنَ الحمدُوْنَ السّئحُوْنَ الرّاكَعُونَ السَّجِدُوْنَ﴾ . [ التوبه ۱۱۲]

الله تـه رجوع کوونکې ، عـبادت کوونکې ، حمد کوونکې سیاحت کوونکی ، رکوع کوونکې او سجده کوونکې . دلته لـه سیاحت نه مراد جهاد دی . ( السائحون ) یعنې جهاد کوونکې .

(( عن ابي اُمامة الباهلي ﷺ : ان رجلاًاستأ ذن رسول الله ﷺ في السیلحة .

فقل ان سیلحة امتي الجهاد في سبیل الله .[1] )).

لـه ابي امامـه الباهلي نـه روایت دی چې یو سړي لـه محمـد ﷺ نـه دسیاحت اجازه وغوښتله. نـو محمـد ﷺ ورتـه وفـرمایل چې زما دأمت سیاحت دالله په لاره کې جهاد دی.

داخبره دې ښکاره وي چې سیاحت پـه زمکـه کـې دګـرځیدو راګـرځیدو حـالاتو تـه دعبرت په سترګه کتلو اولـه بدو خلکو نه دتیښتې لاره خپلولو ته ویل کیږي .

رسول الله ﷺ جهـاد تـه ځکـه سیاحت ویلي دي چې پـه دی کې لـه وجودنه تیښته او دالله په لور دالله تعالی پر وعدو یقین کولو سره ورتلل دي.

ځرنګه چې الله دمومـنانو ځانونه دجنت په بدل کې آخستې دی نوېدې وجه هغه خپل ځان تـه دانصاف پـه نظر ګوري او دده آخستونکي الله تعالی تـه دځان دحواله کولو

---

[1] ــ احرجه ابو داود : ۳/ ۱۲ والبیهقي في السنن الکبری : ۹/ ۱۶۱ . والحاکم : ۲/ ۷۳.. والحیث صحیح.

لپاره دډنیا دپریښودو نیت کوي . لږ غونډې غور وکړئ چې دهغو دوه کسانو ترمنځ څومره فرق دی چې یو دخپل نفس دخوشالولو په خاطر سیل او سیاحت کوي او بل کس دخپل ځان دقربانولو لپاره ګرځي یقیناً چې همدغه کس رښتونې سیاح دې او داهمغه کامیاب سوداګر دې چې لویه ګټه اوستره بریا ترلاسه کوي.



# فصل

## دالله تعالی په لاره کې جهاد داسلام لوړه څوکه ده

(( عن معاذ بن جبل ﷺ : قال : كُنَّا مَعَ رسول الله ﷺ في غزوة تبوك ، فقال : ان شئت انبأتُكَ بِرأس الامرِ وعمودِهِ وذروةِ سنامِهِ ؟

قلت : اجل يارسول الله ! قال : اما رأس الامر فالاسلام ، واما عموده فالصَّلاة ، وأما ذروة سنامه فالجهاد )) .[1]

له معاذ بن جبل ﷺ نه روایت دی چې مونږ دتبوک په غزا کې له محمد ﷺ سره وو هغه ﷺ وفرمایل : که چېرته ته غواړې نو زه به تاته ددین سر ، بنسټ ، ستنه او اوچتوالې بیان کړم . ماوویل یارسول الله ! ضروریې بیان کړئ.

هغه ﷺ وفرمایل : دکار سر او بنیاد اسلام دې ، ستنه یې لمونځ او اوچته څوکه یې جهاد دی .

بیشکه چې اسلام ددین سر او بنیاد دی ځکه چې دیو مسلمان عمل ترهغه وخته پورې دالله په دربار کې نه قبلیږي ترڅو پورې چې اسلام ورسره نه وي او کله چې سر یې نه وي نو اعمال دهغه جسد پشان ګرځي چې سریې نه وي اودابیا داسې وي لکه

[1] ــ ترمذي ٤/ ١٢٤ ــ ١٢٥ واحمد٥/ ٢٣١ حاكم / ٧٦ والحديث صحيح بطرقه الكثيرة .

تش کالبوت چې روح پکې نه وي . هـ دا وجه ده چې دقیامت په ورځ داسې اعمال دخور وورګرد په شان وي او هیڅ ګټه نه لري.

لمونځ ته ځکه دخیمې لـه ستنې سره مشابهت ورکول شوی دی چې په ټوله خیمه کې لومړۍ دخیمې ستنه ودرول کیږي بالکل همداسې دقیامت په ورځ لومړې دلمونځ حساب او کتاب کولې شي . کله چې ستنه ولاړه وي نو خیمه به هم ولاړه وي که نه نو په زمکه به غورځیږي همداسې دلمونځ حال هم دې ، که چیرې لمونځ قائم وساتل شي نو دین به ورباندې قائم وي . که نه نو ختم به شي . همدغه راز خیمه هله د ګرمي او یخني مخه نیولې شي چې ستنه یې ولاړه وي همدغسې دیو مسلمان اسلام هله رښتونې کیږي چې لمونځ کوي او داسلام لـه کبله دهغه وینه محفوظه پاتې کیږي.

محمد ﷺ جهاد داوښ لـه قب (کو) سره مشابه کړی دی ځکه چې کو په اوښ کې لـه ټولو نه اوچت ځای دی او داوښ یوځای هم لـه هغه سره نشي برابریدلې .

همدغه حال دجهاد هم دی او داسلام یو عمل هم دجهاد برابر نه دی بلکې جهاد لـه ټولو نه اوچت او غوره عمل دی . لکه چې رسول الله ﷺ دیو سوال ( چې لـه جهاد سره څه شې برابر دی ؟ )په ځواب کې وفرمایل چې زه د جهاد په برابر یو عمل هم نه وینم .

دلته یو احتمال داهم دې چې په دی حدیث کې محمد ﷺ داسلام تشبیه لـه اوښ سره ورکړی ده لکه څنګه چې انسان په اوښ باندې سوریږي او منزل ته یې رسوي همدغه شان مومن داسلام په ذریعه جنت ته رسیږي.

رسول الله ﷺ په اسلام باندې نطق کول داوښ لـه سر سره مشابه وګرځوله . څرنګه چې داوښ سر ته کتل اولاس وروړل آسان کار دې همدغه راز دشهادت کلمه ویل هم ټولو ته آسانه ده . بیا یې جهاد ته داوښ لـه قُب سره تشبیه ورکړه ځکه چې قب ته هغه سړې رسیدلی شي چې په خلکو کې زیات لوړ او یا مالدار وي . جهاد ته هم صرف هغه ایماندار خلک رسیدلې شي چې په مومنانو کې افضل وي.

دغه شان ددې احتمال هم کیدی شي چې محمد ﷺ جهاد ته داوښ لـه قب سره ځکه تشبیه ورکړې وي چې کوم سړې داوښ پـه قب باندې وخیژي نو پوره اوښ دهغه په

ولجه او قبضه کې راشي .همدغسې کوم سړې چې جهاد کوي نو هغه داسلام دټولو اعمالو فضیلت ترلاسه کوي ځکه چې دمجاهد خوب ، سفر، مال خرچول ستړیا ، ویره ، تنده اولوږه ټول لـه اجر نه ډک دی ، بلکې دهغه هر یو حرکت داجر او ثواب ذریعه ده .



# فصل

## له وتلو نه ترراستنیدو یاشهید کیدو پورې مجاهد دالله جل جلاله په ضمانت کې وي . او پدې جریان کې هغه سره دالله جل جلاله نصرت مل وي اوالله جل جلاله هدایت ورته کوي .

الله تعالی فرمایي:

﴿ وَالَّذِينَ جَاهَدُوا فِينَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا وَإِنَّ اللَّهَ لَمَعَ الْمُحْسِنِينَ﴾ (العنکبوت۶۹)

او هغه کسان چې زما په لاره کې جهاد کوي خامخا به هغوی ته خپلې لارې وښایم او بیشکه الله تعالې له نیکو کارانو سره دی.

سفیان بن عیینه رضی الله عنه وایي:

اِذَا رَئَیْتَ النَّاسَ قَدْ اَخْتَلَفُوا فعلیك بالمجاهدین واهل الثغور فان الله یقول . (( لَنَهْدِیَنَّهُمْ سُبُلَنَا))

کله چې خلک وګوري چې ګډوډ شوې اوپه ګناهونو کې اخته دي نوته لـه مجاهدینو او دسرحدونو لـه ساتونکو سره ملګری شه ، ځکه چې الله تعالې ددوی په هکله فرمایي : زه به دوې ته خامخا خپلې لارې وښایم.

(( عَـنْ ابـي هريـرةَ ﷺ قـال : قال رَسُول الله ﷺ : تكفَّل الله لِمَنْ جَاهَدَ في سَـبِيْلِهِ ، لَـا يُخْـرِجُهُ مِنْ بَيْتِهِ إِلَّا الجهادُ في سبيله وتصديقٌ بكلماتِه ان يُدخله الجنَّة ، او يردَّهُ الى مسكنه بما نال مِنْ أَجرٍ او غنيمةٍ )) [1]

له ابي هريره ﷺ څخه روايت دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل :
الله پاک دهغـه مجاهد کفالت کړی دی چې دهغـه جل جلاله په لاره کې جهاد تـه تللي وي او صرف دالله په لاره کې دجهاد لپاره لـه کور نه وتلی دی ، اودالله تعـالی دکلمو تصديق کوونکې وي . الله تعـالی هغـه تـه ددې خبرې ضمانت ورکوي چې يابـه يې په جنت کې داخلوي اويابه خپل کورته له اجر او دغنيمت له مال سره واپس ګرځوي.

(( عـن ابي هريرةَ ﷺ قال : سمعت رسول الله ﷺ يقول انتد بَ اللهُ لمن يخرُج في سـبيلهِ ، لايُخرجُهُ إِلَّا الايمانُ بي ، والجهادُ في سبيلي ، انه عَلَيَّ ضامن حتى أُدخِـلَهُ الجنة ، بايِّهماكان ، اما بقتلٍ او بوفاةٍ ، او اردَّ ه الى مسكنه الذ ي خرج منه ،نال مانال ، من اجرٍ او غنيمةٍ ))[2] .

له ابي هريـره ﷺ نـه روايت دی هغه وايي چې ماله رسول الله ﷺ نه واوريدل چې ويل يې : الله تعالی هغه څوک قبلوي چې دهغه جل جلاله په لاره کې ووځي، نه وباسي لـه کور نـه هغـه مګر ايمان په مابانديې او زما په لاره کې جهاد . زه دهغه ضامن يم يابه يې په جنت کې داخلوم لـه دواړو نه هريو سره چې وي يادهغه په قتل کيدو ياپه وفات کيدو . ياېې بېرته خپـل هغه کورته واپس راولم چې ترينه وتلې دی په اجر او غنيمت سره .

---

[1]- اخرجه البخاري برقم : ٣١٢٣ ومسلم برقم : ١٨٧٦.

[2]- اخرجه النسائي : ٦/ ١٦ والحديث صحيح

امام نووي ددی حدیث په شرح او وضاحت کې ویلي دي چې د "تکفّل الله " معنې داده چې الله تعالې ددغه مجاهد لپاره جنت واجب کړی دی پخپل فضل او کرم سره [١] ځینې شک کوونکي دنبي کریم ﷺ قول :من اجر او غنیمة . باندې شک کوي چې اجر له غنیمت سره نشي یو ځای کیدلی او چاچې غنیمت ترلاسه کړ نوله اجر نه محروم پاتې شو . خبره داسې نده بلکې ددې معنې داده چې که غنیمت یې ترلاسه کړ نو هغه په کامل اجر سره واپس کوي او یایې په اجر او غنیمت دواړو سره واپس کوي. یعنې هم اجرورکوي او هم غنیمت.

رسول الله ﷺ په یوبل حدیث کې خبر ورکړیدی چې اجراو غنیمت دواړه سره یو ځای کیدای شي .

((عن عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما ان رسول الله ﷺ قال: مامن غازيةٍ او سريةٍ يسلمُوْنَ او يَغْنَمُوْنَ اِلا تعجَّلُوا ثُلُثَيْ اجرهم .[٢]))

له عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما څخه روایت دې چې رسول الله ﷺ وفرمایل:

کوم مجاهدین چې له غزا یاسر یې نه روغ رمټ اوپه غنیمت سره واپس شول نو هغوی دخپل اجر په دریو کې دوه حصې په دنیا کې آخلي. په دې حدیث کې او دواو په ماناسره دې یعنې روغ رمټ راستانه شي او غنیمت هم ترلاسه کړي همداشان په مخکینې حدیث ( نـال مـن اجـر او غنـیمة ) کې هم او، دواو معنې ورکوي . یعنې پداسې حال کې به یې راستانه کړم چې اجر او غنیمت دواړه به یې ترلاسه کړي وي .

((عن عبدالله بن عمر رضی الله عنهما عن النبيّ ﷺ فيما يحكيه عن ربه عزوجل انه قال : ايما عبد من عبادي خرج مجاهداً في سبيلي ، وابتغاء

[١]ـ شرح النووي على صحيح مسلم ١٣/ ٢٠

[٢]ـ اخرجه مسلم برقم : ١٩١٦

مرضـاتي ، ضـمنتُ لــهُ ان ارجعـتُهُ اَنْ اُرْجِعَـهُ بما اصا بَ من اجرٍ او غنيمةٍ وان قَبضتُهُ غفرت لـهُ [١] )).

عبدالله بن عمر ﷺ لـه نبي كريم ﷺ څخه روايت كوي چې هغه ﷺ له خپل رب نه حكايت كوي هغه جل جلاله فرمايلي دي : زما له بندګانو څخه چې هريو بنده زما په لاره كې دجهاد لپاره ووت او زما درضا لته يې وكړه نو زه دهغه ددې خبرې ضمانت كوم چې كه زه هغه واپس كوم نولـه اجر او غنيمت سره به يې واپس كوم اوكه يې مړكوم نو بخښنه به ورته كوم.

((عـن معاذ بن جبل ﷺ عن رسول الله ﷺ قل : من جاهدفي سبيل الله كان ضـامنًا عـلى الله ، ومـن عاد مريضا كان ضامنا على اللهِ ومن غدا الى المسجد او راح كـان ضامنا على الله ، ومن دخل على امام يُعَزِّرُهُ كان ضامنا على الله ، ومن جلس في بيته لم يغتبْ انساناً كان ضامنا على الله [٢] )).

له معاذ بن جبل ﷺ نه روايت دى هغه وايي چې محمد ﷺ وفرمايل : څوک چې دالله په لاره كې جهاد كوي دهغه ضامن الله دى ، او څوک چې دناروغ پوښتـنه وكړي دهغه ضامن الله دى ، او څوک چې سهاريا مابنام مسجد ته لاړشي دهغه ضامن الله دى ، څوک چې دمسلمانانو دپاچا دملاتړ لپاره لاړشي دهغه ضامن الله دى او څوک چې پخپل كور كې كيناست او دچا غيبت يې ونكړ دهغه ضامن الله دى . ( يعنې جنت ته به يې وړي .

---

[١]ـ اخرجه النسائي في المجتبى ٦/ ١٨ وسند صحيح.

[٢]ـ اخرجه ابن خزيمه في صحيحه : ٢/ ٣٧٦ وابن حبان ص : ٧٨٤ . والحاكم : ١/ ٢١٢ وسند صحيح.

((عـن ابـي هريـرة رضى الله عليه عن النبي ﷺ قال: ثـلاثةٌ حقٌّ على الله عونُهـم المجاهدُ في سـبيل الله ، والمكـاتَبُ الَّذِي يريدُ الاداء، والنَّاكحُ الَّذي يريد العفاف [١])).

له ابي هريره ﷺ نه روايت دي هغه وايي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل :
په الله باندې ددريـو كسـانو كومـك كول حق دى . دالله دلارې مجاهد ، هغه مكاتب چې دبَدل كتابت اداكول غواړي اوهغـه نكاح كوونكې چې دپاك ژوند تيرولو اراده لري.
كوم حديث چې په دى دلالت كوي چې الله تعالې دمجاهد لپاره دهغه په ژوند كې او دهغـه لـه مرګ نه وروستـه دخير ضمانت كړيدي د زبيربن عـوام ﷺ كيسـه ده چې بخاري په باب بركة الغازي في ماله حيًّا وميتًا ،كې نقل كړيدې:

(( عن عبدالله بن الزبير ﷺ قال : لما وقف الزبير يوم الجمل دعاني ، فقمت الى جنبه .

فقـال : يابُـنَىَّ لا يُقـتلْ اليـوم الا ظـالم او مظلومٌ ، واني لا اراني الا ساقتل اليوم مظلوماً ، وإنَّ من اكبر همى دينى . افتر ى ديننا يُبقِيْ من مالنا شيئا؟
وقـل : يـابني : بِـعْ مالنا ، واقض دِيني ، فان فضل من مالنا شيءٌ بعد قضاءِ الدَّينِ ، فَثُلُثُهُ لِولدكِ.

فجعل يوصيني بدينهِ ، ويقول : يابني : ان عجزت عن شيء منهُ فاستعنِ عليه مولاىَ ! فوالله مادريتُ ما اراد . حتى قلت له : يا ابت: من مولاك ؟

---

[١] ـ الترمذي : ٣/ ١٠٣ وابن حبان ص : ٣٩٨ والحاكم : ٢/ ٢١٧ وسند حسن

قل : الله!!

فوالله ماوقعت في كربة من دينه الا قلت : يامولى الزبير اقضِ عنه دينه فيقضيهِ الله !

فقُتلَ الزبير ، ولم يدعْ ديناراً ولا درهما ، الا ارضينَ منها الغابة ، واحد عشردارا بالمدينة ، ودارين بالبصرةِ ، وداراً بالكوفة ، وداراً بمصر .

وانما كان دَينه الذي عليه اَنَّ الرجل كان ياتيه بالمال فيستودِعُهُ ايَّاه.

فيقول له الزبير: لا . ولكنه سلف ، فاني اخشى عليه الضياع.

وما ولِيَ امارةً قط ، ولا جبايةَ خراج ولا شيئاً ، الا ان يكون في غزوةٍ مع النبي ﷺ ، او مع ابي بكر وعمر وعثمان.

قل عبدالله بن الزبير : فحسبتُ ماعليه من الدَّينِ فوجدته الفى الف ومائتي ألف!! فلقي حكيم بن حزام عبدالله بن الزبير ، فقل : يا ابن اخي كم علي اخي الزبير من الدَّين ؟

فكتمه عبدالله ، وقل : مائةُ الف.

فقل حكيم : والله ما ارى اموالك تَسَعُ لِهذه ! قل عبدالله : افرأيتك اذاكان الدين الفي الف ومائتي الف!

قل حكيم : ما اراكم تطيقون هذا . فان عجزتم عن شيء منه فاستعينوا بي.

وكان الزبير اشترى الغابة بسبعين ومائةِ الف!

فباعها عبدالله بالفٍ الفٍ وستمائة الف . ثم قام فقل : من كان له على الزبير حق فليوافنا بالغابة!

ولما فرغ ابن الزبير من قضاء دين ابيه قل له اخوته : اقسم بيننا ميراثنا!قل : لاوالله لااقسم بينكم حتى انادي با لموسم اربع سنين : الا من كان له على الزبير دينٌ فلياتنا فلنقضه .

فجعل كل سنة ينادي با لموسم . فلما مضى اربع سنين قسم بينهم.

وكان للزبير اربع نسوة ، ورفع الثلث وصية . فاصا ب كل امراة الف الف ومائتا الف .فجميع مال الزبير خمسون الف الف ومائتا الف[1]!! )).

ژباړه :له عبدالله بن زبير ﷺ نه روايت دي هغه وايي : کله چې دجمل په ورځ زما پلار په ميدان کې ودريد نو زه يې خپل حواته ، اوغوښتلم زه لاړم او دهغه په څنګ کې ودريدم . هغه راته وويل : اى زويه ! نن ورځ به يا ظالم وژل کيږي يامظلوم ، نن ماته داسې معلوميږي چې زه به نن ورځ مظلوم وژل کېږم . زما لوى غم اوفکر پرما باندې دقرض په باره کې دى ايا ته پوهيږې چې زمونږ مال به له قرض نه زيات شي او څه به ترينه پاتې شي ؟ اى زويه ! زمامال خرج کړه او زما قرض اداکړه له قرض اداکولو نه وروسته که څه پاتې شي نو دهغه دريمه حصه به ستا دماشومانو لپاره وي.

حضرت عبدالله بن زبير ﷺ فرمايي چې زما پلار ماته دقرضې داداکولو تاکيدوکړ او ويې ويل چې اى زويه ! که دقرض په اداکولو کې پاتې راغلې نو زماله مولې نه مرسته وغواړه حضرت عبدالله بن زبير فرمايي چې په خداى قسم چې زه په دى نه پوهېدم چې له مولې نه دهغه مراد څوک و ؟ ترديې چې ماپوښتنه وکړو پلارجانه ستا مولى څوک دى . ويې فرمايل زما مولې الله تعالې دى . ابن زبير په الله قسم خوري

---

[1] اخرجه البخاري برقم : ۳۱۲۹.

چې کله به دهغه دقرض په باره کې ماته څه پریشاني محسوس شو نو مابه دعا کوله چې ای دزبیر مولې! دزبیر قرض اداکړه . الله تعالې به ضرورپوره کولو یو صورت پیداکاو.

کله چې حضرت زبیر شهید شو نو له هغه څخه نه درهم پاتې شوي وو اونه دینار . البته زمکې یې پریښې وې چې په هغه کې دغابې زمکه هم وه . یولس کورونه یې په مدینه کې ، دوه بصرة کې ، یو کوفه کې اویو په مصر کې درلود.

حضرت عبدالله فرمایي چې په حضرت زبیر باندې داقرضه دهغه فضول خرچي په وجه نه وه بلکې ددې وجه داوه چې کوم سړی به له هغه ﷺ سره څه مال امانت کیښود نو حضرت زبیر به ورته فرمایل : دا امانت نه بلکې زما په غاړه ستاسې قرض دی چې دضائع کیدو په وخت کې به زه دهغه تاوان درکوم . ابن زبیر فرمایي چې زما پلار نه خوپه حکومت کې څه وظیفه آخستې وه اونه خراجي زمکه ګانه کړې وه اونه یې دخراج راټولولو کار چېرته کړې و اونه یې بله د امدن لاره درلوده . مګر داچې هغه ﷺ به له محمد ﷺ ، حضرت ابو بکر ﷺ، حضرت عمر ﷺ او حضرت عثمان ﷺ سره یو ځای په جهاد کې برخه آخسته . حضرت عبدالله فرمایي چې مادقرض حساب ولګاو نو ۲۲ لکه روپۍ جوړې شوې.

په دې وخت له عبدالله بن زبیر سره دحضرت حکیم بن حزام ﷺ ملاقات وشو او ویې ویل چې ای وراره زما په ورور باندې څومره قرض دی؟ حضرت عبدالله بن زبیر ﷺ فرمایي چې مادقرض صحیح اندازه پته کړه . او ورته مې وویل چې یو لک روپۍ قرض ورباندې دي . حضرت حزام ﷺ وفرمایل : په الله قسم زماپه فکر خو ستاسې ټول جائداد هم ورته نه پوره کیږي . ماورته وویل که پدې وخت ټول قرض ۲۲ لکه وای نو بیادې څه خیال کاو ؟ هغه راته وویل زما په فکر تاسې ددې داداکولو وس نلرئ حضرت زبیر ﷺ دغابې زه که یو لک او یا زره روپۍ آخستې وه خو حضرت عبدالله هغه په شپاړلس لکه روپۍ خرڅه کړه . اوټولوته اعلان وکړ چې په حضرت زبیر باندې دچا قرض وي هغه دې غابې زمکې ته راشي او خپل قرض دې وغواړي . کله چې حضرت عبدالله ټول قرضونه خلاص کړل نو دحضرت زبیر نورو زامنو وویل چې زمونږ دپلار نه پاتې مال په مونږ وویشه . حضرت عبدالله وویل په الله قسم چې

ترهغې پورې زه میراث نه تقسیموم ترڅو چې دحج په موسم کې څلور کاله اعلان ونه کړم چې دچاپه حضرت زبیر باندې قرض وي دهغه دآخستلو لپاره دې راشي.

حضرت عبدالله به هر کال دحج په موسم کې اعلان کاو . دڅلورو کلونو له پوره کیدونه وروسته پاتې مال تقسیم کړ. راوي وايي چې دحضرت زبیر ﷺ څلور ښځې وې دقرض له اداکولو نه وروسته دمال دریمه حصه دهغه وصیت دپوره کولو لپاره ویستل شوه.

او بیا دمال اتمه حصه دهغه په څلورو ښځو باندې وویشل شو او هریوې ښځې ته دولس دولس لکه روپۍ ورسیدلې . یعنې ددې ټوله متروکه مال پنځوس میلونه اودوه لکه روپۍ وه .



# فصل

## الله تعالې مجاهد نه ضائع کوي او پخپل لطف او رحمت سره يې پالنه کوي

(( عن جابر بن عبدالله رضی‌الله عنهما قل : بَعَثَنَا رسُولُ الله ﷺ وامَّرَعلینا ابا عبیلة ، نتلقّی عِیراً لقریش ، وزوَّدَنا جراباً مِن تَمرٍلَم یجد لنا غیره. فکان ابو عبیلة یُعطینا تمرةً تمرة.

فقلت : کیف کنتم تصنعون بها؟

قـال : كنا نَمُصُّهَا كما يَمُصُّ الصبي،ثُمَّ نشرِبُ عليها من الماءِ ، فتكفينَا يومنَا الى الـليلِ .. وكنا نضرب بِعِصِيِّنا الخبط – وهُو ورق الشجر – ثم نبُلُّهُ بالماء فناكُلُهُ.

فانطلقْـنا عـلى سـاحل الـبحر ، فَـرُفِعَ لنا على ساحِلِ البحر كهيئةِ الكثيبِ الضخم ! فاتيناهُ ، فاذا هُوَ دابةٌ تدعى العنبر.

فقال ابو عبيلة : انهاميتةٌ.

ثـم قـال ابـو عـبيدة : لابـل نحـن رُسُلِ رسول الله ﷺ ، وفي سبيل الله ، وقد اضطررتم ، فكلوا .

فاقمـنا عليها شهراً ، ونَحنُ ثلاثمائة ، حتى سَمِنَّا . ولقد رأيتنا ونحن نغترِفُ الدُّهـنَ مِـنْ وقـبِ عيـنِهِ – من تجويفِ العين – بالقُلال – وهى الجرار – ، ونقتطع منه القدر – هو القطعة الكبيرة – كالثور.!

ولقـد اخذمِـنَّا ابـو عـبيدة ثلاثـة عشـر رجُلا فاقعدهم في وقبِ عينِهِ ! واخذ ضـلعًا مِـن اضـلاعِهِ ، فاقامَهَـا ، ثُـمَّ رَحَّلَ اعظَمِ بعيرُ معنا ، فمرَّ من تحتها !! وتزوَّدْنَا من لحمِهِ وشائق – هِيَ قطع اللحم المجفَّف-

فلما قدمنا المدينة اتينا رسول الله ﷺ فذكرنا ذالك له ، فقال : هُوَ رزق اخرجه الله اليكم ، فهل معكم من لحمه شيء فتطعمونا ؟

فـأرسلنا الى رسول الله ﷺ منه فاكله ! )) [1]

---

[1] اخرجه مسلم برقم : ١٩٣٥.

ژباړه :حضرت جابر بن عبدالله ﷺ فرمايي چې نبي كريم ﷺ پرموږ باندې حضرت ابو عبيده بن جراح ﷺ امير مقرر كړ او دقريشو له يوې قافلې سره يې جنګ اودهغې دلوټ كولو لپاره ولېږلو.

موږ ته يې دتوښې لپاره دخرما يوه خلته راكړه . له هغوى سره له دى نه علاوه بل څه نه وو چې موږ ته يې راكړې واى . حضرت ابو عبيده ﷺ به موږ ته صرف يوه يوه خرماراكوله . راوي وايې : هغه ته ماوويل چې تاسې په دى يوه كجوره څه كول ؟ حضرت جابر ﷺ وويل : موږ هغه دماشومانو په شان چوپله او اوبه مو ورسره څښلې دابه زموږ دپوره يوې ورځې خوراک و .موږ به خپلو امساګانو له ونو نه پاڼې څنډلې هغه به مو په اوبو كې خيشتولې او بيا به مو خوړلې . آن تردې چې موږ دسمندر غاړې ته ورنږدې شوو . ناڅاپه يې ديوې غونډۍ په شان عنبر نومې كب غاړې ته وغورځاو حضرت ابو عبيده ﷺ وفرمايل چې دامردار دى . بيا يې وفرمايل چې نه موږ خو درسول الله ﷺ له طرفه نه دالله جل جلاله په لاره كې لېږل شوي يوېدې وخت موږ په إضطراري حالت كې يو نوله همدې كبله دماهۍ غوښه وخورئ . حضرت جابر ﷺ وايي چې موږ درې سوه كسانو تريوې مياشتې پورې دهغه ماهي غوښه وخوړله او موږورباندې ښه چاغ او تازه شوو . موږ به دماهي له سترګونه دتيلو ګوډې ډكولې اوله غوښې نه به مو دغوايي هومره ټكړه غوڅوله . حضرت ابو عبيده ﷺ له موږنه ديارلس كسان يې يوځاى دكب په سترګه كې كيښنول او دهغه له پښتۍ نه يې يوه پښتۍ ودروله ، بيا له ټولو نه لوړ اوښ باندې كجاوه كيښودله اوهغه يې دهغې پښتۍ لاندې تير كړ نوپه اسانۍ سره تيرشو.

موږ دماهي غوښه ايشوله اوله ځان سره به مو سنبالوله . بيا كله چې مدينې ته راغلو نوموږ نبي ﷺ ته داټوله كيسه وكړه هغه ﷺ وفرمايل :داهغه رزق دى چې الله تعالې خاص تاسو ته لېږلې و . ايا له تاسو سره دهغه څه غوښه پاتې ده چې پرمايې وخوروئ ؟ موږ ورته غوښه وركړه او هغه ﷺ وخوړله. بخاري داحديث په لنډو ټكو داسې روايت كړيدى .

(( عن جابر رضى الله عنهما : قال : بعث رسول الله ﷺ بعثاً قِبلَ السَّاحلِ ، وَاَمَّرَ عليهم اباعبيلة بن الجراح وهم ثلاثمائة.

فخرجنا ، ولما كُنَّا ببعض الطريق فني الزَّاد . فأمَرَ ابو عبيلة بازوادِ الجيش فجُمع ، فكانَ مزوَدَيْ تمر ، فكان يقوتُنا كلَّ يوم قليلٌ قليلٌ حتى فني ، فلم يكن يصيبنُا إلّا تمرةً تمرة!

فقلت : ماتغني عنكم تمرة ؟

فقال : لقد وجَدْنا فَقْدها حين فنيت . ثُمَّ انتهيْنا إلى البحرِ ، فإذا حوتٌ مثلُ الظَّربِ ، فأكلَ منها القومُ ثماني عشرةَ ليلةً . ثم أمَرَ أبو عبيلةَ بضلعَينِ من أضلاعه فنُصِبا ، ثم أمَرَ براحلة فرُحِّلَتْ ، ثم مرَّتْ تحتَهما فلم تُصبهُمَا [1] )).

ژباړه :له جابر بن عبدالله ﷺ نه روايت دې هغه وايي چې رسول الله عليه وسلم يوه ډله دساحل په طرف وليږله او پر هغه يې ابوعبيده ابن الجراح ﷺ امير مقرر کړ . دغه خلک ټول درې سوه کسان وو .

مونږ په لاره کې وو چې زمونږ توښه خلاصه شوه . ابو عبيده امر وکړ چې دلښکر ټوله توښه دی راجمع کړې شي زمونږ توښه کجوره وه مونږ به له هغې نه لږه لږه خوړله مونږ ته له يوې کجورې نه زياته نه رسيدله خو هغه هم خلاصه شوه .

ماورته وويل يوه يوه کجوره تاسو ته څنګه بس کيده ؟ په يوې يوې کجورې به ستاسې څنګه ګوذاره کيده ؟

هغه وويل :مونږ ته ددی يوې قدر هلته راغي چې کله دا يوه هم ختم شوه.

بيا بحر ته ورسيدلو هلته مو ديو غونډي هومره لوی ماهی وليدله مونږ له هغه نه اتلس ورځې غوښه وخوړله . بيا ابو عبيده دهغه ددوه پښتو دراوړلو امر وکړ هغه يې

---

[1] ـ اخرجه البخاري برقم : ٤٣٦١ .

ودرولې بيا يې په اوښ باندې كجاوه كيښودله اودهغه لاندې نه تير كړ هغه ښتې دومره اوچتې وې چې بياهم اوښ ورته نشو رسيدلې.

په دی حدیث کې دهغو خلکو لپاره دليل دی چې وايي مضطر سړي لپاره جائز دي چې لـه مردار نه په مړه ګېډه وخوري او توښه ترينه واخلي.

ځکه چې اصحابو كرامو رضى الله عنهم دمردار كب غوښه په دی وجه (ګمان) خوړلې وه چې داضطراري حالت په وجه ورته مباح ده . اودومره يې ترينه وخوړله چې ښه تر او تازه شول او ځان لپاره يې ترينه توښه واخستله .دا هغه مجاهد اصحاب وو چې دالله په لاره كې دجهاد لپاره وتلي وو . الله پاک هغوی نه ضائع كړل او نه يې سپک كړل بلكې پخپـل لطف او مهرباني سره دهغوی پالنه وكړه اضطراري حالت اولوږه يې ترينه لرې كړه او دكب غوښه يې ورته روزي كړه.

دالله له طرف نـه دمجاهدينو اكرام داهم دی چې كله هغوی دعا كوي الله يې قبلوي ، او په خارقة العادات (عادت څيروونكو) كرامتونو سره دهغوی اعزاز او اكرام او مرسته كوي . ځكه چې الله دهغوی لپاره ضامن دی.

((عن ابي هريرة ﷺ عن رسول الله ﷺ قال : وَفْدُالله ثلاثةٌ الغازي ، والحاج والمعتمر . ان دعوه اجابهم وان استغفروه غفرلهم [1])).

لـه ابـي هريره ﷺ نه روايت دې هغه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل : درې كسان دالله تعالى ميلمانه او زيارت كوونكې دي غازي ، حاجي او عمره كوونكې . كه هغوی دعاكوي نو الله يې قبلوي اوكه ترينه بخښنه غواړي نو ورته بخښنه كوي.

((عن عقبة بن عامر ﷺ ، عن النبي ﷺ قال : ثلاثة تُستَجاب دعوتهم : الوالد والمسافر والمظلوم [2])).

له عقبه بن عامر ﷺ نه روايت دی هغه وايي چې نبي كريم ﷺ فرمايلي دي :

---

[1] ـ سنن النسائي ٥/ ١١٣ والسنن ابن ماجه : ٢/ ٩٦٦ والحديث صحيح.

[2] ـ مجمع الزوائد للبهقي : ١٠/ ١٥ والحديث حسنن.

درې کسان داسې دي چې دهغوی دعاګانې قبلیږي . پلار مسافر او مظلوم.

(( عن ابي هريرة ﷺ ان رسول الله ﷺ قال: ثلاث دعواتٍ مستجاباتٍ لا شكَّ فيهن : دعوة الوالد، ودعوة المظلوم ودعوة المسافر[1] )).

له ابي هريره ﷺ نه روايت دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل : پدې کې هيڅ شک نشته چې چې درې دعاګانې مستجابې دي ، دپلار ، مظلوم او دمسافر دعاء.

کله چې الله تعالى دمسافر دعا قبلوي يوائې ددې وجې نه چې هغه مسافر دی نو دمجاهد دعا به څنګه نه قبلوي حال داچې دمجاهد سفر دټولو خلکو له سفر نه زيات عزتمن او په سفر کې يې ډير لوی اجر دی.

ابن ابي الدنيا پخپل کتاب مجابي الدعوه کې له عبدالرحمان بن زيد بن اسلم نه روايت کړيدی چې هغه وايي : يو قوم دجهاد لپاره لاړ اوله هغوی سره محمد بن المنکدر ملګری و.

په لاره روان وو چې يو سړي ووبل : تازه پنيرته مې اشتها کيږي.

محمد بن منکدر وويل : له الله نه طعام وغواړئ هغه به تاسې ته طعام درکړي څکه هغه په هرڅه باندې قادر دی . خلکو دعاوکړه لږوخت نه وتير شوې چې يوه خلته يې وموندله اوپه هغه کې تازه پنيروو . څينو کسانو وويل کاش شات هم وای.

محمد بن المنکدر وويل : هغه ذات چې تاسو ته تازه پنير درکولې شي نو هغه په دې قادر دی چې شات هم درکړي . پس تاسې له الله نه وغواړئ نو هغه به درکړي .

خلکو دعا وکړه لږ غوندې چې مخکې لاړل نوپه لاره کې يې له دشاتو ډک لوښې وموندلو. پنيراوشات يې ترې نه وخواړه او دغزا په سفرروان شول.[2]



---

[1] ـ سنن ابي داود : ٢/ ١٧٨ وسنن الترمذي ٣/ ٢١٠ وسنن ابن ماجه : ٢/ ١٢٧٠ والحديث حسنن .

[2] ـ كتاب مجابي الدعوة لابن ابي الدنيا : ٧١ ـ ٧٢.

# فصــل
# دجهاد او مجاهدینو مختلف فضائل

(( روى النسائي وابن حبا ن والحاكم عن فضالة بن عبيد ﷺ قل :

سمعتُ رسول الله ﷺ يقول : انا زعيمٌ لِمَنْ آمَنَ وَأَسْلَمَ وَهاجَرَ ببَيتٍ في ربضِ الجنة ، وبيتٍ في وسط الجنة ، وانا زعيمٌ لمن آمن بي واسلم وجاهدَ في سبيل الله ببيت في ربض الجنة وببيتٍ في وسط الجنة ، وببيتٍ في اعلى غُرف الجنة .

فمن فعل ذلك لم يدع للخير مطلباً ، ولامن الشرِّ مهربا ، يموتُ حيثُ شاء الله ان يموت[١] )).

نسائي ، ابن حبان او حاكم له فضاله بن عبيد ﷺ روایت کوي . هغه وايي چې ماله رسول الله ﷺ نه آوريدلي دي چې ويل يې :

کوم سړي چې ايمان او اسلام راوړ او هجرت يې وکړ نو زه دهغه لپاره ددې خبرې ذمه واريم چې زه به هغه ته يو کور دجنت په اطرافو کې ورکړم او يو کور دجنت په منځ کې .

او چاچې ايمان راوړ او اسلام يې راوړ او جهاديې وکړ نو زه ددې خبرې ذمه داريم چې زه به هغه ته يو کور دجنت په اطرافو کې يو کور دجنت په منځ کې او يو کور دجنت په اوچت ځاى کې ورکړم . هرچاچې داکارونه وکړل هغه ټولې ښيګڼې ترلاسه کړې اوله هر قسم شرنه محفوظ پاتې شو . اوس چې دهغه هرځاى خوښ وي همغلته دى مړشي . ( يعني ددې کاميابي يقيني ده .)

---

[١] ـ سنن النسائي : ٦/ ٢١ وموار الظمان ص : ٣٨٢ والمستدرك للحاكم : ٢/ ٧١ ، والحديث صحيح .

دزعيم معنې ده كفيل . اود (( ربض الجنة )) معنې ده دجنت لاندينې حصه .

(( روى مسلم عن ابي بكر بن ابى موسى الاشعري : قال سمعت ابي . ـ وهو بحضرة العدو ـ يقول: قال رسول الله ﷺ: " إنَّ ابوابَ الجنة تحتَ ظلال السيوف "

فقام رجل رث الهيئة ، فقال : يا اباموسى : انت سمعت رسول الله يقول هذا .

قال : نعم

فرجع الى اصحابه ، فقال : اقرأ عليكم السلام : ثُمَّ كسر جفنُ سيفه،فالقاه ، ثُمَّ مشى به الى العدو ، فضرب به حتى قُتِلَ [1] )).

مسلم له ابي بكر بن ابى موسى الاشعري څخه روايت كوي . هغه وايي :
ماله خپل پلار نه واوريدل چې هغه دښمنو ته مخامخ ولاړ و او.ويل يې : رسول الله ﷺ فرمايلي دي:
دجنت دروازې دتورو ترسيوري لاندې دي.
يو سړى چې لـه شكل نه پريشان ښكاريده ګډوډپراګنده شكل وو ودريد او ويې ويل اى ابو موسى ! تاله محمد ﷺ نه پخپله واوريدل چې داخبره يې كوله ؟. هغه وويل هو.
هغه خپلو ملګروته لاړ او الوداعي ( دخداى پاماني ) سلام يې وربـاندې واچاوو: بيايې دتورې پوښ مات كړ اولرې يې وغورځاو او بيا ددشمن په طرف لاړ او ترهغه جنګيده اودتورې ګوزارونه يې كول تردې چې شهيد شو .
عبدالله بن المبارك " په كتاب الجهاد كې له عمران بن الجوني " څخه روايت كړى چې مخكينى واقعه داصفهان دفتحې دزمانې ده كله چې مجاهدينو په اصفهان كې

---

[1] ـ اخرجه مسلم برقم : ١٩٠٢ .

جهاد کاوو نو ابو موسی اشعري ﷺ ودريد او خلكوته يې دجهاد او قتال ترغيب وركړاوجهادته يې هڅول .[1]

او دمحمد ﷺ قول : ان ابواب الجنة تحت ظلال السيوف ، معنې داده چې څوک دالله په لاره کې دالله پردښمنانوتوره اوچته کړي ياكافر پرهغه توره اوچته کړي .

نوپه دغو دوه حالتونو کې هغه دتورې دسيورې لاندې راځي . نو گويا په دې وخت کې دی د جنت دروازوته رسيږي څکه کيداى شي پدې وخت کې شهيد شي نو فی الحال فورا به جنت ته ننوځي او يا فوراً مړنشي خو وروسته پخپله بستره کې مړشي نو وروسته به په جنت کې داخل شي داخبره معلومه ده چې څوک دالله په لاره کې قتال وکړي دهغه لپاره جنت واجب شو نو گويا حقيقتاً جنت دتورو ترسيورولاندې دی .

(( روى البخاري ومسلم عن عبدالله بن ابى اوفى ان رسول الله ﷺ قل: واعلموا ان الجنة تحت ظلال السيوف[2] )).

بخاري او مسلم له عبدالله بن ابي اوفى ﷺ نه روايت کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي :

پوه شئ چې جنت دتورې ترسيورې لاندې دی.

(( روى احمد وابو عوانه والحاكم عن عبدالله بن عمرو رضى الله عنهما قل : قل لى رسولُ الله ﷺ "اتعلم اول زمرةٍ تدخل الجنة من امتي ؟ " قلت الله ورسوله اعلم قل : المهاجرون ، ياتون يوم القيامة الى باب الجنة ، ويستفتحون.

فتقول لهم الخزنة : او قد حوسبتم ؟

---

[1]ـ الجهاد لابن المبارك : ٢ / ١٨٨

[2]ـ اخرجه البخاري برقم : ٨١٨، ومسلم برقم : ١٧٤٢.

قالوا : با ى شيء نُحا سَب ، وانما كانت اسيافُنا على عواتِقِنَا في سبيل الله ؟ فيفتح لهم با ب الجنة ، فيقيلون فيها اربعين عاماً قبل ان يدخلها الناس ..[1]))

احمد ، ابو عوانه او حاكم لـه عبدالله بن عمرو ﷺ څخه روايت كوي هغه وايي چې ماتـه رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا تـه پوهيږې چې پـه جنت كې لومړى دڅله خلک به څوک زماله امت نه داخليږي ؟ ماوويل الله او رسول ښه پوهيږي.

هغه ﷺ وفرمايل : هغـه مهاجرين دى دقيامت پـه ورځ بـه دجنت دروازې تـه راځي. او خلاصول بـه يې و غـوارې دجنت ساتونكې ورتـه وايي ايا لـه تاسې سره حساب شويدې ؟ هغوى وايې دكوم يو څيز حساب لـه مونږ سره كيږي ؟. بيشكه زمونږ تورې زمونږ پـه اوږو باندې دالله پـه لاره كې دجهاد لپاره ځوړندې دي . بياد هغوى لپاره دجنت دروازه خلاصولې شي اوېدې كې لـه دى نه مخكې چې خلک ورتـه داخل شي څلوېښت كاله آرام كوي.

(( روى الترمـذي عـن ابـي هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ : الاتحبون ان يغفر الله لكم ويد خلكم الجنة ؟ قالوا بلى .قال فاغزوا[2] )).

ترمذي لـه ابي هريره ﷺ نـه روايت كوي هغـه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا تاسې دانه خوښوئ چې الله ستاسې لپاره بخښـه وكړي او تاسې پـه جنت كې داخل كړي ؟ هغوى وويل ولې نه خوښوو يې . محمد ﷺ وفرمايل : بيا نو غزا وكړئ.

(( روى احمد والحاكم عن عبادة بن الصا مت ﷺ : عن رسول الله ﷺ قال :

"جـاهد وا في سـبيل الله فـا ن الجهـاد في سـبيل الله بـاب من ابواب الجنة ، ينجي الله به من الهم والغم "[3] )).

---

[1]ـ مسند احمد ٢/ ١٦٨ ومسند ابي عوانة : ٥/ ٩٤ والمستدرك للحاكم : ٢/ ٧٠ والحديث صحيح

[2]ـ ( سنن ترمذي : ٣/ ١٠٢ والحديث حسن)

[3]ـ مسند احمد ٥/ ٣٦٤ والمستدرك للحاكم : ٢/ ٧٥ والحديث صحيح .

**احمد او حاكم له عباده بن صامت ﷺ او هغه له رسول الله ﷺ نه روايت كوي چې هغه ﷺ وفرمايل:**
**دالله په لاره كې جهاد وكړئ ځكه چې جهاد في سبيل الله دجنت له دروازو نه يوه دروازه ده الله په دې باندې له غم اوخفگان نه نجات وركوي.**

(( روى البيهقي واحمد وابن المبارك عن ابي قتاده الانصاري قال كان عمرو بن الجموح_ شيخ من الانصار _ اعرج . فلما خرج النبي ﷺ الى بدر، قل عمرو لبنيه اخرجوني .

فذكروا للنبى ﷺ عرجه ، فأذِ نَ لـه في الاقامة وعدم الخروج .

ولما كان يوم أُحُدٍ خرج الناس ، فقال لبنيه اخرجوني .

فقالوا: قد رخَّص واذ نَ لكَ رسول الله صلى الله عليه وسلم !

فقـال لهم : هيهات ، منعتُمُوني الجنة ببدرٍ، وتمنعونيها باحد ؟ فَخَرج الى احد . ولما التقى الناس في الميدان ، قـال : يارسولَ الله : ارأيت ان قتلت اطأُ بِعَرَجَتِي هذه الجنة ؟

قل ﷺ : نعم.

قال : فوالذي بعثك بالحق لاطأ نَّ بها في الجنة اليومَ ان شاء الله! وقال عمرو لغلامٍ له يقال له : سَليم : ارجعُ إلى أهْلك!

فقال غلامُه : وما عليك أن أُصيبَ اليومَ خيراً معك ؟

قل له : فتقدم اذن!

فتقدم العبد ، فقاتل حتى قتلَ ، ثم تقدم هُو ، فقاتل حتى قتل ايضاً ، رضى الله عنهما[1] )).

بيهقي احمد او ابن المبارک لـه ابي قتاده انصاري څخه روايت کوي هغه وايي چې عمرو بن الجموع دانصارو يو ګوډ شيخ سپين ګيرې و . کله چې نبي کريم صلى الله عيه وسلم بدرته لاړ نو عمرو خپلو زامنو ته وويل : ماهم جهاد ته بوځئ . هغوی محمد ﷺ ته راغلل او ورته يې وويل : زمونږ پلار ګوډ دی هغه ﷺ هغه ته په کور کې داوسيدو او جهاد ته دنه تللو اجازه ورکړه..

کله چې داحد دجنګ په ورځ خلک جهاد لپاره ووتل نو هغه خپلو زامنو ته وويل چې ماهم جهاد ته بوځئ !!. هغوی ورته وويل محمد ﷺ تاته رخصت درکړی دی او په کور کې يې داوسيدو اجازه ذر کړيده .

هغه وويل له مانه لرې شئ افسوس چې تاسې زه دبدر په ورځ له جنت نه منع کړم او اوس مې داحدپه ورځ لـه جنت نه مې منع کوئ . بيا داحد جنګ ته لاړ . کله چې خلک ميدان ته راغلل اوجنګ ګرم شو. هغه وويل ای دالله رسوله ! تاسې ماته واياست چې ايا زه په دی ګوډه پښه جنت ته تللې شم ؟ هغه ﷺ وفرمايل هو.

هغه وويل : قسم په هغه ذات چې ته يې په حقه ليږلې يې زه به نن ورځ خامخا پدې ګوډه پښه په جنت کې ګرځم انشاء الله تعالى.

عمرو ابن الجموح ( لـه ده سره راغلې ) خپل غلام سليم ته وويل. بېرته خپل اهل وعيال ته لاړ شه.

غلام ورته وويل : ستابه څه وشي که ماته هم نن لـه تاسره خير ( شهادت ) ورسيږي . نو تاته څه تاوان دی ؟ هغه ﷺ ورته وويل بيانو مخکې شه.

غلام ور وړاندې شو او له کفارو سره ترهغه وجنګيد چې شهيد کړې شو . بيا عمرو بن جموح وړاندې شو هغه هم تر هغه جنګ وکړ چې شهيد شو رضى الله عنهما.

---

[1] ـ مسند احمد ۵ ٢٩٩ باسناد حسن .

(( وروى ابـو داود والترمـذي والنسائي وابن ماجه عن معاذ بن جبل ﷺ انـه سمـع رسـول الله ﷺ يقـول " مـن قـاتل في سبيل الله فواق ناقة وَجَبَتْ لـه الجنة " [١] )).

ابو داود ، ترمذي ، نسائي او ابن ماجه لـه معاذبن جبل ﷺ نه روايت كوي چې هغه لـه رسول الله ﷺ نه آوريدلي دي چې فرمايل يې:

چاچې دالله پـه لاره كې داوښـې دلوشلو ترمـنځ دوقفې هومـره وخت جهـاد وكړ هغـه لپاره جنت واجب شو.

عـن انـس بـن مـالك ﷺ قـال انطلق رسول الله ﷺ واصحابه الى بدرٍ حتى سَبقوا المشركين اليه وجاء المشركون...

وقال رسول الله ﷺ : (( قوموا إلى جنةٍ عرضها السموات والارض.

فقال عميرُ بن الحُمام : يارسول الله : جنةٌ عرضها السموات والارض ؟

فقال ﷺ : نعم!

فقال عمير : بخٍ ، بخٍ!

فقال ﷺ : وما يحملك على قولك : بخ ، بخ ؟

قال : لا والله يارسول الله إلَّا رجاء ان اكون من اهلها .

قال ﷺ : فانك من اهلها!

---

[١] ـ سنن ابي داود : ٣/ ٤٦ . وسنن الترمذي : ٣/ ١٠٣. والمجتبي للنسائي : ٦/ ٢٥ ـ ٢٦ وابن ماجه : ٢٧٩٢ والحديث صحيح .

فاخرج تمرات من قَرَنِهِ ، فجعل ياكل منهن ، ثم قال : ان أنا حييتُ حتى آكُلَ تمراتي هذه انها لحياةٌ طويلة ! فرمى بما كا ن معه من التمر، ثم قاتلهم حتى قُتل . ﷺ . )) [1]

له انس بن مالک ﷺ څخه روایت دي هغه وايي چې رسول الله ﷺ او دهغه اصحاب بدر ته لاړل آن چې لـه مشرکانو نه مخکې هلته ورسیدل کله چې مشرکان هم ورسیدل نو رسول الله ﷺ وفرمایل : جنت ته ودریږئ اوپه بیړه ورشئ چې پراخوالی ئې دآسمان او زمکې ترمنځ دپراخوالي هومره دی.

عمیر بن حمام ﷺ وویل : ای دالله رسوله ! داسې جنت چې پراخوالې دآسمان او زمکې ترمنځ دپراخوالي په برابر دی ؟

هغه صلی الله علیه وسلم وفرمایل هو! عمیر ﷺ وویل بخ بخ ( واه واه ) محمد ﷺ ورته وویل بخ بخ دې په څه خبره وکړه ؟ هغه وویل یا رسول الله ﷺ پدې امید مې بخ بخ وکړه چې زه به ددې وړ شم .محمد ﷺ ورته وفرمایل : ته ددې وړ یې . هغه له خپلې ګوتې نه کجورې وویستلې او په خوراک یې شروع وکړه. بیا یې وویل : زه به ددغو کجورو ترخوړلو پورې ژوندې یم داخو زیات عمر دی . پس څومره کجوره چې ورسره وې هغه یې وغورځولې اوله مشرکینو سره یې قتال ته ودانګل ترهغه یې قتال وکړ چې شهید کړې شو ﷺ

(( وروى النسائي واحمد والبيهقي عن سَبُرَةَ بن الفَاكِهَ ﷺ قال سمعت رسول الله ﷺ يقول((ان الشيطا ن قعدَ لابنَ آ د م بطريق الإسلام ، فقال : تُسْلِمُ وتذ رُ دِينك ودين آبائك ؟ فعصاه ، فأ سلم ، فغفرالله له.

ثم قعد له بطريق الهجرة ، فقال : تهاجرُ ، وتذ ر دارَك وأ ر ضَك وسماءَ ك ؟ فعصا هُ فهاجر.

---

[1] اخرجه مسلم . برقم : ۱۹۰۱ .

فقعد لـه بطريق الجهاد ، فقال : تجاهدُ وهو جهدُ النفس والمال ، فتقاتلُ فتقتل ، فتُنكحُ المرأةُ ويُقسم المالُ ؟ فعصاهُ فجاهد.
فقال رسول الله ﷺ : فمن فعل ذلك ، فمات ، كان حقاً على الله ان يُدخله الجنة ! وان غرقَ كان حقاً على الله أنْ يدخلَه الجنة . او وَقَصَتْه دابته كان حقاً على الله ان يدخله الجنة[1] )).
ژباړه :نسائي ، احمد او بیهقي لـه سبره بن الفاکه ﷺ نه روایت کړی دی هغه وایي چې ماله رسول الله نه آوریدلي دي چې ویل یې:
شیطان ابن آدم ته داسلام په لاره کې کیناست او ورته یې وویل ایا ته اسلام راوړې ؟ خپل اوپلار دین پریږدې ؟ هغه دشیطان خبره ونه منله او اسلام یې راوړ نو الله هغه لپاره بخښنه وکړه.
بیا دهجرت په لاره کې ورته کیښناست او ورته یې وویل : ایا ته هجرت کوې او خپل کور زمکه او سامان خوشی کوې . ابن آدم دهغه خبره ونه منله او هجرت یې وکړ ،
بیا دجهاد په لاره کې ورته کیښناست او ورته یې وویل ایاته په ځان او مال سره جهاد کوې ؟ ته به خلک ووژنې او هغوی به تاووژني ستا ښځه به بل چاته واده کړی شي او مال به دې تقسیم کړې شي . مګر بني آدم دهغه خبره ونه منله او جهادیې وکړ.
رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چې داسې کار وکړي او مړشي په الله باندې دهغه حق دی چې په جنت کې یې داخل کړي . اګر چې په اوبو کې ډوب شي خوپه الله باندې دهغه حق دې چې په جنت کې یې داخل کړي یاله څاروي نه وغورځیږي او مړشي نو پرالله تعالې باندی دهغه حق دی چې په جنت کې یې داخل کړي.
(( روى البزار عن محمد بن حبيب المصري ﷺ ، عن النبي ﷺ قال :لا تَنقطِعُ الهجرةُ ماقُوتل الكفار.[1] ))

---

[1]- مسند احمد ٣/ ٤٨٣ . والمتجتي للنسائي : ٦/ ٢١ _ ٢٢ وشعب الايمان للبيهقي : ٢/ ٩٥ والحديث صحيح .

بزار لـه محمد بن حبيب المصري ﷺ نـه روايت كوي هغـه وايـي چې محمد ﷺ وفرمايل : ترڅو پورې چې لـه كفارو سره جنګ روان وي هجرت نه بنديږي . داحديث پدې خبره دلالت كوي چې جهاد واجب دی او هجرت واجب نه دی . او ددې مطلب دادی چې هرڅوک ايمان راوړي اوله كفارو سره جهاد وكړي هغـه په ثواب كې لـه مهاجرينو سره شريک دی . اګر چې له خپل وطن نه هجرت ونه کړی.

(( وَخَرَّجَ ابـن ابـي شيبه في المصنف عن عمر بن الخطاب ﷺ ، قال : لولا ان أُسير في سبيل الله ، او اضـع جـبيني عـلى التراب لله ، او اجالس قوماً يلتقطون طَيِّبَ الكلام ، كما يلتقطُ طَيِّبُ التمر ، لا حببتُ ان اكون لحقت بالله [٢] )).

ابن ابي شيبه پخپـل مصنف كې لـه عمر بن الخطاب نه روايت كړی دی چې هغه ﷺ وويـل کـه چېرته دانه وای چې زه دالله په لاره كې ووځم يا خپل وچولې الله ته پرزمكه كيږدم ياداسې قوم سره كيښنم چې ښې خبرې داسې خوښوي لكه چې ښه خرما چاڼ كولې شي نو ماداخوښول.

چې له الله سره ملاقي شم . ( يعني مړشم. )

(( وَخَرَّجَ ابـن ابـي شيبة عن خالد بن الوليد ﷺ ، قال : ماليلةٌ تهدى اليَّ فيهـا عـروس أنـا لهـا محبٌ ، او أُبشَّرَ فيها بغلام ، احبُّ أليَّ من ليلةٍ شديدةِ البرد ، كثيرةِ الجليد ، في سرية ، اصبح فيها العدو . فعليكم بالجهاد[٣] )).

ابن ابي شيبه لـه خالد بـن وليـد ﷺ نـه روايت كوي چې هغه وويل .هغه شپه چې په هغې كې ماتـه زمـا محبوبه نـاوې راكړی شي . ياپـه هغې كې ماتـه دزوی زيـرې واوروړلې شي . ماته دهغې سختې يخنۍ اوباراني شپې ( چې لـه ډيرې يخنۍ نه اوبه

---

[١]ـ كشف الاستار عن زوائد البزار : ٢/ ٣٠٤ ورجاله ثقات ؟.

[٢]ـ المصنف لابنا بي شيبة ٥/ ٣٦٧

[٣]ـ المصنف لابن ابي شيبة ٥/ ٣٦٧ ٣٦٨ .

پکې په واوره بدلیږي ) نه زیاته محبوبه نه ده چې دهغې سباته په دښمن دحملې انتظار کوم . ای خلکو! پخپل ځان جهاد لازم وګرځوئ.
همدغه راز خالد بن ولید وایي چې زه ډیر ځله په جهاد کې دمشغولیدو او مصروفیدو له کبله دقران کریم ډیرله تلاوت نه پاتې شوې یم .[1]



[1] ـ مجمع الزوائد للهيثمي : ۹/ ۳۵۰.

# دریم باب
# جها د له حج نه زیات فضیلت لري

دابي هريره ﷺ صحيح حديث وړاندې تير شو چې لـه رسـول الله صلى الله ﷺ نه پوښتنه وشوه چې کوم يو عمل غوره دی ؟ هغه ﷺ وفرمايل په الله او دهغه په رسول باندې ايمان ، وويل شو بيا کوم يو عمل غوره دی ؟ محمد ﷺ وفرمايل : دالله په لاره کې جهاد . وويل شو بيا کوم يو عمل غوره دی ؟ هغه ﷺ وفرمايل قبول شوی حج [1]

(( وقـال عـبدالله بـن عمر رضى الله عنهما . لسفرة في سبيل الله افضل من خمين حجة [2] )).

عـبدالله بـن عمـر رضى الله عـنهما وايي چې دالله په لاره کې يو سفر لـه پنځو سو حجونو نه بهتر دی .

(( وقـال عمـر بن الخطاب ﷺ : عليكم بالحج ، فانه عمل صالح امرالله به ، والجهاد افضل منه [3] )).

عمر بن الخطاب ﷺ ويلي دي چې پرتاسو باندې حج لازم دی ځکه چې دابنه عمل دی او الله تعالې ددی دکولو امر کړيدې خو جهاد له دی نه زيات بهتردی .

وقـال عـبدالرحمن بـن غـنم الاشـعري ﷺ حجـة قـبل غزوة خير من عشر غزوات ، وغزوة بعد حجة خير من ثمانين حجة . [4]

---

[1] ـ اخرجه البخاري برقم : ٢٥١٨ ومسلم برقم : ٨٤

[2] ـ المصنف لابن ابي شيبة ٥/ ٣٠٤ .

[3] ـ المرجع السابق : ٥/ ٣٦٠ – ٣٦١.

[4] ـ الجهادلابن المبارك : ٢/ ١٨٧.

عبدالرحمن بن غنم الاشعري ﷺ فرمايلي دي چې له غزا نه مخکې حج کول له لسو غزاګانو نه غوره دی اوله حج نه وروسته غزاکول له اتيا حجونونه غوره دی .

(( وقال انس بن مالك ﷺ : غَزْوَةٌ في سبيل الله افضل من عشرحجج لمن قد حَجَّ [1] )).

انس بن مالک ﷺ وايي : چې چا فرضي حج کړې وي دهغه لپاره دالله په لاره کې يو غزا له لسو حجونو نه زيات بهتره ده .

(( وقال ضرار بن عمرو : طالت اقامتي ببلد الجها د ، فاشتقت الحج واردت ان اجاور ا لبيت الحرام ، فتجهزت الى الحج ، ثم اتيت اودع اخواني .

فاتيت اسحا ق بن ابي فروة لاودعه . فقال : واين تريد يا ضرار ؟ .

قلت : اريد الحج .

قا ل : ومانقص رأيك عن الجهاد ؟

قلت : لا. الاانه طالت اقامتي ببلد الجهاد ، وقد احببت الحج ، واردت ان اجاور بيت الله الحرام.

فقال لي : ياضرار بن عمرو : لاتنظر فيما تحبّ ، ولكن انظر فيما يحبُّ الله !

ياضرار بن عمرو : أما علمت انَّ رسول الله ﷺ لم يحجّ البيت الاّ مرةً واحدة ، ولكنه لم يزل غازياً مجاهداً حتى لحق بالله !ياضرار بن عمرو : إنك ان حججت فإنما لك أجر حجَّتك وعمرتك ، ولكنك اذا كنت مرابطا او

[1] - المصنف لابن ابي شيبه ۵/ ۳۰۳.

مجاهداً ، وحجّ البيت الحرام مائة ألف ومائة ألف ، كان لك مثل اجر حجتهم وعمرتهم ، وكان لك من الاجر بعلد كلّ مؤمن ومؤمنة ، منذ خُلِقَ آدمُ الى ان ينفخ في الصور ! لأنَّ من نصر آخر المؤمنين ، كان له كلجر من نصر اولهم وآخرهم ، وكا ن له من الاجر بعلد كلّ مشركٍ ومشركة من أن خلق الله آدم إلى ان يُنفخَ في الصور ، لأن من جاهد آخر المشركين كا ن كمن جاهد أوّلهم وآخرهم . وكا ن من الأجر بعلد كلّ حرفٍ انزله الله ، في التوراة والانجيل والزبور والقرآن ، لانه يجاهد لئلا يُطفأ نورالله!!

ياضرار بن عمرو: اما علمت انه ليس من احدٍ اقرب الى درجة النبوة من درجة العلماء والمجاهدين .

فقلت : كيف ذلك يرحمك الله ؟

فقال : لانَّ العلماء قاموا بما جاءت به الانبياء من تثبيت امر الله فى عبا ده وبلاده ، ويدُلّون الناس على الله .

ولانَّ المجاهدين قاموا بما جاءت به الانبياء عن الرب من توحيد الله ، كي لأيُطفا نوره ، ولان تكون كلمة الله هي العليا ، وكلمة الذين كفروا السفلى!

قال ضرار بن عمرو: فتركت ماكنت فيه من قصد الحج ، واقمتُ ببلد الجهاد .))

ژباړه : ضرار بن عمرو رضي الله عنه وايي چې په جهاد كې زما وخت ډير تېر شو ناڅاپي مې حج ته شوق پيداشو . ومې غوښتل چې بيت الله شريف ته لاړشم او په خواكې يې واوسيږم .

دحج لپاره می سامان وتړلو او بیا خپلو وروڼو( ملګرو) ته ددخدای پاماني لپاره راغلم لومړې اسحاق بن ابي فروه ته راغلم چې خدای پاماني ورسره وکړم ، هغه راته وویل : ای ضراره ! چېرته دې اراده کړیده ؟ ماورته وویل دحج اراده مې کړیده، هغه راته وویل : له جهادنه دې جذبه په څه شي سړه شویده ؟

ماورته وویل نه داسې نه ده . بلکې په جهاد کې مې ډیر وخت تیر کړ اوس مې له حج سره ډیره مینه پیداشویده او غواړم چې دبیت الله په څنګ کې واوسم.

هغه راته وویل ای ضراره ! ته چې څه خوښوې هغه ته مه ګوره بلکې دی ته و ګوره چې الله څه خوښوي ؟

ای ضرار بن عمرو ! ایا تاته نه دي معلوم چې محمد ﷺ له یوځل نه زیات حج ندی کړی . لیکن دژوند ترآخري سلګۍ پورې په جهاد کې بوخت و.

ای ضرار ابن عمرو! که حج وکړې نو ستالپاره یوائې دحج او عمرې اجر دی . لېکن که چېرته ته دسرحدونو محافظ یامجاهد یې نو تاته دهغو لکونو خلکو دحج او عمرې ثوابونه رسیږي چې ( په امن ) حج او عمره اداکوي . او تاته به دحضرت آدم علیه السلام له زمانې نه نیولې ترقیامت پورې دپیداکیدونکومسلمانو سړو اوښځو په اندازه ثواب درکول کیږي ځکه چې هرچاچې دوروسته پیداکیدونکو مسلمانانو مرسته وکړه نو هغه ته دلومړنیو او وروستنیو دټولو مسلمانانو دمدد ثواب رسیږي .

تاته به ددنیا له لومړې ورځې نه ترقیامته پورې دپیداکیدونکو مشرکانو په شمیر هم ثواب رسیږي ځکه چې چاله وروستنیو مشرکانوسره جهاد وکړ نو هغه ته دلومړنیو او وروستنیو په تعدادسره هم ثواب رسیږي .او تاته به دتورات ، انجیل زبور او قران کریم دیویو حرف په حساب سره نیکي درکول کیږي ځکه چې ته دالله تعالې دنور ( رڼا ) حفاظت کوونکې یې او دې مقصد لپاره جهاد کوې چې دالله تعالې نُور څوک مړنه کړي.

ای ضرار بن عمرو ! ایا تاته معلومه نه ده چې له علماو او مجاهدینونه زیاته دهیچا مرتبه نبوت ته نژدی نه ده ؟ ضرار بن عمرو وایي : ماتپوس وکړ چې ای اسحاقه ! ددې څه وجه ده ؟ هغه راته وویل : علماء خوله دې کبله نژدې دي چې دوی دالله تعالې هغه احکام چې انبیاو راوړی دی دالله پرزمکه دالله په بندګانو باندې نافذوي

او خلکو ته ددین لاره ښيي . او مجاهدین لدی کبله نژدي دي چې دوی دتوحید هغه عقیده چې پیغمبرانو لـه الله نه راوړیده ختمیدوته نه پریږدي.
اودالله تعالې دین دسرلوړي کولو اودکفردختمولو لپاره جهاد کوي.
حضرت ضرار رحمه الله علیه فرمايي چې ماددې اثرناک بیان لـه آوریدونه وروسته دحج اراده پریښوده اوپه محاذونوکې په ټینګوقدمونو سره اوسیدم . ( حضرت ضرار همغلته په جهاد کې لـه خپل حقیقي خالق سره یوځای شو).



# څلورم باب
# جهاد ته دخلکو درابللو فضیلت

قال تعالی : ﴿ وَحَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ عَسَى اللَّهُ أَنْ يَكُفَّ بَأْسَ الَّذِينَ كَفَرُوا وَاللَّهُ أَشَدُّ بَأْسًا وَأَشَدُّ تَنْكِيلًا﴾ [النساء٨٤].

او مسلمانان دجنګ په لور وهڅوه کیدای شي چې الله پاک دکافرانو جنګ بندکړي دالله پاک زور ترټولو زیات او الله پاک سخت سزا ورکوونکی دی.

وقال تعالی :

﴿ يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى الْقِتَالِ إِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ عِشْرُونَ صَابِرُونَ يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ وَإِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ مِائَةٌ يَغْلِبُوا أَلْفًا مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَا يَفْقَهُونَ ﴾ [الأنفال٦٥].

ای نبي ! مومنان جنګ ته وهڅوه که ستاسي شل صبر کوونکې وي نو پردوه سوو به برلاسې شي

اوکه ستاسو سل تنه وی نو په زرو کافرانو به برلاسې شي ځکه چې کافران ناپوه قوم دی.

وقال تعالی :

﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَى تِجَارَةٍ تُنْجِيكُمْ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ) (تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَتُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ (الصف : ١٠_١١)

ای مومنانو! ایا یو داسې تجارت در وښایم چې تاسې لـه دردناک عذاب څخه وژغوري . پـه الله اورسول یې پوخ ایمان راوړئ ، پـه مال او سر دالله پـه لاره کې جهادوکړئ که پوهیږئ نو دا درته غوره ده.

هغه آیتونه چې الله تعالی دهغو په ذریعه خپل بندګان جهاد ته هڅولي دي او دهغه داجر او ثواب په طرف یې رابللي دي ډیر زیات دي.

جهاد تـه دتیزولو او ترغیب ورکولو الهي دستور لـه مخکې نه را روان دی . دقران کریم هغه آیتونه چې دجهاد دتحریض لپاره راغلي دي له هیچانه پټ نه دي . همدغه راز دنبي کریم ﷺ سنت او احادیث هم لـه دی نه ډک دی . نبي کریم ﷺ اصحابو کرام رضی الله عنهم ، تابعینو ، تبع تابعینو صالحو سلفو ، او علماوخلکو ته بنه په زور او شور سره دجهاد ترغیب ورکړیدی .

علی ابن طالب رضي الله عنه فرمایلي دي چې څوک خپل ورور دجهاد لپاره وهڅوي نو هغه لپاره هم دهغه دثواب هومره اجر دی .دعلی رضي الله عنه ددی قول لپاره دمحمد صلی الله عیه وسلم داحدیث شریف دلیل دی:

(( روی مسلم عن ابي مسعود الانصاري رضي الله عنه عن رسول الله ﷺ قال : " من دل علی خیر فله مثل اجرِ فاعله" .[1] )).

مسلم لـه ابي مسعود الانصاري رضي الله عنه نه روایت کوي هغه وایي چې حضرت محمد ﷺ فرمایلي دي :

څوک چې دخیر ښیګڼې لاره چاته وښایي نو هغه ته هم دهغه دکونکي دثواب هومره ثواب ورکول کیږي .

خنساء بنت عمرو په نوم یوه شاعره وه هغې به خپل زامن جهاد لپاره هڅول. پدې وخت دقادسیه جنګ شروع شو . دهغې څلور زامن وو هغوی ټول یې دجهاد لپاره وهڅول او چمتویې کړل. دجنت رغبت یې په زړونو کې واچول او دشهادت

---

[1]ـ اخرجه مسلم برقم : ۱۸۹۳

لپاره يې تيار کړل . او پرې ورتيز يې کړل هغوی ټولو په جهادونوکې ګډون وکړو او ځلور واړه شهيدان شول.

جهاد ته دهڅولو يوه په زړه پورې کيسه داسلام مورخ حافظ ذهبي له ابي المظفر سبط ابن الجوزي نه حکايت کړيدی چې په کال ۶۰۷ وم هجري کې ددمشق په مسجد کې ناست و او خلک به يې دتاتاريانو په خلاف جهاد ته هڅول ځکه چه هغوی پرزمکه فساد شروع کړی و.

ابن جوزي وايې کوموخلکو چې زما په درس کې ګډون کړی و دهغوی شمار تقريبا ديرش زره پوری و ددمشق زمکې له دې نه مخکې ددومره خکو راټوليدل او دومره لويه غونډه نه وو کتلې او دوی به هره ورځ ددمشق مسجد ته راتللل په دې کې ډيرو خلکو توبې وويستلې او جهاد ته راغب شول . ډيرو ښځو خپل زلفې قينچې کړې او مجاهدينو ته يې هديه کړې ترڅو دمجاهدينو داسونو لپاره واګې جوړې کړې.او دښځو له دغو ويښتانو څخه دمجاهدينو داسونو لپاره درې سوه واګې جوړې کړې.

خلک له دمشق نه دجهاد لپاره راووتل . دجنوب له طرف نه د( کسوه) په لور يې حرکت وکړ او ډير هغه خلک ورسره پدې ځای کې يو ځای شول چې جهاد ته اماده وو . او دکسوه زملکا او نوروځايونو مجاهدينوهم شرکت په دې ځای کې زرګونه مجاهدين دجولان په طرف وخوځيدل دجولن د( افيق) نومې غره نه يوه سخته لاره د( اردن ) ژورې زمکې ته کوزه شوې وه مجاهدين دغې زمکې ته راښکته شول اوله هغه ځای نه يې دنابلس په لور مخه کړه ، په نابلس کې يې لوی غونډه وکړه او دنابلس له پاچاسره کيښناستل هغه ورته تود هرکلې ووايه بيا دنابلس په جامع مسجد کې کښناستلو او خلک مو دجهاد لپاره هڅول.

دنابلس له ښار نه زرګونو مجاهدينو په هغو ښارونو باندې حمله وکړه چې "فرنج" ( فرنګيانو)قوم نيولې و ، له هغوی نه يې ډير کسان ووژل اوډير يې ژوندي ونيول او پخپله بيرته روغ رمټ راوګرځيدل.

له موثرو جهادي قصونه يوه قصه " دام ابراهيم الهاشميه" قصه ده چې ابو جعفر احمد بن جعفر په خپل کتاب " تنبيه ذوی الاقدار علی مسالک الابرار" کې بيان کړيده . دهغې بيان دلته په لنډه توګه وړاندې کوو. ددې کيسې راوي امام غښتلې او ناستو عالم او مجاهد عبدالواحد ابن زيد ( البصری دی )

وایي چې په بصره کې څه عبادت ګذارې ښځې وې له هغوی نه دیوې نوم اُم ابراهیم الهاشمیه وه په دغو ورځو کې دشمنانو دمسلمانانو په یوه سرحد حمله وکړه ددغې ځملې دمخنیوي لپاره دمجاهدینو ضرورت و یو عالم عبدالواحد بن زید بصري رحمه الله علیه دخلکو په زړونو کې دجهاد دشوق دپیداکولو لپاره یې له بیلا بیلو هڅوونکو شیانو نه یوه برخه راواخستله په دی اړه یې آیتونه احادیث وړاندې کړل . دحور عین قصه بیان کړه.

دحورو صفات یې بیان کړل او بیا یې دهغوی په اړه څو شعرونه وویل :هغه پیغلې دي ، په نازو نخرو کې لوی شویدي او په ښکلې طریقې سره یې دحور عین په اوصافو کې آیتونه او احادیث تیرکړل . مسلمانان یې جهاد او شهادت ته ترغیب کړل.

" ام ابراهیم الهاشمیه " دلته حاضره وه دحور العین صفتونه یې چې واوریدل نو ابن زید ته راغله او ورته یې وویل : زما زوی ابراهیم واده نده کړی دبصرې ډیر غټ غټ دمالدارخلک غواړي چې هغه ته خپلې لور ګانې واده کړي . لیکن تاچې نن دکوم حورعین صفت وکړ هغه زما ډیره خوښه شوه غواړم چې هغه خپل زوی ته وادو کړم .

" ام ابراهیم" یوه نیکه او مالداره ښځه وه هغې" عبدالواحد بن زید " ته "دحورعین" لس زره دیناره مهر ورکړه ترڅو ابراهیم له ځان سره جهادته بوځي او که الله وغواړي نو شهادت یې په نصیب شي اوله دغې حورعین سره بي واده وشي . او دقیامت په ورځ دخپل مور او پلار لپاره شفاعت وکړي ، شیخ عبدالواحد وویل : ای ام ابراهیم ! که تا خپل زوی جهاد ته ولیږه نو هغه به هم کامیاب شي او ته اودهغه پلار به هم کامیاب شئ . بیا دغې ښځې خپل زوی ته په زوره آواز وکړ ای زویه ! دهغه زوی چې دا آواز واورید نو دزرګونوخلکو له منځ نه یوځران نیغ پاڅید ویې ویل : ای مورې ! زه حاضر یم . مور یې ورته وویل ای زویه ! ایا ته له دغې جبنۍ (حورعین) سره بدې شرط واده کولو لپاره تیار یې چې ته به ځان دالله په لاره کې قربانوې او ګناهونو ته به نه واپس کیږې. هغه ځوان وویل : ای مورې په الله قسم چې زه دابه خوشالي سره قبلوم . مورې چې دهغه خبرې واوریدلې نو ویې ویل :

ای الله : ته ګواه اوسه چې مادخپل زوی واده له دغې حورعین سره پدې شرط کړیده چې زما زوی به خپل سرستا په لاره کې قربانوي او ګناهونوته به بیانه راګرځي . ای

ارحم الراحمين ذاته ! زماله طرف نه داپخپل دربار کې قبول او منظور کړه . له دی نه وروسته يې شيخ عبدلواحد ته لس زره اشرفۍ ورکړې او ورته يې وويل چې دادهغې حورعين مهر دی . پدې باندې تاسې ځان اونورو مجاهدينو لپاره دجهاد سامان واخلئ.بيا هغه واپس شوه او خپل زوی لپاره يې يو ښه اعلی آس واخست او ډيره ښه وسله يې ورته ورکړه . بيا شيخ عبدالواحد لښکر راواخست او روان شو ابراهيم هم په منډه راغې او ورسره يو ځای شو . دقران کريم قاريانو ددې شاوخوا دا آيتونه ولوستل.

﴿إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ﴾

[التوبة :۱۱۱ ].

بېشکه الله تعالی له مومنانو نه دهغوی ځان او مال دجنت په عوض کې آخستی دی. دابنځه هم دلښکر درخصتولو لپاره راووتله دواپس کيدو په وخت يې خپل زوی ته يو کفن او خوشبوی ورکړه او ورته يې وويل : چې دجنګ په وخت کې داکفن واغونده اوداخوشبويې په ځان ولګوه او هيڅ قسم سستې مه کوه .بيا يې خپلې سينې ته رانژدی کړ او په تندې يې ښکل کړ . ورته يې وويل : ګرانه زويه! زما دادعا ده چې الله تعالې مونږ دقيامت له ورځ نه مخکې يو ځای نکړي. مجاهدين له کفارو سره دجنګيدو لپاره وړاندې شول امام عبدالواحد دمجاهدينو په لومړي ليکه کې و هغه رحمه الله وايي چې کله مونږ دجنګ محاذ ته ورسيدو او باقاعده دجنګ آواز وشو نو څه خلک دجنګ لپاره مخکې ووتل په هغوی کې ابراهيم له ټولو نه مخکې روان و. هغه له کفارو نه ډير خلک ووژل بيا پخپله هم ددښمنانو دلاسه شهيد شو . کله چې مونږ بصرې ته واپس راتلو خلک زمونږ استقبال ته راوتلي و ما خپلو ملګرو ته وويل چې دابراهيم مور دخپل زوی له شهادت نه مه خبروئ هسې نه چې دغم په وجه خپل ثواب له لاسه ورکړي . کله چې مونږ بصرې ته ورسيدلو نو خلک به مونږ ته دملاقات لپاره راتلل په هغو کې دابراهيم مور هم وه دهغې چې پرما سترګي ولګيدلې نو راته يې وويل: ای ابو عبيده ! که الله تعالې زما هديه قبوله کړی وي چې زه ورباندې خوشالي ښکاره کړم نو ماته مبارکي راکړئ او که بېرته يې راته واپس کړی وي نو له ماسره دې غمخواري وکړې شي . ماورته وويل : په الله قسم

چې الله تعالی ستاهدیه پخپل دربار کې قبوله کړیده ، ستازوی حقیقي ژوند ترلاسه کړیدی او لـه شهیدانو سره یو ځای په جنت کې خوراک څښاک کوي . هغې چې زما داخبره واوریدله نو فوراً دشکر داداکولو لپاره په سجده پریوته اوویې ویل : یا الله ستاډیر ډیر شکر دی چې نا امید.ه دی نه کړم او زما قرباني دی قبول کړ . لدینه پس بیرته کورتـه لاړه.سباته هغه زما مسجد تـه راغلـه او لـه سلام آچولو نه وروسته یې وویل: ای ابو عبیده ! مبارک دې شه . ماپه خوب کې خپل زوی ابراهیم په یو ښکلي باغ په شین محل کې ولید . شنه چپنه یې اغوستي وه هغه دملغلرو په پالنګ باندې ناست و په سر یې قیمتي تاج وو او ماته یې وویل موری مبارک دی شه . تا چې کوم مهر ورکړې و هغه قبول او دناوې رخصتي وشوه . ( یعنې زه ورسره یو ځای شوم)[۱]



[۱]_ انظر قصة " ام ابراهم الهاشمية " في الاصل ۱: ۲۱۵_۲۱۸

# پنځــم بـــاب
# په جهاد کې د مخکې کيدو او چټکتيا کولو فضيلت

قال الله تعالی : ﴿ سَابِقُوا إِلَى مَغْفِرَةٍ مِنْ رَبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا كَعَرْضِ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ﴾ [الحديد: ۲۱].

دخپل رب دبښنې او هغه جنت ته يو له بل نه وړاندې شئ چې ارتوالې يې دآسمان او زمکې دارت والي په اندازه دی.

﴿ وَالسَّابِقُونَ الْأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنصَارِ وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُمْ بِإِحْسَانٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ وَأَعَدَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي تَحْتَهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ذَلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴾ [التوبة۱۰۰] .

لـه هغو مهاجرينو او انصارو چې دنيکيو په لومړی والي کې ترهر چاوړاندې شوي او لـه هغو نيکانو چې په غوره توګه په هغوی پسې تللي دي الله پاک خوښ ، او دوی له الله نـه خوښ دي . او هغـه جنتونه يې ورتـه تيـارکړي دي چې لانـدی بـه تـرې ويـالې بهيږي . دوی به هميش پکې وي . همدا لويه کاميابي ده.

﴿ وَالسَّابِقُونَ السَّابِقُونَ (أُولَئِكَ الْمُقَرَّبُونَ ۝. فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ ﴾

[ الواقعة : ۱۰-۱۲].

او لومړني لومړنـي دي.او همـدوی الله تـه نـژدی کـړي شـوي دي.لـه نعمـتونوپه ډکـو جنتونو کې به اوسيږي.

عـثمان بـن ابي سوده وايي ددغه آيت په باره کې مونږ ته داخبر رارسيدلې دی چې لـه (والسبقون السبقون ) نـه هغـه څوک مراد دي چې دالله په لاره کې جهاد او لمونځ ته لـه ټولونـه مخکې روان وي.عـثمان دتابعينو لـه امامانو څخه و اوپه هغوی کی دغزا او جهـاد امـام و ، چاترې نـه پوښتنه وکړه ايا سږ کال به هم غزا کوې ؟ هغه وويل ديو لک سرو زرو دينارو په عوض کې هم جهاد نه پريږدم .

# شپږم باب

## دالله په لاره کې دسهار او بیگاه دتیرولو فضیلت

قال الله تعالی :

﴿ وَلَا يُنفِقُونَ نَفَقَةً صَغِيرَةً وَلَا كَبِيرَةً وَلَا يَقْطَعُونَ وَادِيًا إِلَّا كُتِبَ لَهُمْ لِيَجْزِيَهُمُ اللَّهُ أَحْسَنَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾ [التوبة۱۲۱].

اودالله په لاره کوچنې ورکړه وکړي یالویه او چې په هره کنده وربورته شي نودهغوی له پاره لیکلې شي ، ترڅو الله پاک دهغوی دښو کړنو ښه بدله ورکړي.

روی البخاري ومسلم عن انس بن مالك ﷺ ان رسول الله ﷺ قال : لَغدوةٌ في سبيل الله ، او روحَةٌ خيرٌ من الدنيا وما فيها ولَقا بَ قوسِ احدِ كم من الجنة او موضع قيد سوطه خيرٌ من الدنيا ومافيها ولو ان امرأة من اهل الجنة اطلعت الى اهل الارض لاضاءَ تْ مابينهما ولملأته ريحاً ، وَلَنصِيفها على رأسها خيرٌ من الدنيا وما فيها.[1]

بخاري او مسلم له انس بن مالک ﷺ نه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل : دالله په لاره کې یوسهار یا یو ماښام وتل له دنیا او په دنیاکې چې څه دي بهتر دی او په جنت کې ستاسې دکمان ، لیندی هومره ځای یادخپل قمچینې دایښودلو هومره ځای له دنیا او په دنیاکې چې څه دي له ټولونه غوره دي . که چېرته یوه جنتي ښځه دزمکې خلکو ته خپل ځان ښکاره کړي نو ټوله زمکه به روښانه اوله خوشبوی نه ډکه کړي . اودهغې لوپټه له دنیا او ددنیا له ټولو څیزونو څخه بهتره ده د(( الغدوة)) معنی ده جهاد ته یوځل تلل.

---

[1] ـ اخرجه البخاري برقم : ۲۷۹٦ ومسلم برقم : ۱۸۸۰

د(( والروحة )) معنی ده ( له جهاد نه ) یو خل راتلل ( واپس کیدل ). نووي په شرح مسلم کې ویلي دي : " الغدوة "معنی ده له سهار نه ترزواله پورې جهاد ته تلل اود (( والروحة)) معنی ده له زوال نه تردورخې تر اخیري پورې تلل.

دحدیث معنې ده کوم مجاهد چې یو سهار او بیګاه جهاد ته ورځي هغه ته دومره لوی اجر په نصیب کیږي چې له دنیا او مافیها څخه غوره وي.

ددی حدیث له ظاهر نه همدا معلومیږي چې دالوی ثواب مجاهد ته دهر سهار او بیګاه په حساب سره ورکول کیږي هرچېرې چې وي . یواځې ترهغې ورځې پورې خاص ندې چې هغه پکې له خپل کورنه ووزي .

یعنې دیو سهار اویو بیګاه ثواب ددنیاله ټولو نعمتونو څخه ښه دی.که یو انسان دټولې دنیا مالک شي . او پکې عیش او عزت پیل کړي نو له دی نه دیو سهار یایو بیګاه ثواب زیات دی څکه چې ددنیا ټول نعمتونه زائلیدونکې دي اودآخرت نعمتونه همیشه وي او نه ضائع کیږي .[1]

(( وروی البخاري عن ابي هریرة ﷺ : قال قال رسول الله ﷺ "لروحةٌ في سبيل الله او غدوة ، خير مما تطلع عليه الشمس وتغربُ ، لقاب قوس في الجنة خير مما تطلع عليه الشمس وتغرب [2] )).

بخاري او مسلم له ابي هریره ﷺ نه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل :

دالله په لاره کې یو ماښام یا یو سهار تیرول له هغه څخه نه غوره دی چې وربانديې لمر خیژي او ډوبیږي . اوپه جنت کې دلیندۍ دیو کمان هومره ځای غوره دی له هغه څه نه چې لمر وربانديې خیژي او ډوبیږي.

[1]ـ شرح النووي على صحيح مسلم : ١٣/ ٢٦ـ ٢٧

[2]ـ اخرجه البخاري برقم : ٢٧٩٣ .

(( وروى مسلم عن ابي هريرة ﷺ قال : قال رسول الله ﷺ (( تضمَّنَ اللهُ لمن خرج في سبيله ، لايُخْرِجُهُ الا جهادٌ في سبيلي ، وايمان بى ، وتصديقٌ برسلي ، فهو عليَّ ضامِنٌ ان اُدخِلَهُ الجنة ، او أُرجعه الى مسكنه الذي خرجَ منه ، نائلاً مانالَ من أَجرٍ اوِ غنيمة.

والَّذِي نفسُ محمدٍ بيدِهِ . مامن كَلِمٍ يُكْلَمُ في سبيل الله ألاّ جاء يومَ القيامة كهيئته يَوْمَ كُلِمَ ، لونُه لونُ الدم ، وريحُه ريحُ المسكِ. والذي نفسُ محمدٍ بيده، لولا ان اشقَّ على المسلمين ،ماقعدتُ خلافَ سريةٍ تغزو في سبيل الله أبداً ، ولكن لا أجدُ سَعَةً فاحملُهم ، ولا يجدونَ سَعَةً ، ويشقُّ عليهم ان يتخلَّفوا عني.

والذي نفسُ محمد بيده لَوَدَدْتُ ان اغزُو في سبيل الله فأُقْتل ، ثم اغزو فأُقتل ، ثم اغزو فاقتل...... )) [1] .

مسلم له حضرت ابو هريره ﷺ نه روايت كوي چې محمد ﷺ وفرمايل :
الله تعالى فرمايي : زما په لاره كې چې څوک پرما دايمان لرلو او زما پر رسولانو باندې تصديق لرلو سره جهاد ته ووځي زه دهغه لپاره ددې ضامن يم چې يابه يې په جنت كې داخلوم او يابه يې دغنيمت مال او اجر سره كورته واپس كوم.
نبي كريم ﷺ وفرمايل: قسم دې په هغه ذات چې دهغه په لاس كې دمحمد ﷺ ساه ده ، كوم سړې چې دالله په لاره كې زخمي شو نو هغه به دقيامت په ورځ په زخمي حالت كې حاضريږي . دوينې رنګ به يې دوينې په شان او خوشبوي به يې دمشكو وي . قسم دى په هغه الله چې زما روح دهغه په لاس كې دى كه چېرته په مسلمانانو باندې مشكل نه تماميداى نو زه به له يوې سريې نه هم وروسته نه وم پاتې شوى ،

---

[1] ـ اخرجه مسلم برقم : ١٨٧٦ .

خو زه دغريبو مسلمانانو لپاره سورلی نشم پيداکولی او هغوی پخپله هم ددې طاقت نلري . او هغوي لپاره له مانه وروسته پاتې کيدل ګران تماميږي . قسم دی په هغه ذات چې دهغه په قبضه کې دمحمد صلی‌الله عليه وسلم ساه ده ، زه غواړم چې دالله په لاره کې جهاد وکړم او شهيد شم .
بيا غزاوکړم او شهيد شم ، بيا غزاوکړم او شهيد شم.

(( روى البزار عن سعد بن ابيّ وقاص ﷺ ، اَنَّ رجلا جاء الى الصلاةِ والنبي ﷺ يصلّي بنا.

فلما انتهى الى الصفّ قال . "اللهمّ آتني افضلَ ماتُؤتي عبادَكَ الصالحين!

فلما قضى النبيُّ ﷺ الصلاة قال : مَنِ المتكلمُ آنفاً ؟قال الرجل : انا.قال صلى‌الله عليه وسلم : إذَنْ يُعْقَرُ جَوادُك ، وتستشْهد في سبيلِ الله .... ))[1]

بزار لـه سعد بن ابي وقاص ﷺ روايت کوي چې يو سړي لمونځ ته راغې او نبي کريم ﷺ مونږ ته دلمونځ امامت راکاو.
کله چې صف تـه نژدی شو نو ويې ويل : ای الله ماته هغه بهتراو افضل شې راکړه چې خپلو صالحو بندګانو ته ئې ورکوې . کله چې نبي کريم ﷺ لـه لمونځ نه خلاص شو نو ويې فرمايل : اوس لګ وړاندې چا خبرې وکړې ؟ هغه وويل يارسول الله زه ، رسول الله ﷺ وفرمايل : نوستا اس به زخمي کيږي اوته به دالله په لاره کې شهيد کيږي .

(( وروى ابن عساكر عن عبدالله بن محيريز الجمحِيّ . انه خرج بعثٌ للجهاد من دمشق لغزو الروم . وهو بعث الطائفة ، فاكتتب في البعث ابوه محيريزالجمحى _ وهو صحابي _ فمرض مرضاً شديداً

فقال لابنه عبدالله : يابني : احملني ، فسر بي الى ارض الروم.

---

[1]- كشف الاستار ٢/ ٢٨١ ورجاله ثقات .

(( قال عبدالله : فحملته . فلم ازل اسيربه ، وهو يقول : يابني اسرع بي السير !

قلت : يا ابت انك مريض!

قال : يابني اسرع بي السير ، فاني احبُّ ان يكون اجلي بارض الروم .

فما زلت اسيربه ، حتى مات بارض حمص! ))

ابن عساكر له " عبدالله بن محيريز الجمحي " نه روايت كوي چې هغه له دمشق نه دمجاهدينو يو ګروپ غزا لپاره روم ته وليږلو . دغه ګروپ "دبعث الصائفه" په نوم يادېده . په هغه ګروپ کې زماپلار ابو محيريز الجمحی خپل نوم وليکه هغه يو اصحابي و ، بيا ډير سخت ناروغ شو هغه خپل زوی ته وويل : ای زويه ! ما بارکړه او دروم زمکې ته مې بوزه.

عبدالله وايي چې ما هغه بارکړ په لاره کې به يې بيا بيا همداويل چې زويه! ژر ژر مې ورسوه . مابه ورته ويل ای پلاره! ته خو ناروغ يې . هغه به راته ويل او زويه !ما ژر ژر بو ځه ځکه چې زه داخوښوم چې زه په روم کې مړشم مونږ هغه روان کړی و تردې چې په حمص کې مړشو.

(( وروى الذهبي عن حصين بن جندب : غزا جيش المسلمين القسطنطينية زمن معاوية وقد اتيت مصر بعد رجوع الجيش من هناك.

فاخبرني بعض من كانوا في الجيش انهم لما كانوا محاصرين للروم في القسطنطينية احتضر ابو ايوب الانصاري ﷺ ، فقال لمن حوله : اذا متّ ، فضعوني على الخيل ، ثم سيروا بي ، حتى تلقوا العدو ، عند أقرب نقطة من جيش العدو ، وهناك احفروا لي قبراً ثم ادفنوني ، ثم سووا قبري كي لايعرفه أحد.))

ذهبي لـه حصين بن جندب نه روايت کوي چې دمعاويه ﷺ په زمانه کې دمسلمانانو لښکر په قسطنطينيه کې غزا وکړه. کله چې لدې ځای نه لښکر واپس شو نو زه مصر ته راغلم . اوپه لښکر کې موجودو ځينو کسانو ماته وويل چې کله په قسطنطينيه کې دوی روميان ( صليبيان) محاصره کړي وو نو پدې وخت کې ابو ايوب الانصاري حاضر کړی شو. هغه ﷺ خپل شاخوا خلکو ته وويل : کله چې زه مړشم نو ماپه اس باندې واچوئ او بيامې ترهغه ددشمن په طرف روان کړئ چې تاسې له دشمن سره نږدې په نږدې مخامخ شئ بيا همغلته زما لپاره قبر وباسئ او پکې دفن مې کړئ بيامې قبرهوارکړئ ترڅو څوک يې ونه پيژني.

(( وروی ابن عساکر عن سعيد بن عبدالعزيز قال : کان ابو مسلم الخولاني مع المجاهدين بارض الروم ، في خلافة معاوية ﷺ ، وکان قائد الجيش بسربن ارطاة ﷺ .

فمرض ابو مسلم الخولاني واحتضر ، فقال لبسر بن ارطاة قبل ان يموت : اذا انا مت ، فأمّرني على من ما ت معك من المسلمين ، واعقد لي لواء عليهم ، واجعل قبري اقصى القبور الى العدوّ ، فإني أرجو أن أجيء يوم القيامة بلوائهم... ))

ابن عساکر له سعيد بن عبدالعزيز څخه روايت کوي چې هغه وايي : دمعاويه رضی الله دخلافت په زمانه کې ابو مسلم الخولاني په روم کې له مجاهدينو سره يو ځای و . يدې وخت دلښکر مشر بسر بن ارطات ﷺ و.

ابو مسلم الخولاني ناروغ شو . هغه بسر بن ارطا ت ته وويل : کله چې زه مړشم نو مادهغو مسلمانانو مړو امير مقرر کړئ چې له تاسره مړه شوي دي . او يو بيرغ زما په لاس کې راکړئ.

زما قبر ددشمن خواته نږدې وباسئ . اميد لرم چې زه به دقيامت په ورځ په داسې حالت کې راشم چې دشهيدانو بيرغ زماپه لاس کې وي.

# اووم بـــا ب
# دالله په لاره کې د ګرد اوپه هغه کې دتللو فضيلت

(( روى البخاري عن عبدالرحمان بن جبير ﷺ قال :سمعت رسول الله ﷺ : يقول : من اغبَرَّتْ قدما ه في سبيل الله ، حرمه الله على النَّار.[۱] )).

بخاري له عبدالرحمان بن جبير ﷺ نه روايت كوي چې ماله رسول الله ﷺ نه آوريدلي دي چې وېل يي : دالله په لاره کې چې دچاپښې ګردجنې شي الله هغه په اور باندې حراموي .

(( وروى الترمذي والنسائي والحاكم عن ابي هريرة ﷺ : قال : قال رسول الله ﷺ : "لايلج النارَ رجلٌ بكى من خشية الله حتى يعودَ اللبنُ في الضَّرْعِ ، ولا يجتمع غبارٌ في سبيل الله ودخان جهنم في منخري مسلم ابداً")) [۲].

له ابي هريره ﷺ نه ترمذي نسائي او حاكم روايت كړى دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل : نه داخليږي اور ته هغه سړى چې دالله له ويرې نه ئې ژړلي وي ترڅو چې لوشل شوې شېدې غلانځې ته نه وي واپس شوې. او نه هيڅ كله جمع كيږي دالله دلارې دوړه اودجهنم لوګي ديو مسلمان دپوزې په تينكي كې .

(( وروى مسلم عن ابي هريرة ﷺ عن النبي صلى الله عليه وسلم : قال لا يجتمعان في النار اجتماعا يضرُّ احدهما الآخر : مسلمٌ قتل كافراً ثم سدَّد

---

[۱]ـ اخرجه البخاري برقم : ۹۰۷.

[۲]ـ سنن النسائي : ٦/ ١٢ وسنن الترمذي ٣/ ٩٣. والمستدرك للحاكم ٤/ ٢٦٠.

المسلمُ وقارب ، ولا يجتمعان في جوف عبدٍ : غبارفي سبيل الله ودخان جهنم ولا يجتمعان في قلبِ عبدٍ الايمان والشحّ )).[1]

مسلم له ابي هريره ﷺ نه روايت كړى دى هغه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي نه جمع كيږي په اوركې دوه شيان چې يخپلو كې يو بل ته ضرر رسوي يو هغه مسلمان چې كافر يې وژلى وي بيادغه مسلمان له اختلاف نه ځان وساتي او دمسلمانانو ترمنځ يو والې راولي .

اونه جمع كيږي ديو بنده په ګېډه كې دالله دلارې دوړه او دجهنم لوګي.

نه جمع كيږي ديو بنده په زړه كې ايمان او بخل .

روايت دى چې يوځا عبدالله بن مبارک په خوب كې وليد او پوښتنه يې ترينه وكړه چې الله تعالى له تاسره څه وكړ؟ هغه وويل زه يې وبخښلم . ورته يې وويل دهغه علم په وجه چې تاپه خلكو كې خور كړې و ؟هغه وويل نه بلكې دهغه دوړې نه كبله چې دالله په لاره كې زماپوزې او مرى ته ننوتلې وې .

((وروى ابن حبان وابن المبارك والبيهقي عن ابي المصبّح المقرائي قال :

بينما نحن نسير بارض الروم في طائفةٍ من المجاهدين، عليها مالك بن عبدالله الخثعمي ، إذ مرمالكٌ بالصحابي جابر بن عبدالله رضي الله عنهما ، وهو يمشي على قدميه ،

يقود بغلاً له.فقال له مالك : يا اباعبدالله : اركب بغلك . فقا. حملك الله . فقال له جابر : اصلح دابتي واستغني عن قومي . ولقد سمعتُ رسول الله ﷺ يقول :

(من اغبرّتْ قدماه في سبيل الله ، حرّمه الله على النار! )

---

[1] ـ اخرجه مسلم برقم ١٨٩١. والنسائي : ١٢٦/

فاعجب مالك الخثعميُّ بجواب جابر ، وتابع سيره .

واراد الامير مالك ان يسمع المجاهدون كلام جابر ليقتدوا به ، فلما ابتعد عن جابر ، وصار بحيث يسمع من حوله صوته ، نادى مالكٌ بأعلى صوته : يا أبا عبدالله : اركب بغلك فقد حملك الله !

وعرف جابر مايريد ه الامير ، فردَّ عليه قائلاً : أُصلحُ دابتي ، واستغني عن قومي ، وقد سمعت رسول الله ﷺ يقول : (( من اغبرَّت قدما هُ في سبيل الله ، حرَّمَهُ اللهُ على النار

فلما سمع المجاهدون كلام جابر ، نزلوا عن دوابهم ، فما رئىَ يومُ اكثرَ ماشين من ذالك اليوم![1] )).

ژباړه : ابن حبان ، ابن المبارک او بيهقي له ابي المصبح المقرائي نه روايت کوي هغه وايي چې مونږ په روم کې له مجاهدينو سره روان وو زمونږ قائد مالک بن عبدالله الخثعمي ﷺ و، دلښکر امير مالک ﷺ چې ديو اصحابي جابرابن عبدالله له خوانه تير شو نو ګوري چې هغه پخپلو پښو روان دی او خپل قچر ته آرام ورکوي .

مالک ﷺ هغه ته وويل : ای ابا عبدالله ! پخپل قچر باندې سورشه الله دا ستادسورلی لپاره پيداکړی دی . جابر ورته وويل : زه خپل قچر ته استراحت ورکوم اوله خپل قوم نه مستغني اوبی پروايم . ماله رسول الله ﷺ نه آوريدلي دي چې ويل يي : دچادواړه پښې چې دالله په لاره کې ګرد جنې شي الله هغه په اور باندې حراموي.

مالک الخثعمي دجابر په دی ځواب باندې حيران شو اوپه هغه پسې روان شو.( يعنې امير هم له سورلي راکوز شو اوپخپلو پښو روان شو)

---

[1]ـ السنن الكبرى للبيهقي : ٩/ ١٦٢ والجهاد لابن المبارك: ١/ ٧٧ـ ٨٧ . وموارد الظمآن : ٣٨٢ والحديث صحيح .

دلښکر امیر مالک ﷺ غوښتل چې مجاهدین دجابر ﷺ خبره واوري او وریسې اقتداء وکړي . کله چې له جابر نه لرې شو او داسې حالت کې شو چې ګرد چاپیره خلکو دجابررضی الله عنه آواز آوریدلې شو نو مالک په اوچت آواز سره غږ وکړ: ای ابا عبدالله ! پخپل قچر باندې سورشه بیشکه الله تعالې هغه ستا دسوریدو لپاره پیداکړی دی .

جابر پوه شو چې امیر څه اراده لري . هغه ورته په ځواب کې وویل : زه خپل قچر ته استراحت ورکوم اولمه خپل قوم نه بې پروایم . ماله رسول الله ﷺ نه آوریدلي دي چې فرمایل یي : دچاداوړه پښې چې دالله په لاره کې ګردجنې شي الله تعالی هغه په اور باندې حراموي . کله چې مجاهدینو دجابر داخبرې واوریدلې نو ټول له خپلو خپلو اسونو اوسورلیو څخه راکوز شول . پس ددغې ورځې پشان یوه ورځ هم داسې نه ولیدل شوې چې دومره ډیر خلک په پښو روان شوی وي .

جابر بن عبدالله ﷺ به چې کله جهاد ته تللو نو په خپلو پښو به تللو ترڅوچې دالله په لاره کې پښې ګردجنې شي اولوی اجر ترلاسه کړي .

له همدې کبله علماودالله په لاره کې جهاد کوونکي مجاهدینو لپاره دامکروه ګڼلې ده چې خپل پوزه او خوله ددوړې له داخلیدونه بندوي.

او دایې دروژه دار سړي لپاره له زوال نه وروسته دمسواک په کراهت باندې قیاس کړی ده څکه چې مسواک دروژه دار دخولې هغه بوی ختموي چې الله ته له مشکو نه زیات خوښ وي . همدغسې دجهاد په وخت کې له دوړو نه دخولې او پوزې پټول هم مکروه ګڼل شویدی څکه لکه څنګه چې په خاورو کې دمجاهد دپښو ګردجنې کیدل هغه دجهنم پراور حراموي همدغسې دحلق او پوزې دوړه هم په جهنم کې دمجاهد دننوتلو دتحریم سبب ګرځي .

(( روی الحاکم عن عبدالله بن مسعود ﷺ قال : (( کنا یوم بدر ، کلُّ ثلاثةٍ علی بعیر ، وکان رسولُ الله ﷺ وعلیٌّ بن ابي طالب وابو لبابة الانصاري رضی الله عنهما علی بعیر . فإذا جاء دورُ الرسول ﷺ لیمشي قالا : نحن

نمشي عنك يارسول الله . فيقول لهما: ماأنتما بأقوى مني ! وما أنا بأغنى عن الأجرِ منكما !! ))[١].

حاكم له عبدالله بن مسعود ﷺ نه روايت كوي هغه وايي چې مونږته دبدر په ورځ دري كسانو لپاره يو اوښ و، او محمد ﷺ ، علي ﷺ بن ابي طالب اوابو لبابه الانصاري رضى الله عنه ته يو اوښ رسيدلې وه . كله به چې درسول الله ﷺ دپياده تللو نوبت راغې نو هغوى دواړوبه ورته ويل مونږ به ستاپرځاى په پښولاړشو او تاسې په اوښ باندې سورشئ . رسول الله ﷺ هغو دواړو ته وويل : تاسې دواړه له مانه زيات قوي نه ياست او نه زه له تاسو دواړو نه له اجر نه غني اوبې پروا يم .



[١]ـ المستدرك للحاكم ٢/ ٩١ ، والحديث حسن.

# اتم بــــاب

# له زمكنى غزانه دسمندري غزا غوره والى

(( روى البخاري ومسلم عن انس بن مالك ﷺ ان رسول الله ﷺ كان يدخل على ام حرام بنتِ ملحان ، فَتطعِمُه ، وكانت امُ حرام تحتَ عبادةَ بن الصامت.فدخل عليها رسول الله ﷺ يوماً ، فأطعَمَتْهُ ، ثم جلستُ تُفلّي رأسه ، فنامَ رسولُ الله صلى الله عليه وسلم . ثم استيقظ وهو يضحك .

قالت أُمُ حرام : مايُضحكُكَ يارسول الله ؟

قال : ناسٌ من أُمتي عُرضوا على ، غزاةً في سبيل الله ، يركبون ثبجَ هذا البحر مُلوكاً على الأسِرَّة ، او مثل الملوك على الأسِرَّة .

فقالت : ادع اللهَ يارسول الله ان يجعلني منهم !

فدعا لها . ثم وضع رأسه فنام . ثم استيقظ وهو يضحك ، فقالت : مايضحكُكَ يارسول الله ؟

قال : ناس من أُمتي عُرضوا عليَّ غُزاة في سبيل الله . كما قال في الأولى .

فقالت : يارسول الله : ادعُ الله أنْ يجعلَني منهم .

قال : انتِ من الأولين !

فركبت أمُ حرامٍ البحر في زمن معاوية ، فصُرِعت عن دابتها حين خرجَتْ من البحر فهلكت .))[1]

---

[1] ـ اخرجه البخاري برقم : ٢٧٨٨ ومسلم ( ١٩١٢ )

بخاري او مسلم لـه انس بن مالک ﷺ نه روایت کوي چې رسول الله ﷺ به ام حرام بنت ملحان کره تګ او راتګ کاو او هغې به رسول الله ﷺ ته ډوډۍ ورکوله . ام حرام دعباده بن الصامت میرمنه وه ، یوه ورځ حضرت محمد ﷺ ورکره تشریف یو وړ او هغې ورته ډوډۍ ورکړه ، بیا دمحمد ﷺ سرمبارک پاکولوته کېښناستله رسول الله ﷺ ویده شو . بیا څه وخت وروسته بیدارشو اوپه خوله کې یې مسکاوه ام حرام ورته وویل : یارسول الله! څه خبرې په مسکا کړې ؟ محمد ﷺ وفرمایل: زماله اُمت نه څه خلک ماته پیش کړې شول چې دالله په لاره کې یې غزاکوله اوپه کشتي کې داسې ناست وو لکه چې پاچایان پخپلو تختونو باندې ناست وي .

هغې ورته وویل یارسول الله ! الله تعالی ته دادعاوکړه چې ماله هغوی نه وګرځوي رسول الله ﷺ دعاوکړه . لږ شیبه وروسته محمد ﷺ بیا ویده شو او لږ وخت وروسته بېرته په داسې حال کې بیدار شو چې په شونډو کې مسکاوه . هغې ورته وویل یارسول الله ! څه شی دی خندوي ؟ هغه ﷺ وفرمایل : زما له امت نه څه خلک دالله په لاره کې دغزا په حالت کې زماپه وړاندې پیش کړې شول . لکه چې مخکې یې فرمایلي وو. هغې ورته وویل یارسول الله ! زمالپاره دعاوکړئ چې ماهم په هغوی کې حساب کړي .

رسول الله ﷺ ورته وفرمایل ته په لومړیو خلکو کې حساب شوې .

دمعاویه ﷺ په زمانه کې ام حرام کشتی ته وختله . کله چې له کشتی نه کوزیده نو له خپلې سورلۍ نه وغورځیدله او مړه شوه . دځینو علماو په نزد ام حرام بنت ملحان دانس بن مالک ﷺ خاله وه .

نووي په شرح مسلم کې ویلي دي چې علماو په دی خبره اتفاق کړی دی چې ام حرام دمحمد ﷺ له محرماتو څخه وه ، نو ځکه محمد ﷺ هغې کره تشریف وړلو او هغې به ورته ډوډۍ مخې ته ایښوده سر به یې ورته پاکاوو او هغې کره به ویده کیدو[1].

[1]ـ شرح النووي على صحيح مسلم : ۱۳/ ۵۸.

ځکه چې هغه درسول الله ﷺ لـه محرماتو نه وه . دځينو علماو داخيال دی چې دادمحمد ﷺ رضاعي خاله وه .

(( وروى البخاري عن ام حرام بنت ملحان رضي الله عنها قالت : سمعت رسول الله ﷺ يقول : اول جبيش من امتي يغزون البحر قد اوجبوا .

قلتُ : يارسولَ الله ﷺ : انا منهم ؟

قل : انتِ منهم .

ثم قال ﷺ اول جيشٍ من امتي يغزون مدينة قيصرمغفور لهم .

قلت انامنهم يارسول الله ؟

قال : لا انت من الاولين )) .[1]

بخاري لـه ام حرام بنت ملحان رضی الله عنها نه روايت کړی دی هغه وايي چې ماله رسول الله ﷺ نه آوريدلي دي چې فرمايل يي : زما دامت دلومړني لښکر لپاره چې په سمندر کې به جهاد کوي جنت واجب شو . ماورته وويل : يارسول الله ﷺ ! زه به هم دهغوی لـه جملې څخه يم ؟ هغه ﷺ وفرمايل : هوته دهغوی لـه جملې څخه يې . بيايې وفرمايل : زما دامت لومړې لښکر به دقيصر په ښار کې جهاد کوي . ددوی ټول ګناهونه به بخښل کيږي . ماورته وويل : زه به هم دهغوی لـه جملې څخه يم ؟ هغه ﷺ وفرمايل نه ته لـه لومړنی ډلې څخه يې .

په سمندر کې لـه ټولو نه لومړې جهاد حضرت معاويه ابن سفيان رضي الله عنه وکړ داهغه وخت و چې دعثمان رضي الله عنه په زمانـه کې دشام والي و . کله چې دمسلمانانو کشتۍ دقبرص دغزا لپاره روانيدلې نو عباده بن الصامت او دهغه ښځه ام حرام هم دجهاد لپاره ووتل . کله چې مسلمانانو دقبرص جزيره ونيوله نو ام حرام ته دهغه سوارلۍ

---

[1] ـ اخرجه البخاري برقم : ٢٩٢٤.

راوستلې شو چې ورباندې کيني خو هغه له سورلۍ نه وغورځيده څټ يې مات او مړه شوه او هم هلته په قبرص کې دفن کړې شوه . رضی الله عنها

دسليمان بن عبدالملک دخلافت په زمانه کې مجاهدينو دروم مرکز ( پايتخت) قسطنطنيه دنيولو لپاره سمندري او زمکنۍ حمله وکړه . د مجاهدينودسوارليو او کشتيو شمير زروته رسيده او دزمکنې مجاهدينو تعدا له يرلک نه زيات و .

دلښکر امير مسلمه بن عبدالملک و . مسلمانانو قسطنطيه ترديرشو مياشتو پورې دسمندر او زمکې له دواړو طرفونونه په ګيره کې ونيوله اومسلمانان ډير زيات په تکليف شول لوږه تنده او سترتيا ورته ورسيده. بيا کله چې عمر بن عبدالعزيز دخلافت چارې په لاس کې ونيولې نو سمندري او زمکنې لښکروته ئی دبېرته راتلو حکم ورکړ .[1]

جي المعافري وايي چې مونږ له عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما سره دسکندريه منارې ته نژدې ناست وو . نو دمجاهدينو وړې او لويې کشتۍ دغزا لپاره رواني شوې .

عبدالله بن عمرو رضی الله عنه مسلمه بن مخلد ته وويل : ددغو مجاهدينو ګناهونه به چېرته وي ؟ ( يعنې ګناه يې ختميږي .) مسلمه ورته وويل ګناهونه به يې پخپلو اوږو وي.

عبدالله بن عمرو رضی الله عنه وويل : نه هرګز نه په هغه الله قسم چې زما روح دهغه په لاس کې دی خپل ګناهونه يې شاته پريښي دي . ( يعنې ګناهونه نلري ).

او عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما وويل ماته سمندري جهاذ له قبول شوی قنطار (سل رطله ياډير زيات مال ) سرو زرو نه هم زيات خوښ دی خيثمه وايي چې دشام په طرابلس کې له مونږ سره دعاصم په نوم يو سړی و چې په سمندر کې ډير زيات جهادونه کړي وو . کله چې هغه مړشو نو ماهغه په خوب وليد او پوښتنه مې ترينه وکړه چې الله تعالی له تاسره څه وکړه ؟ هغه راته وويل : الله تعالي پرما باندې په دی خاطر ډير زيات رحم وکړ چې ماپه سمندر کې ډيرجهاد کړی و . قاضي ابو بکر بن العربي ويلي دي چې هرڅوک چې په الله باندې دايقين پخول غواړي چې دهرڅه

[1] ( تاريخ الامم والملوك للطبري : ٥/ ٢٩١_ ٢٩٣ . )

فاعل يواځې يو الله دې او مادي اسباب ټول ضعيف دي او توکل پخول غواړي نو هغه دې سمندري جهاد ته ووځي .
او ابن قدامه په مغني کې ويلي دي چې سمندري جهادله زمکنې جهاد نه ډير غوره دې ځکه چې سمندري جهاد له زمکنې جهاد نه زيات خطر لري او مجاهد لپاره دوه خطرې وي يوددشمن خطره او بل دډوبيدو خطره ، همدغه راز مجاهد ته په يواځې ځان دامکن نه وي چې تيښته وکړي .
په سمندري کشتي کې دجهاد او حج لپاره سفر کول په هغه صورت کې جائز دی چې کله دسلامتيا غلبه پکې ډيره وي خوکله چې سمندر طغياني وي او خطرناکي څپې (موجونه) وهي نو بيا په داسې حالات کې سفر کول ناروا دی .

(( روى احمد وسعيد بن منصور عن ابي عمران الجوني قال :كنا بفارس ، وعلينا امير ، هو زهير بن عبدالله ،فابصر انساناً فوق بيتٍ او إِجَّارا ليس حوله شيئ !

فقال لي سمعتَ في هذا شيئاً ؟

قلت : لا.

قال حَدَّثني رجلٌ اَنَّ رسول الله ﷺ قال " من بات فوق إِجّار ، اوفوق بيت ليس حوله شيئ ، يدفع رِجله ، فقد برئت منه الذمة ومن ركب البحر بعد مايرتجُّ فقد برئت منه الذمة. )) [١]

احمد او سعيد بن منصور له ابي عمران الجوني نه روايت کوي هغه وايي چې مونږ په فارس کې وو او زمونږ امير زهيربن عبدالله و . هغه دکور په چت باندې يو سړی وليد چې شاخوا پنائي يې نه درلود .

[١] _ مسند احمد : ٥/ ٧٩ وسنن سعيد بن منصور : ٢/ ٣/ ١٦٢ والحديث صحيح متصل والا تضر جهالة الصحابي ، وله شواهد تشهدله .

ماته يې وويل : ايا تاپه دې باره کې څه اوريدلي دي ؟

ماوويل : نه .هغه وويل ماته يو سړي حديث بيان کړى دى چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي : څوک چې دکور لـه پاسه په داسې چت باندې ويده شي چې شاخوايي ديوالونه نه وي ترڅولـه غورځيدو نه يې وساتي دهغه څه ذمه واري نشته . او څوک چې دسمندر لـه طغياني کيدونه وروسته په کشتۍ کې سپورشي نو دهغه هم څه مسئوليت نشته .

اجار: دکور سطحې ته ويل کيږي او دارتجاج البحر معنى ده کله چې په درياب کې طغياني پيداشي. او څپې يې يوپربل په لګيدو شي.



# فصل

## دمجاهدينو دتکبير په فضيلت کې

(( روى البخاري ومسلم عن انس بن مالك ﷺ قال صَبَّحَ رسول الله ﷺ خيبر بُكرة ، وقد خرجوا بالمساحي!فلما نظروا إلى رسول الله ﷺ جاءوايسعون الى الحصن ،وقالوا : محمدٌ والخميسُ ! فرفع رسول الله ﷺ رأسه، ثم قال : الله اكبر ، الله اكبر ، الله اكبر ! خَرِبَتْ خيبر.إنا اذا نزلنا بساحةِ قوم فساء صباحُ المنذرين .)) [1]

بخاري او مسلم له انس بن مالک ﷺ نه روايت کوي هغه وايي چې رسول الله ﷺ په خيبر کې وختي سهار وکړ( يعنې سهار وختي يې خيبر ته ځان رسولې و ) او دخيبر

[1] ـ اخرجه البخاري برقم : ٣٦٤٧ ومسلم برقم : ١٣٦٥

اوسیدونکي دخپلو کولنګ او بیلچوسره دخپلوزمکو په طرف روان وو. کله چې هغوی رسول الله ﷺ ولید نو خپلو خپلو قلاګانو ته په منډه شول او ویي ویل : په الله قسم محمد او پنځه ګوني لښکر دی.

رسول الله ﷺ خپل سرپورته کړ او دالله اکبر ، الله اکبر ، الله اکبر ناره یې پورته کړه او ویې ویل چې خیبر وران شو . کله چې مونږ ددشمن ساحې ته داخل شوو نو دویرول شویو خلکو سبا ډیر بد وي .

دغه صحیح حدیث په جنګ کې دالله اکبر دناري وهلو لپاره یو اصل دی . او ائمه و دتکبیر په استحباب تصریح کړیدی." اشهب بن عبدالعزیز " ویلي دي چې ماله مالک رحمه الله نه په تکبیر کې د آواز داوچتولو په اړه پوښتنه وکړه چې ایا په ساحل کې دځو کیدارې به وخت ددښمنانو په وړاندې یاددښمن په غیر موجودګی کې په زور سره الله اکبر ویل مکروه دی اوکه نه ؟

مالک رحمه الله راته وویل ددشمن په وړاندې دالله اکبر ویل څه باک نه لري بلکې ښه دی ، همدغه راز په ساحل کې هم الله اکبر په زوره ویل ښه کار دې که څه هم دښمن حاضر نه وي . خوپه هغه صورت کې ښه ندې چې نوروته تکلیف رسیږي او یا مسلمانانو ته تشویش پیداکیږي. لیث رحمه الله ویلي دي چې مجاهدینو له پخوانه په جنګونو کې تکبیرونه ویلي دي ترڅو پیره داران وربانديې غښتلي او قوي کړي . اوپه دی کار باندې هیڅا بد نه دي ویلي .



# نهم باب

# دالله په لاره کې د نفقې فضیلت

قال تعالی :

﴿ مَنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضَاعِفَهُ لَهُ أَضْعَافًا كَثِيرَةً وَاللَّهُ يَقْبِضُ وَيَبْسُطُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴾ [البقرة۲٤٥].

هغه څوک دی چې الله پاک ته قرض حسنه ورکړي . بیا الله پاک دده داقرض څو چنده زیات کړي . دپراخي او تنګ لاسي راوستل دالله کار دی او تاسې بېرته یوازې هغه ته وروستل کېږئ .

وقال تعالی :

﴿ مَثَلُ الَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ كَمَثَلِ حَبَّةٍ أَنْبَتَتْ سَبْعَ سَنَابِلَ فِي كُلِّ سُنْبُلَةٍ مِائَةُ حَبَّةٍ وَاللَّهُ يُضَاعِفُ لِمَنْ يَشَاءُ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ﴾ [البقرة۲٦۱]

مثال دهغو کسانو چې خپل مالونه دالله په لاره کې لګوي دیوې دانې په شان دی چې اووه وږي تري رازر غون اوپه هر وږي کې سل دانې وي ، اودالله پاک چې چاته خوښه شي نور یې هم وردیره وي او الله پاک دپراخ رحمت څښتن او په هرڅه پود دی.

(( روی الترمذي والنسايي والحاکم عن خريم بن فاتك الاسدي ﷺ قال قال رسول الله ﷺ : " من انفق نفقةً في سبيل الله كُتِبَتْ بِسَبْعِمائةِ ضعف ")) .[1]

ترمذي نسائي او حاکم لـه خریم بن فاتک الاسدي رضی ا لله عنه څخه روایت کوي هغه وايي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي : څوک چې دالله په لاره کې نفقه وکړي د هغه لپاره اووه سو چنده زیات ثواب لیکل کیږي .

---

[1] ـ سنن الترمذي : ۳ : ۹۰ وسنن النسائي : ٦/ ٤۹ ومستدرك الحاكم : ۲/ ۸۷ والحديث صحيح .

(( وروی مسلمٌ عن ابي مسعودالانصاري ﷺ قال : جاء رجلٌ بناقة مخطومة ، فقال : هذه في سبيل الله.

فقال رسول الله ﷺ :" لك بها يوم القيمة سبعمائة ناقة كلها مخطومة")).[1]

مسلم له ابي مسعود الانصاري ﷺ څخه روایت کړی دی چې یو سړي مهار کړې او ښه راوسته او ویې ویل چې داالله په لاره کې صدقه ده.

رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : دقیامت په ورځ به دده په عوض کې ستالپاره اووه سوه مهارشوي اوښې وي .( یعنې داووه سوه اوښو ثواب به درکول کیږي)

(( وروی البخاري ومسلم عن ابي هريره ﷺ . ان رسول الله ﷺ قال : "من انفق زوجين في سبيل الله ، نُودى في الجنة : ياعَبدالله هذا خيرٌ فتعالَ ! فمن كان من اهلِ الصلاة دُعى من باب الصَّلاة ، وَمَنْ كان مِنْ اهل الجهاد دعى من بابِ الجهاد ، ومن كان من اهل الصدقة دعى من اهل الصدقة ، ومن كان من اهلِ الصيام دعى من باب الرَّيّان. قال ابو بكر الصديق : بابى انت وامي يارسول الله . فما على من يُدعى من تلك الابواب كلِّها من ضرورة فهل يُدعى احد من تلك الابواب كلها ؟

قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : نعم . وارجوان تكون منهم .))[2]

بخاري او مسلم له ابي هريره ﷺ نه روایت کړی دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل : چاچې دالله په لاره کې یوه جوړه ( لکه دوه دیناره دود درهمه دوه اوښې وغیره ) ورکړه نوپه جنت کې آواز کیږي . ای عبدالله ! داډیر ښه دی دلته راشه! او څوک چې له لمونځ ګذارانو څخه وي هغه دلمونځ له دروازې نه غوښتل کیږي او څوک چې

---

[1] ــ اخرجه مسلم برقم

[2] ــ اخرجه البخاري برقم : ۱۸۹۷ ومسلم برقم : ۱۰۲۷

دالله په لاره کې جهاد کوونکې وي هغه دجهاد له دروازې نه غوښتل کيږي ، څوک چې دالله په لاره کې صدقه ورکوونکې وي هغه دصدقې له دروازې نه غوښتل کيږي ، او څوک چې له روژه نيوونکو څخه وي هغه دريان له دروازې نه غوښتل کيږي .

ابو بکر صديق ﷛ وويل يا رسول الله ! زما مور او پلار درنه قربان شه ددغو ټولو دروازو نـه درابللو څه ضرورت دی لـه دغو ټولودروازو نه چې څوک راوبلل شي هغه ته هيڅ قسم ضرر او تاوان نشته .

داسې څوک شته چې لـه ټولـو دروازو څخه راوغوښتل شي ؟ رسول الله ﷺ ورتـه وفرمايل : هو اميدلرم چې ته به دهغوی له جملې څخه يې .

(( وروی مسلم من ابي هريره ﷛ . انه سمع رسول الله ﷺ يقول .

" ن انفق زوجين في سبيل الله ، دعاهُ خزنةُ الجنة ، كلُّ خَزَنةِ با ب يقولون اى فُلْ : هلُمَّ ! فقال ابو بكر : يارسول الله : ذلك الذي لاتوى عليه !

فقا ل رسول الله صلى الله عليه وسلم : إني لارجوان تكون منهم " )) [١].

مسلم لـه ابي هريره ﷛ نـه روايت کوي چې ماله رسول الله ﷺ نه آوريدلي دي چې ويـل يې : چاچې دالله په لاره کې دڅه شي يوه جوړه ورکړه نو دجنت ساتونکې هغه ته آواز کـوي . دهرې دروازې پيـره دار آواز کـوي ای فلانکيـه دلـته راشـه ابـو بکـر ﷛ وويل : يارسول الله ! داهغه څوک دي چې هيڅ تاوان يې ندې کړ ؟ رسو ل الله ﷺ ورته وفرمايل : ای ابو بکر! زه اميد لرم چې ته به دهغوې لـه جملې څخه يې .

(( وروى النسـايي والحـاكم عن صعصعة بن معاوية عم الاحنف بن قيس رضـى الله عـنهما قـا ل : ذهـبت الى ابـي ذ رٍّ الغفـاري ﷛ ، فلم اجد ه في منز له . فاستقبلني يقودُ بعيراً ، او يسوق في عنقه قربةَ ماء،قد استقاها لاهله

---

[١] ـ اخرجه مسلم برقم : ١٠٢٧ .

فقلت : انت ابو ذ ر؟

قا ل : كذالك يقول اهله !

قلت : حدّثني حديثاً سمعته من رسول الله ﷺ ، لعل الله ان ينفعني به !

قال : سمعتُ رسول الله ﷺ يقول: (( من انفق من مالهِ زوجين في سبيل الله ، ابتد رَتْهُ حجبة الجنة . ))

قلت : ما المرادُ بالزوجين من ماله ؟

قا ل : فرسان من خيله ، او بعيران من إبله )) [1].

نسائي او حاكم داحنف بن قيس لـه تره صعصعه بن معاويه نه روايت كوي : هغه وايي چې زه ابو ذر غفاري ﷛ خواته لاړم خو هغه مې په كور كې پيدانه كړ. هغه په لاره كې زما مخې ته په داسې حالت كې راغى چې اوښ يې روان كړې و او په غاړه كې يې داوبو مشک ( ژی ) و چې خپل كورته يې روان كړی و . ماورته وويل ته ابو ذر يې؟ هغه راته وويل : دهغه كورنى ورته همدا نوم آخلي ما ورته وويل ماته يو داسې حديث ووايه چې تاله رسول الله ﷺ نه آوريدلي وي . كېدى شي الله پاک دهغه په ذريعه مونږ ته فائده ورسوي .هغه ﷛ وويل : ماله رسول الله ﷺ نه آوريدلي دي چې فرمايل يې :

څوک چې دالله په لاره كې جوړه مال وركړي هغه ته دجنت دوه نګران پرښتې رامنډه وهي ماوويل :

دمال له جوړې نه څه مراد دی ؟ وی فرمايل له خپلو اسونو څخه دوه اسونه ياله خپلو اوښانو څخه دوه اوښان .

[1]ـ اخرجه النسائي في المجتبى : ٦/ ٤٨ والحاكم في المستدرك : ٢/ ٨٦ واسناده صحيح

(( روی مسلم عن ثوبان ﷺ قال : قال رسول الله ﷺ " افضل دينار ينفقه الرجل : دينارٌ ينفقهُ على عياله ، ودينارٌ ينفقه على دابته في سبيل الله ، ودينارينفقه على اصحابه في سبيل الله )) [1].

مسلم له ثوبان ﷺ نه روايت كوي هغه وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي بهترين دينار چې سړی يې خرچوي هغه دينا . دی چې پخپل عيال باندی يې خرچوي او بل هغه دينار دی چې پخپل هغه سورلۍ باندې خرچوي چې دالله دلارې لپاره يې ساتلي وي . اوبل هغه دينـار دی چې دالله په لاره كې په خپلو ملګرو باندې مصرفوي .

زهري رحمه الله عليه وايي چې عبدالرحمان بن عوف ﷺ دبدر له مجاهدينو نه دهريو سړي لپاره اووه سوه دينارو دوركولو وصيت كړی و . په هغه وخت سل كسان ژوندي پاتې وو او ټولوخپله حصه واخستله او عثمان ﷺ هم خپله حصه يعنې ۷۰۰ ديناره واخستلې په دی وخت هغه ﷺ خليفه و . دائكه چې دابن عوف دامال مبارک او حلال و .بيشكه الله تعالي دنفقه كوونكې نفقه قبلوي اګركه لږ وي . په چاچې نفقه كوي هغه ته روانه دې چی دانفاق كوونكې مال ته په كم نظر وګوري او دهغه نفقه او نيكي لږه وګڼي.نفقه كوونكي ته هم روانه دی چی خپله نفقه كمه وګڼي او په سپک نظر ورته وګوري.

(( روی مسلم عن ابي ذ ر الغفاري ﷺ ، عن رسول الله ﷺ قال : " لا تحقِرَنَّ من المعروف شيئا . ولو ان تلقى اخاك بوجه طلق " [2])).

مسلم له ابي ذر الغفاري ﷺ څخه روايت كوي هغه وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي :

دنيكۍ يو شي ته هم هرګزپه سپک نظر مه ګورئ اګر چې دتاله خپل ورور سره په پراخه تنده ملاقات ولې نه وي . ددی حديث همدا مانا ده چې مسلمان دې يوه

---

[1]_ اخرجه مسلم برقم : ۹۹٤ .

[2]_ اخرجه مسلم برقم ۲٦۲٦

خکه که نیکي هم کمه نه ګڼي چې په نیکیو کې یوه نیکي اتفاق فی سبیل الله دی . خکه که داډیره کمه وي نو الله جل جلاله یې په خپل فضل سره ډیر ثواب ورکوي په دې شرط چې دورکونکي نیت خالص او صفاوي .

دمجاهدینو امیر عقبه بن نافع الفهري به دالله په لاره کې هر قسم نفقه (چنده) قبلوله که هغه به لږه هم وه . که یوې ښځه به ورته دتار ورکوټې غوندې کلوله راوړله چې دادالله په لاره کې قبوله کړئ ، نو هغه ؓ به دهغې دانفقې هم قبلوله او که یو سړي به ددینارډیمه حصه دالله په لاره کې دنفقې لپاره ورکړه نو هغه به یې هم قبلوله هغه ته چاوویل : الله تعالي ته له دغه لږ شي نه غني کړې یې ولې یې آخلې ؟هغه ورته وویل زه یې ترینه په دې خاطر آخلم چې الله تعالي هغه ته اجر ورکړي . او مونږ سره چې څه وي هغه هم په دې خاطر ورکوو چې الله پرهغه مونږ ته اجر راکړي هغه رحمه الله بالکل صحیح خبره کړیده . څکه چې الله تعالي دیو مثقال او ذرې په برابر هم پر چاظلم نه کوي . که چېرته څوک نیکي کوي نو هغه ته یې زیاتوي اوله خپل لوری نه ډیرلوی اجرورکوي .

دالله په لاره کې دنفقه کوونکو په کیسو کې دیوې ښځې کیسه ډیره زړه پورې ده چې دهغې خاوند او زامن دالله په لاره کې شیهدان شوي وو . خپل ټول مال یې دالله جل جلاله په لار کې خرچ کړي بلکې دالله په لاره کې یې خپل ویښتان هم داسونو لپاره دواګو جوړلو په خاطر هدیه کړي وو .

ددغې ښځې ټوله کیسه احمد ابن الجوزي الدمشقي پخپل کتاب " سوق العروس وانس النفوس " کې دابو قدامه شامي دخولې لیکلې ده . دکسې لنډیز څه داډول دی

په مدینه منوره کې دابو قدامه شامي په نوم یو مجاهد شخص و . الله جل جلاله دهغه په زړه کې درومیانو په خلاف دجهاد کولو جذبه او ولوله آچولې وه . هغه رحمه الله دروم په خلاف په ګڼو جنګونو کې ګډون هم کړی‌و. یو ځل هغه په نبوي مسجد "علی صاحبه الف تحیة وسلام" کې ناست و او له خپلو ملګرو سره یې دښلو ځینو غزاګانو په اړه خبرې اترې کولې . دهغه ملګرو له هغه نه غوښتنه وکړه چې دجهاد یوه حیرانوونکې اوزړه پورې کیسه ورته بیان کړي . ابو قدامه وویل : یو

خل زه دفرات نهر ته نژدې درقه نوسې ځای ته داوښ آخستلو لپاره لاړم ترڅو پرهغه خپله وسله بارکړم . زه په رقه کې وه چې یوه ښځه ماته راغله او ماته یې وویل چې زه غواړمه خپل وېښتان دجهاد لپاره صدقه کړم هغې خپل وېښتان پرې کړې وو او په خاورو کې یې لړلي وو او خړکړي یې وو . اوله مانه یې وغوښته چې زه دغه ویښتان ترینه واخلم ترڅو دمجاهدینو داسونو لپاره واګې جوړې کړی شي .

هغې وویل : زه یوه کونډه ښځه یم زما خاوند او زما اولادونه په جهاد کې شهیدان شویدي . زماپه اولادو کې یواځې یو پنځلس کلن ځوان پاتې دی . عمر یې لږ دی خو هغه روژه نیونکې دشپې تهجد کوونکې ، دقران حافظ او جهاد لپاره په آس باندې دسوریدو او دغشو په ویشتو ښه ماهر او ډیر ښکلې ځوان دی. هغه اوس له ښار نه لرې تللې دی کله چې هغه راشي نو ډیر ژربه یې له تاسره جهاد ته واستوم هغه دالله لپاره هدیه کوم او له الله نه دهغه دشهادت مرګ غواړم .

ابو قدامه وایي چې ما دهغه دراتلو انتظاروکړ خو هغه رانغې بیاله خپلوملګرو سره یو ځای له "رقه " نه دروم په طرف روان شوم اوڅو ورځې مې سفر کړی و په لاره کې روان وو چې له شاطرف نه په اس باندې یو سواره سړي ماته آواز وکړ او له ماسره یې خبرې وکړې او ځان یې راته معرفې کړ چې زه دهغې ښځې زوی یم چې دالله په لاره کې یې خاوند او زامن شهیدان شویدي هغه اوس غواړې چې زه هم دهغوی په شان په شهادت ورسیږم ماوغوښتل چې هغه دکم عمرې په وجه بېرته ولیږم لیکن هلک اصرار وکړ چې زه به له تاسره یو ځای ځم . هغه وویل چې زه ذاس دزغلولو او غشي ویشتلو په فن کې پوره مهارت لرم . دقران حافظ او درسول الله ﷺ په سنتو عالم یم .اوس زه دا غواړم چې شهیدابن الشهیدجوړشم هغه وویل چې مور له ماسره خدای پاماني کړیده او هغې له مانه غوښتي دي چې دشهادت ترلاسه کولو لپاره کوشش وکړم له کفارو نه تیښته ونکړم او خپل شا ورته وانه ړوم . خپل ځان الله ته هبه کړم .او دخپل پلار ، ورونو ، ماما ګانو او نورو شهیدانو په څنګ کې ګاونډي شم .

زه دهغه دخبرو په آوریدو سره له هغه نه ډېر متاثر شوم او له ځان سره مې ملګرې کړ .

کله چې دروم لښکر ته نژدې شوو نو دماښام وخت رانيږدی شو . مجاهدينو روژې نيولي وې . دغه ځوان هلک وړاندې شو او دهغوی دروژه ماتي لپاره يې ډوډۍ تياره کړه په دی وخت هغه ويده شو ماچې هغه ته وکتل نو په شونډو يې خنداوه ما خپل ملګري راوغوښتل چې دهغه دغه خنداته وګوري . کله چې ځوان له خوب نه پاڅيدونو ماترينه پوښتنه وکړه چې تاپه خوب کې ولې خندل ؟ هغه وويل چې مايو خوب ليدلې و او هغه زه خندولې يم . هغه ماته وويل : ماخپل ځان په يو شين باغ کې وليد دباغ په منځ کې دسرو زرو او سپينو زرو يو قصر و اوپه هغه باندې قيمتي پردې ځوړندې وې په ماڼۍ کې ښکلې جنکيانې وې چې مخونه يې دسپوږمۍ پشان ځليدل . هغوی چې زه وليدلم نو په خير راغلاست يې راته وويل . ماچې له هغوی نه يوې ته لاس اوږدکړ نو راته يې وويل تلوار مه کوه ستاميرمن مرضيه ده او هغه په بنګلې کې دينه ده . مادهغوی خبرې واوريدې چې يو بل ته يې ويل داد مرضيې خاوند دی او هغه په ماڼۍ کې ده زه پورته ماڼۍ ته وختلم هلته مې داسې جلۍ وليدله چې حسن يې دلمر پشان و او سترګې يې بريخولې . هغې ماته په خير راغلاست وويل او ماته يې خبر راکړ چې ته زمايې اوزه ستايم کله مې چې دهغې په طرف خپل لاسونه وغځول نو هغې راته وويل تلوار مه کوه او خوشاله اوسه چې زما او ستا ترمنځ وعده سبا دماسپښين دلمونځ په وخت کې ده . نو ځکه زه دخوشالي په وجه په خنداشوم .

سبا ته دروم لښکر ته ورسيدو . مخامخ سخت جنګ شروع شو رومي لښکرپه مجاهدينو باندې يرغل وکړ دغه ځوان دخپلو ملګرو سره يو ځای په ډيره زړه ورتيا او بهادري سره دهغوې کلکه مقابله وکړه او ډير کسان يې ترينه ووژل .

جګړه اوږده شوه اوله دواړو خواوو ګڼ کسان ووژل شول خو بالاخر جګړه دمسلمانانو په ګټه تمامه شوه او مسلمانان بريالي شول .

ابو قتاده وايي چې زه ددغه ننګيالي اس سوار ، او غشي ويشتونکي ځوان په لټه کې ووتلم ګورم چې هغه ډير سخت ټپي دی له بدن نه يې وينې رواني دي او دوړې وربانديې پرتې دي . هغه چې ماته مخ راواړاو نو ماته يې وويل چې زما خوب رښتيا شو هغه حوره چې په خوب کې ليدلې وه هغه زما په سر ولاړه ده او زمادروح دوتو په انتظار کې ده . ځوان له مانه غوښتنه وکړه چې زما په وينو رنګ جامې راواخله او

مور ته مې وښايه ترڅو هغې ته معلومه شي چې مادهغې وصيت نه دی ضائع کړی . بيا يې دشهادت کلمه ولوسته . روح يې ورکه او دالله په لاره کې دشهادت لويه رتبه ترلاسه کړه . پخپلو جامو کې همغلته خاوروته وسپارل شو . ابو قدامه وايي چې زه کله رقې نومې ښار ته بېرته راغلم او ددغه شهيد دمور دکور له مخ نه تيرشوم نو دشهيد په وړې خورمې نظر ولګيد چې په دروازه کې ولاړه وه هغې به له جهادنه راغليو خلکو نه دخپل ورور په باره کې پوښتنه کوله ماله هغې نه اجازه وغوښتله چې له مورسره يې خبرې وکړم . مورئي دباندې راووتله کله چې زه يې وليدلم نوراته ويې ويل : ای ابو قدامه ! ته تعزيت کوونکی راغلې يې اوکه زيری ورکوونکې ؟ ماورته وويل : ددغو دواړو ترمنځ څه فرق دی ؟ هغې وويل : که زما زوی له تاسره ژوندې راغلې وي نو ته تعزيت کوونکې يې او که زما زوی دالله په لاره کې شهيد شوی وي نو ته زيرې ورکوونکې يې ماورته وويل : خوشاله شې الله تعالې ستا هديه قبوله کړه او ستازوی دالله په لاره کې دشهادت لويه مرتبه ترلاسه کړه . هغه ډيره خوشاله شوه او ويې ويل : الحمد لله الذي جعله ذخيرة لی يوم القيامة. ثنا او صفت هغه ذات لپاره دی چې هغه يې دقيامت په ورځ زما لپاره ذخيره وګرځاو .[1]



[1]_ انظر قصة ابي قدامة مع المرأة المتصدقة الصابرة مفسلة في الاصل : ١: ٢٨٥_ ٢٩٠

# لسم باب

# د الله په لاره کې دبخل کوونکو خلکولپاره وعیدونه

قال تعالى :﴿ وَأَنفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلَا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ وَأَحْسِنُوا إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ﴾ [البقرة١٩٥]

او خرچه وکړئ دالله په لاره کې او خپل ځانونه پخپله دهلاکت کندې ته مه غورځوئ اوښيګڼه وکړئ بيشکه الله نيکو کاران خوښوي .

حذيفه بن اليمان ﷺ وايي : (( ولا تلقوا بايد يكم الى التهلكة )) يعنې دالله په لاره کې دخرچې په نه کولو سره :

او ابن ابي حاتم وايي : همدغه راز دحذيفه دتفسير په شان له ابن عباس، عکرمه، حسن ، مجاهد، . عطاء ، سعيد بن جبير، ابي صالح ، ضحاک ، سُدی، مقاتل بن حيان او قتاده نه هم روايتونه شويدي .

او قرطبي پخپل تفسير کې ويلي دي : چې حذيفه بن يمان ، ابن عباس ، عطاء، عکرمه ،مجاهد او جمهورو علماو ويلي دي چې : (( ولا تلقوا بايد يكم الى التهلكة )) معنې داده چې دالله په لاره کې نفقه او خرچ کول پريږدي او له فقر او غربت نه وويريږي . [۱]

---

[۱] تفسير القرطبي : ۲ / ۳٦۲.

او الله تعالى فرمايلي دي : ﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّ كَثِيرًا مِنَ الْأَحْبَارِ وَالرُّهْبَانِ لَيَأْكُلُونَ أَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ وَيَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ۝ يَوْمَ يُحْمَى عَلَيْهَا فِي نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوَى بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنُوبُهُمْ وَظُهُورُهُمْ هَذَا مَا كَنَزْتُمْ لِأَنفُسِكُمْ فَذُوقُوا مَا كُنتُمْ تَكْنِزُونَ ﴾ [التوبة ٣٤- ٣٥ ].

ژباړه :اى مومنانو! په رښتيا چې ډير عالمان او راهبان دخلكو مالونه په ناروا خوري او دالله له لياري نه خلک منع کوي .

اى محمده ! هغوخلكو ته چې سره او سپين زر راټولوي او دالله په لياركې يي نه مصرفوي دردناک عذاب اعلان كړه . په هغه ورځ چې په مالونوبه يې ددوزخ اور بنه گرم او بيا به پرې دهغوى تندي ، اړخونه اوشاګانې داغل كيږي . او ورته ويل كيږي به چې داهمغه مال دى چې تاسې دخپلو ځانونو له پاره راټول كړي وو.

وقال تعالى :

﴿ هَاأَنتُمْ هَؤُلَاءِ تُدْعَوْنَ لِتُنفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَمِنكُمْ مَنْ يَبْخَلُ وَمَنْ يَبْخَلْ فَإِنَّمَا يَبْخَلُ عَنْ نَفْسِهِ وَاللَّهُ الْغَنِيُّ وَأَنْتُمُ الْفُقَرَاءُ وَإِنْ تَتَوَلَّوْا يَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ ثُمَّ لَا يَكُونُوا أَمْثَالَكُمْ ۝ ﴾ [محمد٣٨].

هو ! تاسې همدغه خلک يې چې درڅخه غوښتنه كيږي چې خپل مالونه دالله په لاره كې ولګوئ خو ستاسې ځينې خلک بخيلي كوي او هرڅوک چې بخيلي وكړي نويه حقيقت كې پرځان بخيلي كوي . الله غني او بې پروا دى او تاسې مسكينان او محتاج يئ . او كه چېرته تاسې مخ واړولو نو ستاسې پرځاى به بيا يو بل قوم راولي او هغه به ستاسې په شان نه وي.

وقال تعالى :

﴿ وَمَا لَكُمْ أَلَّا تُنْفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلِلَّهِ مِيرَاثُ السموات وَالْأَرْضِ لَا يَسْتَوِي مِنْكُمْ مَنْ أَنْفَقَ مِنْ قَبْلِ الْفَتْحِ وَقَاتَلَ أُولَئِكَ أَعْظَمُ دَرَجَةً مِنَ الَّذِينَ أَنْفَقُوا مِنْ بَعْدُ وَقَاتَلُوا وَكُلًّا وَعَدَ اللَّهُ الْحُسْنَى وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ﴾ [الحديد۱۰].

اوپرتاسې څه دي چې دالله په ليار کې مال نه لګوئ . اسمانونه او زمکه يواځې همغه ته پاتې دي. ستاسې هغه خلک چې دمکې له فتحې يې وړاندې مال لګولی او جنګيدلي دي له هغه سره يو انډول نه دي چې وروسته يې مال لګولی او جنګيدلي دي . دهمدغو خلکو درجه له هغو نه خورا لوړه ده چې له فتحې نه وروسته يې مال لګولی او جنګيدلي دي . الله پاک له هرې ډلې سره نيکه وعده کړې . او الله پاک ستاسې له کړنو ښه خبر دی .

قرطبي وايي : ددی آيت معنې داده چې کوم يو شې تاسې دالله په لاره کې له نفقې نه منع کوي حال داچې تاسې مرکيږئ او مالونه خپل شاته پريږدئ او همدا الله ته واپس ګرځي.

دلته په دی آيت کې هغو خلکو لپاره توبيخ بيان شويدی چې دالله په لاره کې مال نه خرچوي ځکه چې دزمکې او آسمانونو ټول ميراث الله ته دی لکه چې ميراث خپل حقدار ته راګرځي . همدغسې دامال هم ټول الله ته واپس کيږي .[1]

(( روی احمد عن عبدالله بن الصامت الغفاري : قال : كنت مع ابي ذر الغفاري ﷺ ، فخرج عطا ؤه ، ومعه جاريةٌ لـه.فجعلت تقضي حوائجه ، ففضل معها سبعة دراهم ، فأمرها ان تشتري بها فلوساً.

فقلت لـه : لو أخَّرْته للحاجة تنوبك ، او للضيف ينزل بك !

---

[1] ــ تفسير القرطبي : ۲/ ۳۶۲.

قال : ان خليلي ﷺ عهد اليَّ ان (( ايَّما ذهب او فضة اوكىَ عليه ، فهو جمرٌ علـى صاحبه ، حتى يفرِّقَهُ في سبيل الله عزوجل .)) [1]

احمد له عبدالله بن الصامت الغفاري ﷺ څخه روايت كوي هغه وايي چې زه له ابو ذر الغفاري سره وم . هغه ته څه مال راغې له هغه سره خپله وينځه هم وه هغې به دغه مال په ضرورياتو كې خرڅ كـاو . تردى چې له هغې سره اووه روپۍ پاتې شوې . حضرت ابـو ذر ﷺ هغـې تـه حكـم وركـړه چـې پـه دى بـاندې "سـكې تفسيرغواړي" واخله . حضرت عباده ﷺ وايي چې ماورته وويل:

دا اووه روپۍ څانته بچت كړئ كيدى شي تاتـه څه ضرورت پيښ شي . يادرته كوم ميلمه راشي . حضرت ابو ذر ﷺ وفرمايل : زما دوست محمد ﷺ ماتـه وصيت كړيدى چې كوم سره زر او سپين زر دساتلو لپاره په غوټه كې وساتلې شي هغه دخپل مالک لپاره ترهغه وخته پورې سكروټه وي ترڅو چې يې د الله په لاره كې خرچ كړې نه وي.

((عن ابي امامة الباهلي ﷺ عن رسول الله ﷺ.قال:"من لم يغز او يجهزغازيا او يخلف غازيا في اهله بخيراصابه الله بقارعة قبل يوم القيامة".. [2] ))

لـه ابي امامـه الباهلي ﷺ څخـه روايـت دى چـې رسـول الله ﷺ فرمايـلي دي : چاچې نه پخپله غـزاو كړه اونـه يې غـازي مجهز كړ اونـه يـې دغـازي دكورنۍ خدمت وكړ الله تعالي دقيامت لـه راتللو نـه مخكې هغه په سخت مصيبت كې اخته كوي..

(( وروى ابو داود والترمذي والحاكم عن اسلم بن يزيد التجيبي . _ابو عمـران _ قـال :غـزونا مـن المديـنة ، نريدالقسـطنطينية ، وعلى الجماعة

---

[1] ـ مسند احمد : ٥/ ١٥٦ ، وسنده حسن

[2] ـ ـ سنن ابي داود : ٣/ ٢٢

عبدالرحمن بن خالد بن الوليد ، والروم ملصِقو ظهور هم بحائط المدينة .

فحمل رجل على العدو .

فقال الناس : مه ، مه.لا إله إلا الله . يلقي بيد ه إلى التهلكة ! فقال ابو ايوب الانصاري ﷺ : انما نزلت هذ ه الآية فينا معشر الانصا ر : لما نصر الله نبيه ﷺ ، واظهر الاسلام ، قلنا : هلمَّ نقيم في اموالنا ونصلحها . فانزَل الله قوله : ( وانفِقُوْا في سبيل الله وَلَا تلقوا بايد يكم الى التهلكةِ )

فالالقاء بايدينا الى الهلكة ، ان نقيم في اموالنا ونصلحها ، وندع الجهاد.

قال ابو عمران : فلم يزل ابو ايوب يجاهد في سبيل الله عز وجل ، حتى دفن بالقسطنطينية )) [1].

ابو داود ، ترمذي او حاكم له اسلم بن يزيد التجيبي . ابو عمران نه روايت كوي هغه وايي چې مونږ دمديني منورې نه په قسطنطينيه باندې دغزا لپاره روان شووا ودلښكر مشر عبدالرحمان بن خالد بن الوليد و.

يو مجاهد په دشمن باندې حمله وكړه . خلكو دنا ، نا ، لا اله الا الله چيغه شروع كړه . ابو ايوب الانصاري ﷺ وويل : بيشكه دا آيت خو زمونږ دانصاروپه باره كې نازل شويدى . كله چې الله تعالي له خپل نبي سره مرسته وكړه او اسلام ته يې برې وركړه نو مونږ وويل : راځئ چې نور دخپل مالونو دسنبالولو لپاره خپلو

---

[1] ـ سنن ابي داود : ٣/ ٢٧ . وسنن الترمذي : ٤/ ٢٨٠ ومستدرك الحاكم : ٢ ٢٧٥ ، والحديث صحيح .

خپلو کورونوته واپس لاړشو . نو الله تعالی : وَاَنْفِقُوْا فِي سبيل الله وَلَا تلقوا بايد يكم الى التهلكةِ ايت نازل کړ.[1]

مونږ لپاره پخپلو لاسو دهلاکت کندي ته ځان آچول دادي چي دمالونو دګټلو لپاره جهاد پريږدو او خپلو کورو کې کينښنو ا بو عمران وايي چې ابو ايوب انصاري ترهغه وخته پورې په جهاد کې مشغول و ترڅو چې مړشوې نه و . په اخېرکې په قسطنطنيه کې وفات شو او همغلته خاوروته وسپارل شو.

(( وروى البيهقي في سنن الكبرى عن ابن عباس ﷺ عنهما في قوله تعالى. ( وانفقوا في سبيل الله ) لا يقولن احدكم : لا اجد شيأً انفقه ، فان لَم يجد الا مشقصا فليجهز به في سبيل الله ، ولا تلقوا بايديكم الى التهلكة )) .بيهقي په سنن كبرى كې له ابن عباس ﷺ عنهمانه دالله تعالي قول: (( وانفقوا في سبيل الله ))

په باره کې روايت کړى دى چې ددى مطلب دادى:

له ستاسو نه دى هيڅوک دانه وايي چې دالله په لاره کې دخرچ کولو لپاره له ماسره څه نشته . بلکې که له تاسو سره دغشي " پيکان دغشي اوسپنه"هم وي نو همغه دى دالله په لاره کې دجهاد لپاره مجاهد ته ورکړي اوپه جهاد کې دخرچ نه کولو له کبله دې دخپل ځان په هلاکت کې نه غورځوي.



[1] ـ السنن الكبرى للبيهقيٰ ٩/ ٤٥

# فصل

# دالله په لاره کې نفقه کول بهترین طاعت اونیکي دی

په جهاد کې پخپل ځان ، پخپل آس او نورو مجاهدینو باندې مال لګول یاپه مال سره وسله او جهادي ضرورت لپاره سامان آخستل . دمجاهدینو او دهغوی دکورنیو خدمت کول هغه اوچته صدقه ده چې دالله تعالی ته دنژدې کیدولپاره لویه ذریعه ده.

شیطان چې څومره زور په جهاد کې دنفقې په نه کولو باندې آچوي دومره زور په بل شی کې په نفقې کولو باندی نه آچوي . ځکه چې شیطان ددی له عظیم اجر ، اوچتودرجو او د بخل له غټې ګناه نه ښه خبر دې.

په دی کار کې له شېطان سره دانسان بخل ، دمال دنه لګولو عادت ، او ددی له له شمیرنه وتلې ثواب نه ناخبري اوناپوهي هم ډېر لوی کومک کوي.

خصوصاً په دی زمانه کې چې دجهاد نښې نښانې په ختمیدو دي اوله خلکو نه جهاد له یاده وتلي دی . زمونږ په ښارونو( دمشق) او نورو ځایونو کې خواوس جهاد له سره پاتې شوی نه دې اوپه نورو ښارونو کې هم اوس حقیقي جهاد ډیر لږ ترسترګو کیږي . همدا وجه ده چې نن دلعنتي دښمن په مقابل کې شیطان مسلمانان له غربت نه ویروي او دبې حیایي په کارونو کې یې لګوي نو پدې وخت کې چې دلیعن شیطان په مقابل کې دقوي اوبرلاسی خدای جل جلاله مرسته او تائید درسره نه وي نو نفقه کول ناشوني کاردی . دالله تعالي مبارک ارشاد دی :

﴿ وَمَا أَنفَقْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهُ وَهُوَ خَيْرُ الرَّازِقِينَ﴾[سبأ ۳۹].

دالله په لار کې هرڅه ولګوئ نو همغه یې بهرته بدل درکوي . الله ترهرچا ښه روزي ورکوونکې دی.

ځینې وخت انسان جهاد ته په وتلو کې خو پرشیطان باندې غالب شي او دهغه په خبرو نه راګرځي . مګر دالله په لاره کې دمال په لګولو کې دشیطان په دوکه کې راشي ځکه چې شیطان دهغه په زړه کې دا وسوسه آچوي چې که ته پخپله هم جهاد ته لاړې او مال دې هم خرچ کړ نو له جهاد نه راتلو نه وروسته به خلکو ته محتاج شي . دجهاد په وخت کې ته زخمي کیدې هم شي او ناروغیدې هم . که ته پخپله جهاد ته تلل غواړې لاړشه خو مال له خان سره مه وړه . دشیطان وسوسه دانسان په زړه ډیر زیات اثر کوي خامخا هغه څوک ددې وسوسې داغیزې لاندې راځي دچا په زړه کې چې دواپس راتلو غلاوي نو هغه ددنیا په مینه کې غرق وي اوله شهید کیدونه ویره محسوسوي . که چیرته دهغه په زړه کې دشهادت مرګ دحاصلولو شوق موجود وای نو له جهاد نه دبیا واپس کیدو خیال به یې په زړه کې نه راتلو. اونه به یې دوروستنیوحالاتوفکرکاوه زمونږ سلفو به دجهاد په شوق اوله الله تعالی سره دمینې په وجه دجهاد په میدان کې دتورو تیکي ماتولې ترڅو دهغوی له زړونو نه دواپس ګرځیدو اوژوندي پاتې کیدو خیال رانشي هغوی داکار په دی خاطر کاو چې هغوی دشهادت له خوند او اوچت اجر نه خبروو . اوله الله سره دملاقات مینه یې په زړه کې وه

دسلفو نه دیو شخص په باره کې روایت دی چې کله هغه دجهاد په میدان کې له دشمن سره دقتال لپاره مخامخ شو نو شیطان دهغه په زړه کی وسوسه آچول شروع کړ. لومړې یې ورته دهغه ښځه دهغې ښکلا اوله هغې سره دیو ځای اوسیدو وختونه په یاد کړل . بیا یې ورته آرام ژوند او مال ومتاع په یاد کړ . نږدې و چې دهغه په زړه کې بزدلي او ددنیا مینه پیداشوی وای او دجهاد له میدان نه یې تښتنه کړی وای . الله تعالي له هغه سره مرسته وکړه او هغه خپل نفس ته مخاطب شو او ورته یې وویل : ای نفسه ! که ته نن دجنګ له میدان نه وروسته شوې نو زما ښځه به پرما طلاقه وي ، زما غلامان او وینځې به آزادې وي . زما ټول مال به دفقیرانو او مسکینانو لپاره خیرات وي . ای نفسه ! نه خونن دیته تیاریې چې دجنګ له میدان نه وتښتې او داسې ژوند خوښ کړې چې نه دې ښځه وي او نه مال. دهغه نفس ورته په خواب کې وویل که خبره همداسې

وي نو زه لـه جهاد نـه وروسته كيدو تـه تيارنه يم . هغه خپل نفس ته وويل : ښه
نوبيا مخكې شه او جهاد وكړه.

شيطان كله دانسان په زړه كې داوسوسه آچوي چې كه تا خپل ټول مال جهاد ته
يووړ نو ستا لـه مړكيدونه وروسته بـه ستا ماشومان دنورو خلكو محتاج شي.
لهذا خپل مال خپل اولادوته پريږده . اوله ځان سره جهاد ته مه وړه . هغوى لپاره
همدامصيبت بس دى چې ته ترينه ځې او هغوى يواځې پريږدې .

لـه مال نه خوېي مه محرومه. دشېطان داوسوسه دهغو خلكو په زړه باندې ډير
اثر كوي چې په الله تعالى باندې بشپړ يقين اوباور يې نه وي چې دټولو بندګانو
دروزۍ ذمـه الله تعـالى آخستې ده . دچاپـه زړه كـې چـې دايقيـن وي چـې رزق
وركوونكې يواځې يو الله دى او زه صرف خپلو ماشومانو ته دروزۍ رسولو يوه
وسيله يم دخپل ځان او هنوى ته ديوې ذرې رزق په وركولو قادرنه يم . نو ولې په
ژوند او مرګ دواړوكې دهغوى دررق غم وخورم ؟ نوبيايي په زړه باندې دشيطان
هيڅ قسم وسوسه اثر نه كوي.

دحضرت حـاتم اصم رحمـه الله عـليه واقعـه ده چې هغـه لـه سفر نـه وړاندې لـه
خپلې ښځې نه پوښتنه وكړه چې ستا او ستادماشومانو لپاره به څومره خرچه بس،
كيږي چې بندوبست يې وكړم ؟ ښځې ورته وويل : اى حاتمه ! په خداى قسم چې
مـا تـه كلـه هـم دخپـل رزق او روزي رازق نـه يـې ګڼـلې . زه خـو تاپخپلـه روزي
خوړوونكې ګڼم ، ته چې هرطرف ته تلل غواړې ښه په شوق سره لاړشه.

سلفو بـه دالله پـه لاره كې ډير زيـات مـال وركـاوو او پـه دى كـې بـه لـه يـو بل نه
دزيات وركولو مسابقه كـاو چې دالله پـه لاره كې دمـال پـه خرچولو كـې رانه بل
څوك مخكې نشي لكه چې په حديث شريف كې راځي.

((روى الدارمي عـن عمـر بـن الخطـاب ﵁ قـل : امر نا رسول الله ﷺ ان
نتصدقَّ في سبيل الله ، فوافق ذلك مالاً عندي .

فقلت في نفسي : اليوم أسبق ابابكر!

فجئت رسول الله ﷺ بنصف مالي . فقل لي رسول الله صلى الله عليه وسلم : ما ابقيت لاهلك ؟

قلت : ابقيتُ لهم مثلَهُ! فاتي ابو بكر الصديق بكل ماعنده . فقل له الرسول ﷺ : ما ابقيت لاهلك ؟

قل : ابقيتُ لهم الله ورسوله!!

فقلت : لا اسابقُك في شيء ابداً !!. ))[1]

دارمي لـه عمر بن الخطاب رضي الله عنه نه روايت كړيدې هغه وايي چې رسول الله ﷺ مونږ ته دالله په لا ره كې دصدقې وركولو امر وكړ .پدى ورځ لـه ماسره ډير مال وو زړه كې مې وويل چې

نن ورځ به لـه ابو بكر نـه مخكې شم . مانبي كريم ﷺ ته خپل نيم مال راوړ . محمد ﷺ لـه مانه پوښتنه وكړه چې خپل كورنى ته دى څه پريښود؟ ماورته وويل هو نيم مال مې هغوى ته پريښى دى.

په دى مهال ابو بكر الصديق رضى الله عنه هم لـه خپل ټول مال سره راغى. رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : دكور خلكو ته دې څه پريښي دي او كه نه ؟ هغه رضي الله عنه وويل : الله او دهغه رسول مى ورته پريښى دي.

ماوويل اى ابو بكره ! زه ټول عمر لـه تاسره په هيڅ شي كى مسابقه نشم كولې. همدغسې دام المؤمنين بنت الصديق عائشه صديقه رضى الله عنهاكيسه هم مشهوره ده.هغې رضي الله عنها ته حضرت معاويه رضي الله عنه زيات مال وليږه عائشه رضي الله عنها هغه ټول دالله په لاره كې تقسيم كړ او يو درهم ورسره هم پاتې نه شو.

---

[1] ـ سنن الدارمي : ١/ ٣٩١ ـ ٣٩٢ وابو داود برقم : ١٦٨ والترمذي برقم: ٣٦٧٥

دهغې خدمتګارې ورته وويل : که چېرته څو درهمه دی پرېښې وای نو مونږ به ورباندې غوښه آخستې وه . عائشه صديقه ﵂ عنها ورته وويل : زماله ياده ووتل که چېرې تاماته په يادکړی وای نو مابه درته درکړې وو.[1]

(( روى البخاري ومسلم عن ابي ذر الغفاري ﵁ قال : انتهيت الى رسول الله صلى الله عليه وسلم وهو جالس في ظل الكعبة.

فلما رآني قال : هم الاخسرون ورب الكعبة

فجئت حتى جلست ، فلم اتقارَّ ان قمتُ ، فقلتُ : يارسول الله : فداك ابي وامي من هم ؟

قال: هم الاكثرون اموالاً ، الا من قال : هكذا وهكذا وهكذا . من بين يديه ومن خلفه وعن يمينه وعن شماله ، وقليل ماهم ! ))[2]

بخاري او مسلم لـه ابو ذر غفاري ﵁ نه روايت کړېدی هغه وايي چې رسول الله ﷺ دکعبې سوری ته ناست و او زه دهغوی ﷺ خواته لاړم هغه چې زه وليدلم نوويې فرمايل: دکعبې په رب قسم چې هغوی ډير تاوانيان دي.

زه راغلم او يوې خواته کښيناستم لاناست نه وم چې بېرته ودريدلم او مې ويل چې يارسول الله ! لـه تانه زما مور او پلار قربان شي هغه خلک څوک دي ؟ هغه ﷺ وفرمايل : داهغه خلک دي چې ډير مال لري پرته دهغو خلکو نه چې وړاندې وروسته ښي او ګس طرف ته ښه خرچ کوي او داسې خلک ډير لږ دي.

---

[1]_ الحاكم في المستدرك : ١٣/٤.

[2]_ اخرجه البخاري برقم : ٦٦٣٨ ومسلم برقم : ٩٩٠.

(( وروى البزار عن ابي ذر الغفاري ﷺ ان النبي ﷺ قال: يا اباذ ر؟ ما أُحب ان لىأُحُداً ذهبًا وفضةً ، انفِقهُ في سبيلِ الله اموت يوم اموت ادع منه قيراطاً))[1] .

بزار لہ ابي ذر الغفاري ﷺ نه ورايت کوي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل : اى اباذره! که چېرته داحد غر زما لپاره سره زر او سپين زرشي نوزه به داټول دالله په لاره کې خرچ کړم اودانه خوښوم چې په کومه ورځ زه مړکيږم له ماسره دى يو قيراط پاتې وي.

دالله په لاره کې هغه شخص خپل مال نفقه کوي چې په الله تعالىٰ باندې کلک توکل کوونکى وي او داسې بشپړ يقين يې وي چې له مانه وروسته زه کوم ذات دخپل اولاد متولي جوړوم هغه له ټولو نه ښه روزي ورکوونکى اوښه متولي دې

دعمربن عبدالعزيز په باره کې روايت دى چې کله هغه مرګ ته نژدې شو نو خپل ټول يولس زامن يې راوغوښتل . هغه حکم وکړ چې زما ښځې ته دې خپله برخه ورکړې شي او پاتې مال دى پخپلو زامنو باندې وويشي.کله چې دترکې او ميراث دمال حساب وشو نو هريو زوى ته يې يويو دينار ورسيد.مسلمه بن عبدالملک وويل : اى امير المومنينه! دوى ته به يو يو دينار څه ګټه ورسوي که دهغوى وکالت دى ماته سپارلې واى نو ښه به و.

عمر بن عبدالعزيز رحمة الله عليه ورته وفرمايل : زما زامن هم دنورو خلکو په شان دي که نيکان وي نو الله تعالىٰ دنيکانو متولي دى او که نيکان نه وي نو زه له هغوى سره دالله په معصيت کې مرسته نشم کولې.

الله تعالىٰ ددهغه صالح او لاد غنيان کړل . دهغه يو زوى سل اسونه دالله دلارې مجاهدينو ته ورکړل چې ورباندې جهاد وکړي.

[1]ـ مجمع الزوائد للهيثمي : ١٠ / ٣٣٩ والحديث صحيح .

مقصد دا چې دچاچې دالله تعالې په وعده پوره ایمان وي او توکل يې پوخ وي اوپه دی یقین ولري چې دالله په لاره کې ځومره مال مصرفوي دهغه بدله خامخا ورکوي نو که هغه خپل ټول مال هم دالله په لاره کې خرچ کړي نو هیڅ مشکل ورته نه راپېښېږي .( یعنې هغه ته دخپل ټول مال صدقه کول هم روادي ) لکه ځرنګه چې ابو بکر الصدیق رضی الله عنه خپل ټول مال دالله په لار ه کې ورکړ. داکار دالله په نزد داجر او ثواب په لحاظ ډېر عظیم د ی. او دادهغه چاپه برخه کې راځي چې دلوی برخې خاوند وي. دکوم سړي توکل او یقین چې کمزوری وي هغه دې خپل ټول مال دالله په لاره کې نه ورکوي بلکې څه مال دې دخپل اهل او عیال لپاره پرېږدي. اوپه دی باندې دمحمد ﷺ دالاندیني حدیث واضح دلالت کوي:

((روی البخاري ومسلم في قصة توبة كعب بن مالك ﷺ . انه لما تاب الله عليه قال : " .... يارسول الله! انَّ من توبتي ان انخلعَ من مالي ، صدقة الى الله والى رسوله...

فقال رسول الله ﷺ امسك عليك بعض مالك فهو خير لك ." [1]))

بخاري او مسلم دکعب بن مالک ﷺ دتوبې کیسه روایت کړیدې چې کله الله تعالې دهغه توبه قبوله کړه نو هغه ﷺ وویل : یارسول الله ! زماپه توبه کې یوه خبره داهم ده چې زه خپل ټول مال دالله اورسول په لاره کې صدقه کړم . محمد ﷺ ورته وفرمایل : څه مال له خپل ځان سره وساته داستالپاره ښه دی:

(( وروى البخاري ومسلم عن سعد بن ابي وقاص ﷺ ان النبي ﷺ قال له " انك إن تذ رَ ورثتك اغنياءَ خيرٌ من ان تذ رهم عالة يتكففون الناس ")) [1] .

---

[1] ــ اخرجه البخاري برقم : ٤٤١٩ ومسلم برقم : ٢٧٦٩

بخاري او مسلم له سعد بن ابي وقاص ﷺ څخه روايت کوي چې نبي کريم ﷺ (کعب بن مالک ته) وويل : که ته خپل ورثاء غنيان پريږدې نو دابه ستا لپاره له دې نه ښه وي چې هغوى محتاج پريږدې او له خلکو نه سوالونه کوي.

ددغه پورتني حديث مطلب هرګز داندې چې ګويادکعب بن مالک او سعد بن ابي وقاص ﷺ عنهما توکل کمزورې و او محمد ﷺ ځکه هغوى دټول مال له خيراتولو نه منع کړل ، مونږته داصحابو په باره کې داقسم فکر کول روا ندی.

بلکې محمد صلى اله عليه وسلم هغوى ته دټول مال دنه ورکولو حکم ځکه کړى وه چې په راتلونکې وخت کې هغه خلک دهغوى اقتداء وکړي چې توکل يې کمزورى وي. دا له دى ويرې نه چې هسې نه دقوى توکل لروونکو اصحابو اقتداء وکړي او بيا وروسته پخپل مال باندې خفه وي چې ولې مو خپل ټول مال ورکړ او په دى ترتيب به اجرېې کم شي.

درسول الله ﷺ اصحاب دستورو په شان دي په هريو اصحابي پسې چې اقتداء وکړي هدايت ترلاسه کوي .

بيا دکوم مسلمان په زړه کې چې توکل او يقين کمزرې وي نو هغه دې دکعب بن مالک او سعد بن وقاص ﷺ عنهماپسې اقتدا وکړي او خپل څه مال دى صدقه کړي او څه مال دې خپل اهل وعيال ته پريږدي.

اودکوم مسلمان په زړه کې چې قوي توکل او محکم يقين وي نو هغه دى دابو بکر صديق رضى الله عنه پسې اقتداء وکړي او څنګه يې چې خوښه وي خپل مال دې صدقه کړي ،که هغه خپل ټول مال صدقه کړي نو الله به ورته لوى اجر ورکړي . خو دالله په لاره کې دقوت سره سره صدقه نه کول خپل ځان پخپله دهلاکت کندې ته غورځول دي . مسلمان سړي لپاره داسې کول جائز نه دي او نه په دى کې څه رخصت شته دى او الله بقول الحق وهويهدى السبيل . الله حقه وينا او دنيکې لياري ښوونه کوي.

---

[1] ـ اخرجه البخاري برقم : ۱۲ ۹۵ .، ومسلم برقم ۱٦۲۸.

# يـولسم بـاب

## مجاهدينو ته دسامان دبرابرولو او دهغوی ؛ كورنيو دخيال ساتلو فضيلت

(( روى مسلم عن ابي سعيد الخدري رضي الله عنه ان رسول الله ﷺ بعث الى بني لحيان من هذيل : فقال : "لينبعث من كل رجلين احدهما ، والاجر بينهما.")) [1]

مسلم لـه ابي سعيد الخدري رضي الله عنه نه روايت كوي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم دهزيل قبيلې شاخ بني لحيان پرضددجهاد كولو لپاره يې لښكرواستاو اودنورو قبيلو مجاهدينو ته يې داپيغام واستاو چې لـه هردوه سړيونه دی يو سړی جهاد ته ووځي او اجر به دواړو ته برابر ورکول كيږي.

امام ابو بكر بن المنذر ويلي دي چې : په دی حديث كې دادليل ترلاسه كيږي چې كه د فرض كفايه په جهاد كې څه خلک جهاد ته لاړشي نودنورو خلكو غاړه خلاصيږي.

(( وروى البخاري ومسلم عن زيد بن خالد الجهني رضي الله عنه ان رسول الله ﷺ قال :من جهز غازياً في سبيل الله فقد غزا، ومن خلف غازياً في اهله بخير فقد غزا .)) [2]

---

[1] ـ اخرجه مسلم برقم : ۱۸۹۶.

[2] ـ اخرجه البخاري برقم : ۲۸۴۳ . ومسلم برقم : ۱۸۹۵ .

بخاري او مسلم له زيد بن خالد جهني رضی‌الله عنه نه روايت کړيدی چې رسول الله ﷺ وفرمايل :چاچې يو غازي ته دجهادساز اوسامان ورکړ نو بيشکه هغه غزا وکړه . او چې چاپه ښه ډول دغازي دکور خيال وساته نو هغه هم غزاوکړه .

(( وروى الترمـذي وابن ماجة عن زيد بن خالد رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ (( من فطَّرَ صائماً كان لـه مثلُ اجره ، لاينقص من اجره شيء ، ومن جهـز غازيـاً في سبيل الله ، كـان لـه مثلُ اجره ، لاينقص من اجر الغازي شيء ))[1]

ترمذي او ابـن ماجـه لـه زيـد بـن خـالد رضي الله عنه نـه روايـت کـوي چـه رسـول الله ﷺ فرمايلي دي . چـاچې روژه دارتـه روژه مـاتې ورکـړ هغـه لپـاره دروژه دار دثـواب هومره اجر ورکـول کيـږي او دهغـه ( روژه دار) لـه اجر نـه څه نه کميږي او چاچې دالله په لاره کې کـوم غـازي تـه وسله برابره کـړه هغـه تـه دهغـه داجر په برابر اجر ورکول کيږي او دغازي په اجر کې هيڅ کمی نه راځي .

همدغسې طبراني له زيد بن ثابت رضي الله عنه نه روايت کړيدی چه نبي ﷺ وفرمايل :

(( مـن جهَّزَ غازياً في سبيل الله كما فله مثل اجره ، ومن خلف غازياً في اهله بخيرٍ وانفق على اهله فله مثل اجره ))[2]

چاچې دالله په لاره کې يو غازي مجهز کړ هغه لپاره دهمغه غازي دثواب هومره اجر دی او چاچه په نيکي او ښې طريقې دغازي دکورنۍ کفالت وکړ او خرچه يې ورباندې وکړه نـو هغـه تـه دغـازي داجرهومـره ثواب ورکـول کيـږي کـوم سړي چې دجهـاد لپـاره وسله او سامان برابر کړی وي او بيا هغه دناروغۍ يادبل کوم عذر لـه کبله لـه جهـاد نه پاتې شي نو هغه دې داسامان يو بل مجاهد ته ورکړي ترڅو

---

[1]ـ سنن الترمذي : ٢/ ١٥١ وابن ماجه ١/ ٥٥٥. والحديث صحيح .

[2]ـ مجمع الزوائد للهيثمي : / ٢٣٤ ورجاله رجال الصحيح .

هغه ورباندې جهادوکړي.ځکه چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي : (( من جهزغازيا في سبيل الله فقد غزا)) چاچې دالله په لاره کې کوم مجاهد په وسلو سنبال کړ نو هغه غزا وکړه.

(( ورروى مسلم عن انس بن مالك ﷺ ان فتى من اسلم قا ل يارسول الله : انى اريد الغزو، وليس معى ما اتجهز به!

فقال ﷺ :

إِيْتِ فلاناً ، فانه قد كان تجهز فمرض.

فأتاه فقال : ان رسول الله يقرئك السلام ، ويقول : اعطني الذي تجهزْتَ به!فقال لامرأته : يافلانة : اعطيه الَّذِي تجهزتُ به ، ولا تحبسي عنه شيئاً ! فوالله لا تحبسين منه شيئاً فيبارك لك فيه .[1]))

مسلم لـه انس بن مالک ﷺ نه روايت کړيدی چې داسلم قبيلې نه يوه ځوان رسول الله ﷺ تـه ووېـل : چې زه غزا ته تلل غواړم خوله ماسره دغزا لپاره سامان نشته . رسول الله ﷺ ورتـه وفرمايل : فلانکي سړي تـه لاړشـه هغه دجهاد لپاره سامان برابر کړی و خو هغه ناروغ شو . هغه لاړ او ورتـه يې ووېل : رسول الله صلی الله عليه وسلم پرتا سلام ويلی دی او فرمايلي يي دي چې هغه سامان ماته راکړه چې تادجهاد لپاره برابر کړی و.هغه خپلې ښځې ته ووېل : ای فلانکۍ! هغه سامان ورتـه ورکړه چې مادجهاد لپاره تيار کړی و . او يو شی هم ترينه مه ايساروه . په الله قسم چې که کوم يو شی دی ترې نه ايسار کړ نو الله به پکې ستا لپاره برکت وانه چوي.

[1] ـ اخرجه مسلم برقم : ١٨٩٤

(( وروى مسلم عن بريدة بن الحصيب الاسلمي ﷺ قال : قال رسول الله ﷺ : حُرْمَةُ نساءِ المجاهدين ، على القاعدين كحرمةِ امَّهاتهم ،. وما من رجل من القاعدين يخلف رجلاً من المجاهدين ، فيخونه فيهم ، الا وقف له يوم القيامة ، فيأخذُ من عمله ما شاء . فما ظنكم ؟ ))[1]

مسلم له بريده بن الحصيب الاسلمي ﷺ نه روايت كوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي : دمجاهدينو دښځو حرمت په كوركې ناستو خلكو باندې دخپلو مورګانودحرمت په شان دی. په كور كې له ناستو خلكو څخه كوم يو سړی چې دمجاهدينو دكور خلكو پالنه كوي او دهغوی په كور كې خيانت كوي دقيامت په ورځ به هغه مجاهدته درول كيږي او دهغه له عمل نه به چې كوم يو دمجاهد خوښ وي ترينه آخلي . ستاسې څه ګمان دی ؟ چې مجاهد به په دې ورځ دده نيكۍ په څومره شوق او رغبت سره اخلي يعنې هيڅ به ورته نه پريږدي.

لدی حديث نه داثابت شو چې دمجاهدله كورنۍ سره خيانت كول ډيره سخته ګناه ده او دمجاهدينو دښځو حرمت په ناستو خلكو باندې دخپلو مورګانودحرمت په شان مهم دی.

ابو عبدالله الحليمي ويلي دي : چې داپه دی وجه ده چې په كور كې ناست سړي باندې مجاهد ډير زيات حق لري . ځكه چې مجاهد دناست سړي نيابت كوي او دهغه له غاړې نه هغه جهاد ساقطوي چې ورباندې فرض و . او دخپل ځان په قربانولو سره دهغه ساتنه كوي . بيا هغه څنګه دهغه له اهل سره دخيانت سوچ كولی شي ؟ دمجاهد له كورنۍ سره دهغه خيانت په حقيقت كې له هغې ګناه نه ډير دی چې يو ګاونډي يې دبل ګاونډي له كورنۍ سره كوي .[2]



[1]ــ اخرجه مسلم برقم : ١٨٩٧ .

[2]ــ كتاب المنهاج في شعب الايمان للحليمي ٢/ ٤٧٥

# دولسم باب

# له مجاهدينو سره د مرستې ، د هغوی دخدمت او درخصتولو فضيلت

(( روی احمد وابن ابي شيبه والحاكم ،عن سهل بن حنيف ﷺ ان رسول الله ﷺ قال:"من اعا ن مجاهداً في سبيل الله ، اوغازيا في عسرته او مكاتبا في رقبته ، اظله الله في ظله يوم لاظل الا ظله .[1] ))

احمد ، ابن ابی شيبه او حاكم لـه سهل بن حنيف ﷺ نه روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چې دالله دلارې لـه مجاهد او غازي سره په سخت وخت كې كومک وكړي . يا لـه غلام سره دهغه آزادولو لپاره مرسته وكړي . الله تعالې به هغه ته ترخپل سيورې لاندې په هغه ورځ ځای ورکړي چې دالله لـه سيورې نه پرته بل سوری نه وي .

(( وقال عبدالله ابن مسعود ﷺ لان اجهز سوطاً في سبيل الله احب من حجة بعد حجّةِ الاسلام )).

عبدالله بن مسعود ﷺ ويلي دي چې كه زه دالله په لاره كې يوه قمچينه مجاهدته وركړم نو دازمالپاره لـه نفلي حج نه غوره دی .

---

[1] ـ مسند احمد : ۳/ ٤٨٧ والمصنف لابن ابي شيبة : ٥/ ٣٥١ . والحاكم : ۲: ۸۹ واسناده حسن.

(( وروى الترمذي عن ابي امامة الباهلي ﷺ قال : قال رسول الله ﷺ .
"افضل الصدقات ظل فسطاطٍ في سبيل الله ، ومنحة خادمٍ في سبيل الله اوطروقةُ فحلٍ في سبيل الله.[١] ))

ترمذي لـه ابي امامه الباهلي ﷺ روايت كوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي : لـه ټولو نه غوره صدقه دالله پـه لاره كې دسيورې لپاره خيمه وركول ، يا غلام ( خادم ) وركول او ياهم دځواني اوښې وركول دي.

دحديث مطلب دادې چې خلكو ته لـه مجاهدوسره دمرستې ترغيب وركول كيږي ترڅو هغوى دالله پـه لاره كې دسيورې لپاره خيمـه وركړي ياخادم وركړي چې دمجاهدينو مدد او مرسته وكړي ياله دريو كلونو نه زيات عمر والا اوښه وركړي چې مجاهدين وربانديې سپاره شي او دادرې واړه شيان دالله پـه نزد لـه غوره صدقاتو څخه دي.

(( وروى ابـو داود والحـاكم عـن جابر بن عبدالله ﷺ عنهما ، ان رسول الله ﷺ اراد ان يغـزو، فقـال : " يامعشـر المهاجـرين والانصـار ان مـن اخوانكم قوما ليس لَهُمْ مالاولا عشيرةَ ، فليضُمَّ احدكم اليه الرجلين او الـثلاثة " ومـا لاحدنا من ظهر يحملُه الا عُقْبَةً كعقبةِ احدِكم ، فضممتُ الى اثنين او ثلاثاً ، مالي الا عقبةً كعقبة احدهم من جملي . ))[٢]

ابـو داود او حـاكم لـه جابر بن عـبدالله ﷺ عـنهما نـه روايت كوي چې رسول الله صلىالله عـليه وسلم جهـاد تـه دتللو اراده وكړه او ويې فرمايل : اى مهاجرينو او انصـارو! ستاسې لـه ورونو څخه څه كسان داسې دي چې لـه هغو سره نه مال شته اونـه كورنـى . لـه تاسو نـه دى هر يو كس لـه هغوى نه دوه يادرې كسان لـه ځانه

---

[١]ـ سنن الترمذي : ٣/ ٩١ واسناده حسن .

[٢]ـ سنن ابي داود ٣/ ٤١ والمستدرك للحاكم : ٢/ ٩٠ والحديث صحيح .

سره په داسې طریقې سره یوځای کړي چې له هغوی نه دې هر یو کس ستاسې په اوښ کې داسې نوبت ولري لکه څنګه چې ستاسې نوبت وي حضرت جابر ﷺ فرمايي چې ماله ځان سره دوه یادرې کسان راواخستل چې زماپه اوښ باندې یې له ماسره یو برابر نوبت درلود. (یعنې په نوبت نوبت وریاندې سوریدلو.)

((وقال معاذ بن جبل ﷺ : لان اشيع رفقةً في سبيل الله ، فاصلح لهم احلاسهم ، واردَّ عليهم من دوابِّهم ، احب الى من عشر حجج بعد حجة الاسلام. ))

معاذ بن جبل ﷺ فرمايي چې دمجاهدينو درخصتولو لپاره څو ګامه تلل دهغوی داس دزين اودزين لاندې توټه سمول اودهغوی څاروي لـه وروستونه شړل ماته له فرض حج نه وروسته له لسو نفلي حجونو نه زيات خوښ دی.

(( وقال بلال بن سعد : انه رأى من رأى عامر بن عبد قيس ﷺ مجاهداً بارض الروم على بغلة ، يركبها عُقبة ، ويحمل المجاهدين عليها عقبة.

وكان عامرُ بن قيس اذا خرج للغزو ، يقفُ يتوسَّمُ بالمجاهدين ،

فلذا راى رفقة توافقه قال لهم : ياهولاء : اني اريد ان اصحبكم للجهاد ، وان اجاهد معكم ، على ان تعطوني من انفسكم ثلاث خصال!

فيقولون : ماهي؟

فيقول : الاولى : ان اكون خادمكم ، لاينازعني احدٌ منكم الخدمة!

والثانية : ان اكون موذنا لكم ، لاينازعُني احدٌمنكم الاذان!

والثالثة : ان انفق عليكم بقدر طاقتي. [1] ))

---

[1] ـ كتاب الجهاد لابن المبارك : ٢ ١٧٨ ـ ١٧٩

بلال بن سعد وايي چې ماهغه څوک وليدل چې عامر بن قيس ﷺ هغه په روم کې په قچر باندې دجهاد په حالت کې ليدلې و. کله به هغه پخپله په قچر ې باندې سوريدو او کله به يې خپل ملګري په وار وار سره په قچرې باندې سوروڼ. دهغه ﷺ داعادت و چې دجهاد په وخت کې به يې ځان ته پخپله ملګري پيداکول ( انتخابول ) او بيابه يې هغوی ته ويل چې زه په دريو شرطونوسره ستاسې ملګرتيا ته چمتويم لومړې داچې زه به ستاسې دټولو خدمت کوم او تاسې به په دی خدمت کې له ماسره مداخله نه کوئ.

بل داچې دلمونځ په وخت کې به زه آذان کوم او تاسې به زما په دی کار کې مداخله نه کوئ. دريم داچې زه به دخپل وس او توان په اندازه ستاسې دټولو خرچه کوم. که هغوی به دغه ټول شرائط ومنل نو له هغوی سره به ملګری شو او که به يې ونه منل نو بيا به نورو پسې ګرځيدوترڅو چې ځانته ملګري پيداکړي.

مصنف رحمه الله عليه وايي چې کله به زمونږ اسلاف جهاد ته روانېدل نوله هغوی نه به دهريوتن داکوشش و چې دخپلو ملګرو خدمت وکړي او خوشاله يې وساتي. څومره چې کيدی شي پر هغوی خرچه وکړي. که چابه دخرچې وس نه درلود نو بيا به يې هغوی ته په هرڅه کې له ځان نه زيات کتل. او هغو به داکار يواځې دالله تعالې دخوښۍ او له هغه نه ثواب دتر لاسه کولو په اميدکاو.

«عَنْ ابي الجهم بن حذيفة العدوي قال: انطلقتُ يوم اليرموك اطلب ابن عمّي ومعي شَنَّةٌ من ماءٍ

فقلت: ان كان به رمق سقيتُه من الماء، ومسحْتُ به وجهه، فإذا انا به يشهق،

فقلت له: اسقيك.

فأشار: اى نعم.

فلذا رجلٌ يقول: اه

فأشارَ ابنُ عمي ان انطلق اليه، فإذا هو هشامُ بن العاص اخو عمرو بن العاص رضي الله عنهما.

فأتيتُه فقلت : اسقيك ؟

فسمع آخر يقول : آه .

فأشارَ هشام ان انطلقَ اليه. فجئتُه ، فإذا هو قدمات ! ثم رجعتُ الى هشام ، فاذا هو قدمات !! ثم اتيتُ ابن عمي، فاذا هو قدمات !!! .. رحمهم الله جمعياً [١] ))

ابوجهم رضی الله عنه فرمايې چه زه ديرموک په غزوه کې دخپل تره زوی پسې گرځيدم اوله ماسره داوبو يولوښې ( مشک / زی ) وه . ماويل که چېرته هغه ژوندی وي اوساه يې چليده نو زه به هغه ته اوبه ورکوم اودهغه مخ به وينځم .خو ما هغه په داسې حالت کې وليد چه زنکدن يې و او خبرې يې په تکليف سره کولې ما ورته وويل ايا اوبه درباندی وڅښنم ؟ هغه وويل هو. ناڅاپه مله يوبل سړي نه دآه او فرياد اواز راغې زما تره زوې ماته اشاره وکړه چه هغه ته اوبه ورنړ. اجي وکتل نو هغه دعمرو ابن العاص وروږهشام بن العاص ﷺ و زه چه هغه ته نژدې ورغلم اوداوبو څښلو ست مې ورته وکړ په دی وخت ناڅاپي ديوبل سړي دآه اوفرياد آواز راغې هشام ﷺ ماته اشاره وکړه چه دهغه څنگ ته لاړشه . زه چه دهغه څنگ ته ورغلم نو هغه شهيد شوی و . زه بيرته دهشام خواته ورغلم نو ومې کتل هغه هم شهيد شوی و . بيا زه دخپل تره زوی خواته ورغلم گورم چه هغه هم شهيد شوې و . الله پاک په دريو واړو رحم کړی و . الله جل جلاله دی پرتاهم رحم وکړي پداسې وخت کې دهغوی دی ايثار ته اوگوره چې کوم شي ته يې په کوم وخت کې سخته اړتيا ده په هغه وخت کې په هغه سخاکوی . دوی په هغه وخت کې په اوبو باندې سخاوکړه چې په هغه وخت کې اوبو دوی ته دژوند حيثيت درلود . له همدې کبله هغوی دالله جل جلاله درضا او رحم وړ وگرځيدل .



[١] ـ المستدرك للحاكم : ٢/ ٩٨، واسناده حسن .

# فصل

## مجاهدینو ته دمخه ښه ویلو اوله هغوی سره دخو ګامه تللو فضیلت

(( روی الحاکم عن عبدالله بن عباس رضی الله عنهما ان رسول الله صلی الله ﷺ جهز جیشا فمشی معهم الی بقیع الغرقد ، حین وجههم ، ثم قال : انطلقوا علی اسم الله ، اللهم اعنهم.[1] ))

حاکم لـه عبدالله بن عباس رضی الله عنهمانه روایت کړی دی چی رسول الله ﷺ یو لښکر تیار کړ او دبقیع غر قد پورې ورسره ولاړ بیایې هغوی ته وویل : دالله په نوم سره لاړشئ . ای زما پالونیکه ! ددوی مرسته وکړئ.

(( وخرجَ ابن عساکر انَّ ابا بکر الصدیق رضی الله عنه بعث جیوشاً الی الشام فخرج یمشی مع یزید بن ابي سفیان _ وکان امیر ربعٍ من تلك الارباع _ رضی الله عنه .

فقال یزید لأبي بکر : إمّا أن ترکب ، واما ان انزل !

فقال لـه ابو بکر: ما انت بنازل ، وما انا براکب ، انی احتسبُ خُطایَ هذه في سبیل الله ! ))

ابن عساکر روایت کړیدی چی ابو بکر الصدیق رضی الله عنه شام ته یو لښکر واستول . پخپله ابو بکر الصدیق لـه یزید ابن ابی سفیان سره ( هغه په دغوڅلورو لښکرو کې

---

[1] _ المستدرك للحاکم : ٢/ ٩٨ واسناد حسن

ديوه لښکر اميرو) پياده روان و ، يزيد ابو بکر ﷛ ته وويل چی يابه تاسې هم سپريږئ اويابه زه کوزيږم . ابو بکر ﷛ ورته وفرمايل : نه به ته راښکته کيږې او نه به زه سوريږم زه غواړم چی زماداقدمونه دالله په لاره کې حساب شي.

(( روى البيهقي عن مجاهد قال : خرجت الى الغزو فَشَيَّعنا عبدالله بن عمر ﷛ عنهما ، فلما أراد فراقنا قال : إنه ليس معي ما أُعْطيكُماه ، ولكني سمعت رسول الله ﷺ يقول : " إن الله اذاستُودع شيئاً حفظه" وانا استودع الله دينكما وامانتكما وخواتيم اعمالكما ))[1]

بيهقي له مجاهد نه روايت کوي چی زه جهاد لپاره ووتلم نو حضرت عبدالله بن عمر ﷛ عنهما زمونږ درخصتولو لپاره راسره ووت. کله چې هغه له مونږ نه جداکيدو نوويې فرمايل: له ما سره څه نشته چی تاسوته يې درکړم خو مارسول الله ﷺ نه اوريدلي دي چی فرمايل يي : کوم شی چی الله ته وسپارل شي الله تعالې دهغه حفاظت کوي نو زه ستاسې دين ، ستاسې دحفاظت ور څيزونه او ستاسې داعمالو خاتمه الله ته سپارم .

(( وقال ابو هريره ﷛ : إن الرجل ليقول لصاحبه : انطلق بنا نشيّع فلاناً الغازي ساعة . فيقول الله: طوبي للقائل والمقول له .))

ابو هريره ﷛ فرمايلي دي چی کله يو سړې خپل ملګري ته وايې راځه چی دفلانکي غازي درخصتولولپاره يوساعت ورشو نو الله تعالې فرمايي دويونکي او اوريدونکي لپاره زيرې دی . لکه څنګه غازي رخصتول هغه ته دمخه ښه ويل اوله هغه سره څوګامه تلل دثواب کاردی همداشان دهغه دراستنيدو پرمهال هغه ته مخې ته ورتلل هغه ته ښه راغلاست ويل هم له ثواب نه خالي نه دی .

---

[1] ـ السنن الكبرى للبيهقي : ۹/ ۱۷۳، والحديث صحيح .

(( روى البخاري عن السائب بن يزيد رضي الله عنه : قال ذهبنا نتلقي رسول الله صلى الله عليه وسلم مع الصبيان الى ثنية الوداع مقدمه عن غزوة تبوك.[1] ))

بخاري لـه سائب بن يزيد رضي الله عنه نه روايت كوي هغه وايي چى ماته داپه ياد دى چى كله نبي كريم ﷺ دتبوك لـه غزانه بيرته راغى نو زه هم دماشومانو سره دهغوى دښه راغلاست لپاره تر ثنية الوداع پورې ورغلى وم .



---

[1] ـ اخرج البخاري برقم :۳۰۸۳.

# دیارلسم باب

## دجهاد په نیت داس ساتل اوپرهغه دخرچ کولو فضیلت

قال الله تعالی :

﴿ وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ وَمِنْ رِبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدُوَّ اللَّهِ وَعَدُوَّكُمْ وَآخَرِينَ مِنْ دُونِهِمْ لَا تَعْلَمُونَهُمُ اللَّهُ يَعْلَمُهُمْ وَمَا تُنفِقُوا مِنْ شَيْءٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يُوَفَّ إِلَيْكُمْ وَأَنْتُمْ لَا تُظْلَمُونَ﴾ [الأنفال٦٠ ]

او تاسي لـه خپلې بشپړې وسلې نه ډیر زیات توان اوزین کړي اسونه دکافرانو دمقابلې لپاره تیار کړئ ترڅو پرې دالله دښمنان ، خپل دښمنان اونور هغه دښمنان وډاروئ چې تاسو یې لانه پیژنئ. بلکې الله یې ښه پیژني ، او څه مو چې دالله په لیار کې مصرف کړل نو بدلـه بـه یې ضرور درکړای شي او پرتاسې به هیڅ تیری نه کیږي .

وقال تعالی:

﴿وَالْعَادِيَاتِ ضَبْحًا. فَالْمُورِيَاتِ قَدْحًا.فَالْمُغِيرَاتِ صُبْحًا فَأَثَرْنَ بِهِ نَقْعًا.فَوَسَطْنَ بِهِ جَمْعًا﴾ [العادیات : ١- ٥ )

لوړه پرهغو اسونو چې په ځغلیدلو سره په پرشهار ساه اخلي . او دسوم په وهلو داور سپرغې راپورته کوي . او سهارله څرک سره پر دښمن یرغل کوي . او یو خړ ګرد پرې راپورته کوي . ددښمن په منځ کې ورننوځي .

ابن عباس ، مجاهد ، عکرمه قتاده او نور مفسرین وایي چې په عادیاتو باندی چې کوم قسم یادشویدی دا په هغو اسونو باندی قسم دی چې مجاهدین ورباندی غزا ته ځي اوپردشمن یرغل کوي.

او کوم اسونه چې دجهاد لپاره ساتل کیږي دهغوی ډیر لوی فضیلتونه دي .

لومړۍ . چاچې دجهاد په نيت اس وساته . دهغه مړيدل ، وږې کيدل ، په اوبو باندې مړيدل او تږې کيدل ، دهغه متيازې او خسني او څومره چې خوراک څښاک کوي او ګرځي داټول دقيامت په ورځ دنيکۍ په تله کې حسابيږي .

(( روى البخاري عن ابي هريرة ﷺ قال: قال رسول الله ﷺ : الخيل ثلاثة :هي لرجل وزر ، وهي لرجل ستر ، وهي لرجل اجر:

فأمَّا التي هي له وزر ، فرجلٌ ربطها رئاءً وفخراً ونِواءً لاهل السلام ، فهي له وزر واما التي هي له ستر ، فرجلٌ ربطها في سبيل الله ، ثم لم ينسَ حق الله في ظهورها ولا رقابها فهي له ستر .

واما التي هي له اجر ، فرجلٌ ربطها في سبيل الله لأهل الاسلام ، في مرج او روضة .. فما أكلت من ذلك المرج او الروضة من شيء ، الا كُتب له عددُ ما اكلتْ حسنا ت ، وكُتب له عددُ ارواثها وابو الها حسنا ت ، ولا تقطعُ طولها فاستنت شَرفاً او شرفين ، الا كُتب له عددُ آثارها وارواثها حسنات ، ولا مر بها صاحبهُا علي نهر فشربت منه ولايريدُ ان يسقيها ، الا كتب اللهُ له عد د ماشربت حسنا ت .[1] ))

بخاري او مسلم له ابي هريره ﷺ نه روايت کوي هغه وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي : اسونه په درې ډوله دي يو هغه اس دی چې هغه دساتوونکي لپاره ګناه ده بل هغه اس چې خاوند لپاره پرده ده دريم هغه اس چې خاوند لپاره اجر دی .

کوم سړي لپاره چې ګناه ده نو داهغه سړی دی چې خان ښودنې او مسلمانانو سره ددشمنۍ لپاره يې ساتلی وي او کوم سړي لپاره چې پرده ده نو داهغه سړی دی چې

---

[1] اخرجه البخاري برقم : ۲۳۷۱. ومسلم برقم : ۹۸۷.

دالله په لاره کې يې دجهاد لپاره يې ساتلې وي . خپل کارورباندى هم کوي اودالله حق هم دهغه په ملا او څټ باندى له ياده نه وباسي .

اوکوم اس چې دهغه لپاره اجر دى داهغه سړى دى چې اس يې دمسلمانانو لپاره دالله په لاره کې دجهاد په خاطر په يو ځړ ځاى او يا يوباغ کې تړلى وي نو دغه اس چې له دغه ځړ ځاى ياباغ نه څه وخوړل نو هغه لپاره داس دخوراک په برابر اجر اوثواب دى اوهغه لپاره دهغه دخشنو او متيازو په اندازه نيکئ ليکل کيږي اوکه اس پړى وشلوي اوبه تيزئ سره يو دوه ميله منډه ووهي . نو ددى آس خشنه او قدمونو په شمير به ددغه سړي لپاره نيکئ وي . اوکه چېرته په کوم نهر باندې تير شو اولدينه يې اوبه وڅښلې مګر دخاوند اراده دانه وه چې اوبه ورته ورکړي نو دا اوبه به ددغه سړي لپاره نيکي وي .

(( روى البخاري عن ابي هريرة ﷺ قال : قال رسول الله ﷺ : " من احتبس فرساً في سبيل الله ، ايماناً به ، وتصديقاً بوعله ، فانَّ شبعه ، وريَّه ، وروثه ، وبولَه ، في ميزانه يوم القيامة "[1] ))

بخاري اومسلم له ابي هريره ﷺ نه روايت کړيدى هغه وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي :

چاچې په الله تعالى باندى دايمان او دهغه جل جلاله په وعده باندى دتصديق لرلو په وجه دالله په لاره کې اس وساتلو نو دهغه مړيدل اوسيراب کيدل ،دهغه لډوان او متيازې ټول دقيامت په ورځ دنيکي په تله کې آچول کيږي .

دلغتونو معناګانې .

دنواءً معنې ده دمسلمانانو سره دښمني .

:داِستَنَّتْ معنې ده په قوت او سرعت سره ئې منډه وکړه .

---

[1] ـ اخرجه البخاري برقم :٢٨٥٣

او دشرف معنې ده . شوط: شوط يوې اندازې ته وئيل کيږي يابه نورو الفاظو داچې سيل ته ويل کيږي ..

پورتنې حديث پدې دلالت کوي چې که چېرته يو اس پخپله نهر ته ورځي او اوبه څښي مګر دهغه دخاوند دا اراده نه وي چې نهر ته يې بوځي او اوبه ورباندی وڅښي خو الله تعالی هغه ته آس چې څومره اوبه څکلي او څومره ګیاه يې خوړلې الله دهغه په اندازه اجر ورکوي، نو الله به هغه سړي ته څومره ثواب نه ورکوي ؟ چې هغه اس ته داوبو څکلو اوګیاه ورکولو قصد کړی وي او پدې کار سره يې يواځې دالله جل جلاله رضا مقصد وي .

دويم : هرچاچې دالله په لاره کې دجهاد لپاره اس وساته دقيامت په ورځ به دهغه دخاوند او اور ترمنځ پرده وګرځي .

دريم : چاچې دالله په لاره کې اس وساتلو نو داد هغو خلکو له جملې څخه ګرځي چې خپل مالونه دشپې او ورځې په پټه او ښکاره دالله په لاره کې خرچوي او هغوی لپاره دالله په نزد لوی اجر دی .

څلورم : کوم سړی چې دالله په لاره کې ساتل شوي آس باندی خرچ کوي داد هغه چاپه شان دی چې خپل لاسونه يې دصدقې لپاره خلاص کړې وي او نه يې بنده وي .

(( روى الحاكم والطبراني وابو عوانه عن ا بي كبشة الانماريُّ ﷺ، عن النبي ﷺ قال : الخير معقودٌ في نواصي الخيل واهلها مُعاتونَ عليها والمنفقُ عليها كالباسط يده بالصدقة[1] )).

حاکم ، طبراني او ابو عوانه له ابي کبشه ا لانماري رضی الله عنه څخه روايت کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي : خير داسونو په تندي پورې زوړند وي. او ددی له ساتوونکې سره دالله تعالی له طرف نه مرسته کولې شي اوپدوی باندی خرچ کوونکې خلک دهغه چاپه شان دي چې هروخت په پراخ مټ خيراتونه کوي.

---

[1] ــ مسند ابي عوانه : ۵/ ۱۹ والمستدرك للحاكم ۲/ ۹۱ .والحديث صحيح.

پنځم : الله تعالی داسونو له ساتونکو سره دمرستې وعده کړیده څکه چې هغوی په اسونو باندی خرچې کوي او خدمت یې کوي .

(( روی احمد عن جابر بن عبدالله ﷺ قال : قال رسول الله ﷺ الخیل معقود في نواصیها الخیر والنیل الی یوم القیمة ، واهلها معانون علیها ، فامسحوا بنوا صیها ، وادعوالها بالبرکة[1] ))

احمد لـه جابر بن عبدالله ﷺ څخه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل : ترقیامته پورې به خیر اوکامیابي داسونو په تندي پورې زوړند وي .

او دآس له ساتوونکو سره به دالله لـه طرف نه مرسته کولې شي . تاسې داسونو په تندی باندی لاسونه راکاږئ او هغوی لپاره دبرکت دعا غواړئ .

شپږم : ددنیا او آخرت ګټه دقیامت تر ورځې پورې داسونو په وچولیو کې ده .

په دی حساب سره چې خبر داسونو په وجه ترلاسه کیږي نو عربو په اس باندی دخیرنوم کیښود .

((روی مسلم عن جریر بن عبدالله ﷺ البجلي رضی ا لله عنه قا ل : رأیتُ رسول الله صلّیالله علیه وسلم یلوی ناصیة فرسه باصبعه وهو یقول : ((الخیل معقود بنواصیها الخیر الی یوم القیامة الاجرو الغنیمةُ )) .[2]

مسلم لـه جریر بن عبدالله بجلی رضی الله عنه څخه روایت کوي هغه وایي چې ما رسول الله ﷺ ولید چې په خپلو ګوتو سره یې داس تندہ موړ لـه اوویل یې : ترقیامته پورې داس په وچولي کې خېر یعنې اجر او غنیمت اینبودل شویدي .

---

[1] _مسند احمد: ٣/ ٣٥٢ راسناده جسن

[2] _ اخرجه مسلم برقم :١٨٧٢

((وروى البخاري ومسلم عن عروة البارقي رضي‌الله عنه ان النبي ﷺ قال: (( الخيل معقودٌ في نواصيها الخير: الاجرو المغنم الى يوم القيامة.)) [1]

بخاري او مسلم لـه عروه بارقي رضی الله عنه نه روايت کړيدي چی نبي اکرم صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي . خير يعني اجر ، ثواب او غنيمت ، دقيامت تر ورځې پورې داسونو په وچوليو پورې تړلي دي .

(( قال شبيب بن غرقلة ــ راوي الحديث عن عروة البارقي :ــ لقدرأيتُ في دار عروة ﷺ سبعين فرساً معلة للجهاد في سبيل الله. ))

شبيب بن غرقده وايي چی ما دعروه په کور کې دالله په لاره کې دجهاد لپاره چمتو ولاړ (٧٠) اسونه ليدلي دي .

اودغـه پورتنې حديث د اصحابو لـه يوې ډلې نه روايت شويدي او دحديث سنديې تر رسول الله ﷺ پورې رسولې دی . ددغو اصحابو لـه جملې څخه جرير البجلی عروه البارقي،عبدالله بن عمر ، علي بن ابي طالب ، عبدالله بن مسعود ،ابو ذر الغفاري ، عبدالله بن عمروبن العاص، ابو سعيد الخدري ، انس بن مالک ، براء بن عاذب ، ابو امامه الباهلي، مغيره بن شعبه،سوادة بن الربيع ، مسلمه بن نفيل ، عتبه بن عبد السلمي رضی الله عنهم دي .

اووم : له ښځونه وروسته حضرت محمد ﷺ ته محبوب شې اسونه وو .

(( روى النسائي عن معقل بن يسار ﷺ قال : لم يكن شيئ احب الى رسول الله صلى الله عليه وسلم بعد النساء من الخيل . [2] ))

نسائي لـه معقل بن يسار ﷺ نه روايت کوي هغه وايي چی رسول الله ﷺ تـه لـه ښځونه وروسته له اسونونه زيات بل څيز غوره نه و .

---

[1] ــ اخرجه البخاري برقم : ٢٨٥٠ ومسلم برقم : ١٨٧٣

[2] ــ المجتبى للنسائي : ٦/ ٢١٨ ، ورجاله ثقات

هر مسلمان لپاره سنت دی چی دنبي کريم ﷺ په اطاعت کې دجهاد لـه اسونوسره مينه وکړي برابره خبره ده چی ا سونه يې خپل وي يادبل چاوي.

اتم : اسونه الله تعالی ته دعاکوي چی دهغوی خاوندان ورسره مينه وکړي . او پدی باندی دی څوک حيرانتيا هم نه ښکاره کوي چی اس لاځنګه دعاکوي . ځکه چی اس الله تعالی تـه پـه يـوه خصوصـي اوځـانګړي طريقې سره دعـاکوي . اس لـه نـورو حيواناتو څخه ځانګړي اوممیز دی ، هغه زيات ادراک او فهم لري اوډير ژرتيزه منډه لکه عرب وائي فرس مهذب يعنی سريع زده کوي.

(( روی النسـائي واحمـد والحاكم عن ابي ذر الغفاري ؓ قا ل : قال رسول الله ﷺ (( مـامن فـرس عـربي ، الا يؤذنُ لـه عند كلِّ سَحَرٍ ، بكلماتٍ يدعو بهـن: الـلهم خوَّلـتني من خوَّلْتني من بني آدم وجعلتني لـه ، اللهم فلجعلني احب ا هله وماله اليه. ))[1]

نسائي، احمد او حاکم لـه ابي ذر الغفاري رضی الله نه روايت کوي هغه وايي چی رسول الله ﷺ وفرمايل: هريو عربي اس ته سهار وختي ددعا ديو څو کلموويلو اجازه ورکـول کيـږي . ای الله! تـاچی زه کـوم انسـان تـه ښنـلی يـم او زه دی ذهغـه مملوک ګرځولې يـم ای الله مادهغـه پـه زړه کې لـه خپـل اهـل وعيـال اومال نه زيات ګران شې وګرځوه.

(( وری ابن المبارك عن السدي قال: خرج عمرو بن عتبة بن فرقد للجهاد فاشـترى فرسـا باربعة الاف دينار !. فلاموه وعنفوه لان ثمنه مرتفعٌ .فقال لهم : مامن خطوة يخطوها إلى عدو الا هي احبُّ الیَّ من اربعة آلاف !![2] )).

---

[1]ـ سنن النسايي : ٦/ ٢٣٣. واحمد: ٥/ ١٧٠ والحاكم : ٢/ ٩٢ . والحديث صحيح.

[2]ـ الجها د لابن المبارك : ٢/ ١٣٤ـ ١٣٥.

ابن المبارک لـه سدي نـه روایت کـوی هغـه وایي چې عمروبن عتبه رحمه الله بن فرقد دجهاد پـه لاره کې ووت او یـو اس یې پـه څلور زره دیناره واخست خلکو هغه داس دزیات قیمـته آخسـتلو پـه وجـه سـخت ملامت کـړ هغـه وفـرمایل : ددی آس ددشمن په طرف اوچتیدونکي هرقدم ماته لـه څلور زره دیناره زیات غوره دی .

مصنف وایي چې حضرت عمرو بن عتبه ﷺ دکوفې اوسیدونکې و نوموړی ډیر زیات عـابد او زاهـد انسـان و هغـه پـه مشرانو تابعینواو مجاهدینو کې شمیرل کیدو اوپه یو جګړه کې شهید شو .

کله بـه چې هغه رحمه الله جهاد ته روانیدو نو پرخپلو ملګرو به یې داشرط ایښودو چې ستاسې ټول خدمت به زه کوم .

لـه اعمش نـه روایت دی چې عمرو بـن عتبه بـن فـرقد وویل : ماله الله نه سوال وکړ چې زمالـه زړه نـه ددنیـا مینـه لـرې کـړی نـو زه یې زاهد کړم ( یعنې لـه دنیانه یې زما زړه موړ کړ . ) نـو ماتـه ددی هیڅ پـروا نشـته او مـا سـوال وکـړ چې لمونځ لپاره قوت راکړي نو الله تعالی ماته دالوی نعمت په برخه کړه . ماله الله تعالی نه دشهادت مرګ هم غوښتې دی هیله من یم چې زما داسوال به هم قبلیږي .عبدالرحمن یزید وایي چې مونږ دجهاد لـه یو لښکر سره ووتلو لـه مونږ سره عمرو بن عتبه هم ووت . دهغه نوې سپینه چپنه وه، هغـه وویـل پـدې سـپینه چپنه بـاندی بـه سره وینـه څـومره ښـه ښکاره شي؟ کله چې جنګ شروع شوَ نو ددشمن لـه لورې یو کاڼې راغې او هغه یې زخمي کړ او وینه یې په چپنه باندی وغورځیدله او دشهادت اوچته مرتبه یې ترلاسه کړه.

نهم : چاچې دالله پـه لاره کې اس وساتلو هغـه تـه اجر ورکـول کیـږي ځکـه چې هغه دالله اودهغه درسول امر پرځای کړیدی .

الله تعالی پخپل کلام کې حکم کړیدی چې :

﴿وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ وَمِنْ رِبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدُوَّ اللَّهِ وَعَدُوَّكُمْ﴾ [ الانفال : ۶۰ ]

او تاسې تر خپلې بشپړې وسې ډیر زیات توان اوزین کړي اسونه دکافرانو دمقابلې لپاره تیار کړئ ، ترڅو پرې دالله دښمنان او خپل دښمنان وویروئ . حضرت محمد

ﷺ امر کړیدی چی : (( ارتبطوا الخیل،وامسحوا بنواصیها واعجازها وقلدوها ولاتقلدوها الاوتار[1] )).

تاسې اسونه ساتئ او دهغوی په ټنډه او شاباندی لاس راکاږي .هغه ته رسئ واچوئ خودتانت رسي نه ( تان دکمان رسي ته ویل کیږي)

ویل شویدي چی دتانت رسی لـه آچولونه یې ځکه ممانعت یې کړیده چی په هغه سره دمری دخفه کیدو ویره وي . داهم ویل شویدي چی مشرکانو بـه لـه بدنظر نه دخوندي ساتلو لپاره دتانت رسی دهغوی پـه غاړو کې آچولې اودیته بـه یې دتعویذونو اعتبار ورکاو نو ځکه رسول الله ﷺ ددغه رسی داچولو نه ممانعت وکړ .



# فصل

## درسول الله ﷺ داسونو نومونه

لومړې : السَّکُب ددی اس په پښو او وچولي کې سپین والې و . سور او تور رنګ یې درلود . خوپه ښي خوا مخکنۍ پښه کې ئې سپین والې نه و .

داد حضرت محمد ﷺ لـه ټولونه لومړې اس و . دایې لـه یو باندهٔ چي نه په لس اوقیـه سپینو زرو باندی اخستی و . پـه دی آس باندی لـه ټولونه مخکې داحد په غزا کې ګډون یې کړی و . ومعنی السکب کثیر الجری فانه یسکب الجری سکب. سکب ډیرې منډې وهونکې اس ته ویل کیږي ځکه سکب اصل کې بهولو ته ویل کیږي اودا اس منډه بهوي .

---

[1] ـ سنن ابي داود : ۳/ ۵۳، والمجتبی للنسائي : ۶/ ۲۱۸ والحدیث حسنٌ

(۲) **المرتجز**: پدې باندې دانوم ځکه ايښودل شوي و چې دهغه ششنا دنظم دويلو په شان ښکلې و .

دريم : اللّحيف (نغښتونکې) پدې باندې دانوم ځکه ايښودل شوې و چې لکۍ يې ډېره اوږده او ګڼه وه چې ددې په لکۍ به زمکه پټېده . دا اس رسول الله صلی الله عليه وسلم ته فروه بن عمرو الجذامي ورکړی و.

څلورم : اللزاز : (نښتونکې) ديته دانوم ځکه ايښودل شوې و چې هغه دخپل تيز رفتاري په وجه لـه خپل مطلوب سره نښتونکې و . دا اس محمد ﷺ ته مقوقس پاچاهديه کړی و .

پنځم : الظَّرِبْ : (غونډۍ ، وړوکې غر ) داډيرقوي مزبوط اس و او چاويلی چې ددی وجهې نه ورتـه ظرب ويلې کيږي چې غټ او چاغ وو. حضرت محمد ﷺ ته فروه بن عمرو دډالی په توګه ورکړې و.

شپږم : الورد : (زيړ والي ته مائل سور ) دا اس تميم داري ﷺ محمد ﷺ ته دهديه په توګه پيش کړی و . بيا محمد ﷺ حضرت عمر فاروق ﷺ ته ورکړې و . په دې باندې دانوم دهغه درنګ په وجه ايښودل شوې و .

اووم: سجه : (لامبو وهونکې ) پرهغه دانوم دهغه دتيز مګر آرام رفتاري په وجه ايښودل شوې و.

دنبي کريم ﷺ پدې اووه اسونو باندې دټولو اتفاق دی او هغه ﷺ به زياته سورلی په السکب باندې کوله .

او ددغو اووه اسونو نه پرته په نورو اسونو کې اختلاف دی.

په مختلفو روايانو کې په لاندې نومونو سره داسونو دنومونو يادونه شويده.

(۱) ذوالعقال . (۲) ذو اللُّمّة (۳) المرتجل. (۴) المراوح (۵) السرحان (۶) اليعسوب (۷) ( واليعبوب ) (۸) والمندوب (۹) والبحر( ۱۰ ) والنجيب .

ددغه فصل دراوړلو فائده داده چې مجاهدين پخپلو اسونو باندې په نوم ايښودلو کې دمحمد ﷺ دسنتو پيروي وکړي.

درسول الله ﷺ يو قچر هم و چې دلدل يې نوم و. دبل قچر نوم فضه او دريم قچر نوم شهباء و دا قچر دايلي اويو بل قچر وو چې ددومة الجندل حکمران هديه کړی و.



# څوارلسم باب

# داسونو دخدمت اودهغوی دعزت کولو فضیلت

تمیم بن اوس الداري ﷺ دبیت المقدس امیر و .هغه کره روح بن زنباع تشریف ویوړ . هغه یې پداسې حال ولید چې دخپل اس لپاره اوربشې پاکولې شاوخوایې دهغه اهل اولاد او خدمتګاران او دهغه عزت یې کاو ناست وو. امیر داکار پخپله پدې خاطر کاو چې له خپل اس سره یې مینه وه.

داس دتنډې ویښتان کمول مکروه دی ځکه چې په هغه کې خیر اوبرکت وي .

(( روی البخاري ومسلم عن انس بن مالك ﷺ قال: قال رسول الله علیه وسلم البركة في نواصي الخيل .))[1]

بخاري او مسلم له انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت کوي هغه وایي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي برکت داسونو په تندي کی دی .

(( وروی الدارمي عن ابي قتادة ﷺ ، ان رجلاً قال : یارسول الله اني اوید ان اشتري فرساً فایها اشتري ؟

فقل: (( اشْتَرِ اَدْهَمَ اَرْثَمَ مُحَجَّلَ مُطْلَقَ اليدِ اليمنى ، او مِنَ الكُمَيْتِ على هذه الشِّيَةِ تغنمُ وتسلمُ[2] )).

دارمي لـه ابي قتاده رضی الله عنه . نه روایت کوي چی یو سړي محمد ﷺ ته وویل : زه غواړم چې یو اس واخلم کوم یو یې واخلم ؟

---

[1] ـ اخرجه البخاري برقم : ٢٨٥١ ومسلم برقم :٤/ ١٨٧.

[2] ـ اخرجه الدارمي في سننه : ٢/ ٢١٢ والحديث صحيح .

رسول الله ﷺ وفرمايل : داسې اس واخله چې هغه توروي او په برنی شونډه کې يې سپين والې وي ، مخکينې او وروستني پښې يې سپينې وي خو په ښي مخکينې پښه کې يې سپين والې نه وي او يا کميت اس واخله يعنې هغه اس چې نه خالص سور وي اونه خالصه تور وي بلکې غير اشقر او غير اسود وي سوروالې يې تور والې ته نژدی وي اونښه ولري يعنې د مخکينی ښې په مطابق چې پورته بيان شويدی غنيمت به ترلاسه کړي او روغ رمټ به وي.

(( وروی ابو داود والترمذي عن ابن عباس ﷺ عن رسول الله صلی الله عليه وسلم قال: يُمْنُ الخيل في شُقْرها [1] ))

ابو داود او ترمذي له ابن عباس ﷺ نه روايت کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي : برکت په سور رنګيو اسونو کې دی ..

(( وروی مسلم عن ابي هريره ﷺ قال كان رسول الله ﷺ يكره الشّكال من الخيل )).

مسلم له ابي هريره ﷺ نه روايت کوي هغه وايي چې رسول الله ﷺ به په اسونو کې شکال نه خوښول . يعنې هغه اس يې نه خوښاو چې په وروستني ښي پښه او مخکيني ګڼه پښه کې به يې سپين والې و ياپه وروستني ګڼه پښه او مخکينې ښي پښه کې به يې سپين والې و .



---

[1] ــ سنن ابي داود : ۳/ ٤٨ وسنن الترمذي ۳/ ۱۲۰ والحديث صحيح.

# پنځه لسم باب

# دمجاهد او مرابط داعمالو ، لمونځونو او روژو فضیلت

(( وروى البخاري ومسلم عن ابي سعيد الخدري ﷺ ، قال :قال رسول الله ﷺ . ((ما من عبدٍ يصومُ يوماً في سبيل الله الا باعدالله بذالك اليوم وجههُ عن النار سبعين خريفا )) .[1]

بخاري او مسلم لـه ابي سعيد الخدري ﷺ نه روايت كوي هغه وايي چې رسول الله صلى‌الله عليه وسلم وفرمايل: كوم سړي چې دالله په لاره كې يوه ورځ روژه نيسي الله دهغې په وجه دهغه مخ له اور نه داوياكلونو دمسافي په برابر لرى كوي.

په سلفو كې به زياترو اشخاصو په جهاد كې روژې نيولې . دالله په لاره كې به يې قتال كاو خو روژه به يې نه ماتوله ، داكارېې دثواب اودالله درضا دترلاسه كولو په خاطر كاو .

مونږ دلته دبيلګې په توګه يو دوه مثالونه وړاندې كوو لومړې دجليل القدر صحابي عبدالله بن مخرمه ﷺ يادونه كوو .

(( قال عبدالله بن عمر رضى الله عنهما: توافقتُ اناوعبدالله بن مخرمه وسالم مولى ابي خذيفه عام اليمامة . وكان الرعي على كل امرئ منايوماً . ولما كان يوم المعركة كان ا لرعي عليَّ.

---

[1]_ اخرجه البخاري برقم : ٢٨٤٠ ، ومسلم برقم ١١٥٣.

فاقبلت الى الميدان ، فوجدت عبدالله بن مخرمة صريعاً، فوقفت عليه وبه رمق، وكان صائماً . فلما رآني قال : هل افطرَ الصائم ؟

قلت : لا.

قال: فاجعل لي في هذا المجن _ الاناء _ ماءً لعلي افطر عند مغيب الشمس!

ففعلت . ثم رجعت اليه فوجدته قد مات! [۱] ))

عبدالله بن عمر ﷺ فرمايي چې : زه او عبدالله بن مخرمه او سالم مولى ابي خذيفه ديمامي په جنګ ... ملګري شوو اوله مونږ نه به هريو روزانه په وار وار چوکيداري كولو . دجنګ په ورځ د چوس... ي نوبت زما و .

زه دميدان په طرف ولاړم هلته مې عبدالله بن مخرمه په زخمي حالت ګې په ځمکه پروت وليد . دهغه څنګ ته ودريدلم ، ومې كتل چې ساه يې چليده . او روژه يې نيولې وه هغه چې زه وليدم نو راته يې وويل : ايا روژه دارانو روژه ماته كړيده؟ ماورته ووېل نه.

هغه راته وويل : ماته زما پدې ډال كې داوبو يو لوښې كيده چې زه ورباندى دماښام په وخت روژه ماته كړم . ماورته اوبه كيښودلې . وروسته چې خواته يې ورغلم نو هغه وفات شوې و . [۲]

دويم دهغه مجاهد ځوان كيسه ده چې عيناء نامې ئې حوره په نكاح سره غوښتې وه

ثابت البناني ويلي دي چې له ځوانانو نه يو ځوان په يوه زمانه كې جهاد وكړ .هغه خپل ځان شهادت ته پيش كړ او دشهادت آرزويي وكړ ليكن شهادت يې په نصيب نه

---

[۱]_ المصنف لابن ابي شيبه : ۵/ ۳۶٦

[۲]_ المصنف لابن ا بي شيبه : ۵/ ۳۶٦

شو .هغه له خپل ځان سره وویل : ما دشهادت مرګ راوغوښت خو په نصیب مې نه شو . کله چې خپل کورته لاړشم نو ډیر ژربه واده وکړم کله چې دقیلولې وخت رانژدې شو نو دغه ځوان په خیمې کې قیلوله وکړه ترڅو یې جسم لږ غوندې په آرام شي . کله چې دماسپښین دلمونځ وخت رانژدې شو نو دهغه ملګرو هغه له خوب نه بیدار کړ ترڅولمونځ وکړي . کله چې هغه بېدار شو نوپه ژړایې پیل وکړ. ملګرې یې وویریدل چې پیریانې شوې اوکه څنګه؟

هغوی ته یې وویل چې پرما هیڅ چل نه دی شوې . بلکې زه پدې ژاړم چې ماته په خوب کې یو ځوک راغې اوراته یې وویل خپل عینانومې میرمنې ته لاړشه . زه ودریدم اوهغه له ځان سره یوه سپینه او صفا زمکې ته راوستلم او بیایې یوې داسې باغچې ته دننه کړم چې ماپخپل ټول ژوند کې داسې ښایسته باغچه نه وه لیدلې . هلته لس داسې جنکیانې مې ولیدلې چې په ټول عمر کې مې دومره ښایسته بل څوک نه و لیدلې. ماهیله وکړه چې عیناء به په همدوی کې وي ماورته وویل ا..! په تاسو کې عینا شته؟ هغوی وویل : هو هغه وړاندې ده اومونږ دهغې خدمتګارې یو . زه بیاله خپل ملګري سره نور هم وړاندې لاړم هلته مې داسې باغچه ولیده چې له مخکینی باغچې نه ډیره ښکلې او ښایسته وه . هلته شل جنکیانې ولاړې وې چې له لومړنیو لسو جنکیانو نه ډیرې ښکلې وې . زمایه زړه کې راغله چې شاید په دوی کې به زما عیناوي . ماله هغوی نه پوښتنه وکړه چې ایاپه تاسو کې عیناشته؟

هغوی راته وویل مونږ خو دهغې خدمتګاراني یو هغه لدینه مخکې او سیرې داسې هغه ددیرشو جنکیانو یادونه وکړه ، بیا یې وویل چې زه د سرو یاقوتو نه جوړ محل ته لاړم دغه محل خپلې شاوخوا سیمې پخپل رڼا سره ښکلې کړې وي .زما ملګري ماته وویل چې دغه محل ته لاړشه ، زه هغه محل ته لاړم ګورم چې یوه ښځه پکې ولاړه ده او مخ یې له ښایست نه دومره ځلیده چې دمحل رڼا دهغه په وړاندې هیڅ و . زه دهغې په څنګ کې کیښناستم اوله یوبل سره مو خوږې خوږې خبرې وکړې څه وخت وروسته زما ملګري آواز وکړ چې راځه دواپس تللو وخت دی نژدې شویدې .زما زړه نه غوښتل چې راووزم نو څه مې کړهوای دملګري خبره مې نشوه ماتولې زه چې ودریدلم نو عینا زما دڅادر پلو ونیوله او راته یې وویل چې نن روژه

له مونږ سره ماته کړئ مادغه خوږ خوب لیدو چی زه تاسې لـه خوبه راویښ کړم اوماته معلومه شوه چی ماخوهسې تش خوب لیده نو ځکه مې دغم او افسوس په وجه وژړل داخبرې روانې وې چی له کفارو سره دجنګ اعلان وشو خلک په اسونو سپاره په جنګ کې شریک شول . کله چی مابنام شو اولمر پریوت او دروژه ماتې وخت راورسید نو په همدې وخت دغه ځوان لـه دشمن سره په سخت جنګ کې دشهادت اوچته مرتبه ترلاسه کړه .

دجهاد په وخت دمجاهد عبادت ته له اووه سوه چنده نه زیات ثواب ورکول کیږي برابره خبره ده چی دمجاهد دغه عبادت روژه وي یالمونځ. دقران کریم تلاوت وي یاذکر تسبیح او استغفار .

# شپاړلسم باب

## داسلامي سر حدونو دحفاظت فضیلت

قال الله تعالى : ﴿ فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدْتُمُوهُمْ وَخُذُوهُمْ وَاحْصُرُوهُمْ وَاقْعُدُوا لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ ﴾ [ التوبه :۵ ]

نو هر چیرته مو چې مشرکان مینده کول ویې وژنئ ویې نیسئ ، بندي او ایسار یې کړئ اوپه هرځای کې یې څارئ .

وقال تعالى: ﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اصْبِرُوا وَصَابِرُوا وَرَابِطُوا وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴾ [ آل عمران۲۰۰]

ای مومنانو صبر وکړئ او نورو ته هم دصبر توصیه وکړئ ، جهاد ته خانونه تیار کړئ ، اوله الله څخه وډارشئ ترڅو برې موپه برخه شي .

ابن جریر طبري پخپل تفسیر کې له حسن بصري نه روایت کوي چې هغه د (( اصبروا وصابروا )) په اړه وايي :ددی معنې داده چې مسلمانانو ته ددی خبرې حکم ورکول شویدې چې له کفارو سره په جنګ کې له صبر او استقامت نه کار واخلي ترڅو کفار له خپل دین نه ستړې شي اوپری یې ږدي .

او محمد بن کعب القرظي ددغه آیت په باره کې فرمایي : زما او ستاسې ددشمن په مقابله کې مسلسل بهادري ښکاره کړئ ترڅو هغوی خپل دین د ستاسو دین لپاره پریږدي .

ازهري په تهذیب اللغة کې ویلي دي چې درابطوا په اړه دوه قوله دي .

لومړې داچې تاسې ددشمن دمقابلې لپاره جنګي سامان او اسونه تیار کړئ دویم داچې په صالحو اعمالو باندی همېشه والې او محافظت وکړئ .

(( روی مسلم عن ابي هریره ﷺ ان رسول الله ﷺ قال :

الا ادلکم علی مایمحوالله به الخطایا ویرفع به الدرجات ؟

قالوا بلی : یارسول الله .

قال : اسباغُ الوضوء علی المکاره وکثرة الخطی الی المساجد ، وانتظار الصلاة بعد الصلاة فذلکم الربا ط .[1]))

مسلم لـه ابي هریره ﷺ نـه روایت کـوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل : ایا زه تاسو ته هغـه ځیـزونه ونښـایم چې الله تعـالـې دهغـه پـه وجـه ګـناهونه محـوه کـوي او درجـې اوچتوي؟

هغـوی وویـل هـو ونښایه یارسول الله !هغه ﷺ ورته وفرمایل : په سختو وختونو کې ( سخت وختونه لکـه یخنـي ژمـې او دردونـو او مریضـي حـالت)پـه پـوره او صـحیح طریقې سره اودس کـول او مسـجد تـه زیات ګامونه او چتول او دیو لمونځ پسې دبل لمونځ انـتظار کـول . همداربـاط ( یعنـې داسلامي سرحدونو حفاظت دی ) رسول الله صلی الله علیه وسلم دغـه صـالح عملونه لـه دشمن سره دجهاد لپاره داسونوله تیار ساتلو سره برابر ګرځولي دي .

قرطبي دمفسرابن عطیه نه نقل کړی دی چې صحیح خبره داده چې درباط معنې په جهاد کې کلک درېدل دي. په اصل کې دلغت په لحاظ درباط معنې ربط الخیل دي یعنې دجهاد لپاره داس ساتل . لیکن دالفظ دهر هغه چا لپاره استعمالیدی شي چې هغـه دمسلمانانو پـه یـو محـاذ کـې دجهاد لپاره کلک ولاړوي . برابره خبره ده چې په اس باندی سوروي یاپیاده وي.[2]

ابن قتیبه وایـي چې المـرابطه دمفاعلـه پـه وزن دی . داپـه مشـارکت بـاندی دلالـت کـوي هغـه داسې چې مسلمانان هم دجهـاد لپـاره اسونه تیار کړي او مشرکان هم لـه مسلمانانو سره دجنګ لپاره اسونه تیـار کړي اوپـه محـاذونو کې واوسي اوهریو لـه

---

[1]ـ اخرجه مسلم برقم ۲۵۱.

[2]ـ تفسیرالقرطبي ٤/ ۳۲۳.

خپل دشمن سره دمقاتلې لپاره تیاروي . نو ځکه په سرحدونو کې اوسیدوته رباط ویل کیږي .

ابن رشد پخپل کتاب ( المقدمات ) کې له عبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت نقل کړی دی چی هغه فرمایلي دي :

الله تعالی جهاد دمشرکانو دوینې تویولو لپاره فرض کړیدی او دسروحدونو پیره داري یې دمسلمانانو دوینې دحفاظت لپاره فرض کړی ده زما په نزد دمسلمانانو دوینې حفاظت کول دمشرکانو دوینې له تویولونه غوره دی .[1]

یوه شئ چی دسرحدونو پیره داري کول دایمان له څانګو څخه یوه څانګه ده او دګناهونو دبخښنې له موجباتو څخه دی .

درباط دفضیلت په باره کې زیات احادیث راغلي دي چی یو څو یې په لاندی ډول دي :

لومړۍ دیوې ورځې لپاره دسرحدونو حفاظت کول ددنیا او مافیها څخه غوره دي .

(( روی البخاري عن سهل بن سعد ﷺ ا ن النبي ﷺ قال (( رباط یومٍ في سبیل الله خیرٌ من الدنیا وماعلیها ، وموضع سوط احدکم من الجنة خیرٌ من الدنیا وما علیها ))[2] .

بخاري له سهل بن سعد ﷺ نه روایت کوي چی نبي کریم ﷺ وفرمایل : دالله په لاره کې یوه ورځ دسرحدونو پیره کول له دنیا او په هغه کې چی څه دي له ټولو نه غوره دی اوپه جنت کې ستاسې دقمچینې دایښودلو په اندازه ځای له دنیا او په هغې کې چی څه دي له ټولونه افضل دی .

خینو ویلي دي چی ددی ظاهري معنې داده چی دغه کار له ټولې دنیا او په دنیا کې چی څومره څیزونه دي له ټولو نه بهتر دی .

---

[1] ــ المقدمات لابن رشد ۱/ ۲۷۵.

[2] ــ اخرجه البخاري برقم : ۲۸۹۲

او چاویلي دي چی ددی غوره والي معنی داده چی. که چېرته دیومسلمان وس ورسیږي چی د اټول دنیا ترلاسه کړي اودالله په لاره کی نفقه کړي ، داخو مستحیل او ناشوني کار دی . خو بیاهم لدینه د الله جل جلاله په لاره کې یوه ورځ دسرحدونو پیره بهتره او غوره ده .

زیاترو علماو دغه قول ته ترجیح ورکړیدی.

چاویلي دي چې دلته یې دښه وضاحت لپاره دمغیباتو تشبیه له محسوساتو سره ورکړیده څکه ددنیا مال اودهغه خوندونه له محسوساتو څخه دي ، او دیوې ورځې دپیره داري ثواب له غیبو څخه دی خو بیا هم دامغیبات داله هغومحسوساتو څخه غوره دی . چې انسانان یې په دنیا کې احساسوي . دغه قول ته ابن دقیق العبد راجح ویلي دي .

دویم : یوه شپه یوه ورځ دسرحدونو پیره داري کول دیوې میاشتې روژو او تراویحو نه افضل دی اویوه میاشت پیره داري دټول عمر له روژونه غوره دی .

(( روی مسلم عن سلمان الفارسي ﷺ قال : قال رسول الله ﷺ

(( رباط يومٍ وليلةٍ خيرٌ من صيام شهر وقيامه ، وان مات فيه جرى عليه عمله ا لذي كان يعمله واجري عليه رزقه وامن الفتان .[1] ))

مسلم له سلمان الفارسي ﷺ نه روایت کړیدی هغه وایي چی رسول الله ﷺ فرمایلي دي : دسرحدونو یوه شپه یوه ورځ پیره داري کول دیوې میاشتې له روژو او تراویحونه افضل دی. که چېرته دپیره داري په حالت کې مړشي نو دهغه عمل اجرورته ورکول کیږي چی پکې مشغول و هغه ته به له جنت نه رزق جاري کړې شي اودقبر له عذاب نه په محفوظ وساتل شي .

(( روی الطبراني عن ابی الدرداء رضی الله عنه عن رسول الله صلی الله علیه وسلم قال : رباط شهر خير من صيام دهر ومن مات مرابطافی سبیل

---

[1] ـ اخرجه المسلم برقم : ۱۹۱۳.

الله امن من الفزع الاكبر وغدى عليه وريح برزقه من الجنة ويجرى عليه اجر المرابط حتى يبعثه الله عزوجل )).

طبراني لـه ابودرداء رضى الله عنه نـه روايت كړى دى چې ديوې مياشتې پيره او دسرحدونو ساتنه دټولې زمانې لـه روژو نه ډير غوره دى او څوک چې دالله جل جلاله په لار کې درباط په حالت کې مړشو هغه به دلوی ويرې . وارخطايي ( دحشر ورځ ) نه به په امن وي سهار او بيګاه به ورته لـه جنت نه رزق ورکول کيږي اودقيامت ترورځې پورې به ورته دمرابط ثواب ليکل کيږي.

دريم: کله چې يو سړی مړشي نو دهغه عمل قطع کيږي مګر دپيره ورکوونکې اجر نه قطع کيږي ځکه چې هغه کله دپيره داري په حالت کې مړشي نو دهغه دپېره داري او نورو عملونو اجر ورته ترقيامته پورې جاري ساتل کيږي.

(( وروى ابو داود والترمذي والحاكم عن فضالة بن عبيد ﷺ ان رسول الله ﷺ قال : (( كل ميت يختمُ على عمله الا المرابطُ في سبيل الله فانه يُنمي لـه عمله الى يوم القيمة ويُؤمنُ من فتنة القبر )) [1].

ابو داود ، ترمذي او حاکم لـه فضاله بن عبيد ﷺ نه روايت کړی دی چې نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: دهر مړي عمل دهغه لـه مړکيدو سره سم ختميږي مګر دالله په لاره کې دسرحدونو دپيره کوونکې عمل نـه ختميږي ځکـه چې دهغـه عمل دقيامت ترورځې پورې زياتولې شي . اودقبر لـه فتنې څخه محفوظ ساتلې شي.

لـه دې حديث نـه داثابت شو چې دسرحدونو پيره داري کول لـه هغو غوره اعمالو څخه دی چې ثواب يې لـه مرګ نه وروسته هم جاري پاتې کيږي.

رسول الله ﷺ ديـو څو هغو نورو عملونو هم خبر راکړی دی چې ثواب يې لـه مرګ نه وروسته پاتې کيږي.

---

[1] ـ سنن ابي داود : ٣/ ٢٠ والترمذي : ٣/ ٩٨ والحاكم :٢/ ١٤٤ والحديث صحيح

(( روى مسلم عن ابي هريره ﷺ عن رسول الله ﷺ قال :

(( اذامات الانسانُ انقطع عمله الا من ثلاثٍ : صد قةٍ جاريةٍ ، او علمٍ يُنتفع به ، اوولدٍ صالح يدعوله )).[1]

مسلم له ابي هريره ﷺ نه روايت كړيدى چى محمد ﷺ وفرمايل :

كله چى انسان مړشي نو دهغه دعمل لړى قطع كيږي مګر دري عملونه يې نه قطع كيږي جاري صدقه ، ياهغه علم چى ګټه ترينه آخستل كيږي يانيک اولاد چى مور او پلار ته دعاكوي . بيشكه چى ددغو دري واړو شيانو اجر له مرګ نه پس هم جاري پاتي كيږي خو كله چى داختم شي نو اجر يې هم بندشي . ځكه چې كله بچې مړشي ، صدقه جاريه ختمه شي او علم پاى ته ورسيږي نو ثواب يې په خپله قطع كيږي اما رباط فى سبيل الله له هغواعمالو څخه دي چې دقيامت تر ورځې پورې يې ثواب ليكل كيږي او همدادنمو( زياتوالي ) معنا ده اوبله داچې دلته دثواب ليكل كوم سبب پورې موقوف نه دې ترڅو دهغه په قطع كيدو سره دثواب ليكل قطع شي بلكې داخودالله جل جلا له له خوا يونه پاى ته رسيدونكې فضل دى دقيامت تر ورځې پورې ، او دى خبره كې څه شک نشته ځكه چې څومره نيک اعمال دي مسلمانان هغو ته هومره پورې نشي خوشي كيداى اوپه داډه زړه يې نشي ترسره كولاى ترڅو هغوى ددښمن نه په امن كې نه وي اوترڅو چې دهغوى دين محفوظ نه وي او داسلام شعائر قائم نه وي . او ددښمن نه په امن كې كيدل .داسلام شعائر قائميدل او ددين ساتنه به غير له جهاد او دسرحداتو له حفاظت نه هسې تش خوب ليدل دي .

(( وروى احمد عن ابى امامة رضى الله عنه عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال اربعة تجري عليهم اجورهم بعد الموت : مرابط فى سبيل الله .

---

[1] ـ اخرجه مسلم برقم : ١٦٣١

ومن عمل عملاً اجرى له مثل ماعمل . ورجل تصدق بصدقة فاجرها له ماجرت ، ورجل ترك ولداصالحا فهويدعو له .))

احمد له ابو امامه رضی الله عنه نه روایت کړې دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي . څلورو کسانو ته له مرګ نه وروسته هم اجر او ثواب ورکول کیږي .

( اول ) مرابط فی سبیل الله ( دوهم ) څوک چې ديو نیک کار بنسټ کیږدي . بیاله هغه نه وروسته چې هر څوک هغه کار کوي هغه ته يې اجر ورکول کیږي.

( دريم ) بل هغه سړی چې صدقه وکړي ترڅو چې يې هغه صدقه باقي وي ده ته به يې اجر رسيږي .( څلورم ) هغه سړی چې نیک اولاد تری پاتې شي او هغه ورته دعاګانې کوي .

عباده ابن الصامت ویلي دي . چې دهرسړي عمل دهغه په اخري سلګۍ پای ته رسيږي . او دروح له وتلو نه مخکې خپله مرتبه او ځای ګوري مګر مرابط فی سبیل الله داسې ندی . ځکه ترڅو پورې چې په هغه ځای کې رباط اوپيره وي . ترهغه مرابط ته اجر ور رسیږي . مرابط فی سبیل الله خپل ځای او مرتبه دځنکدن په وخت نهویني ځکه دهغه دژوندون په ختمیدو دهغه عمل نه ختمیږي بلکې دهغه اجر ترقیامته پورې زیاتیږي او څو چینده کیږي نو ځکه دهغه داجر او مرتبې پته پرته له الله تعالی بل چاته نشته . مرابط فی سبیل الله دمړینې په وخت دزيري او خوشالۍ شيان ګوري خپله مرتبه ګوري چې دقیامت ترورځې پورې په اوچتیدو روانه وي . مرابط چې درباط په حالت کې مړشي نو الله جل جلاله به يې دقیامت په ورځ پداسې حال کې راپاڅوي چې دفزع اکبر ( لویې وارخطايي ) نه به په امن وي .

(( روی ابن ملجة عن ابي هريره رضی الله عنه عن رسول الله صلی الله علیه وسلم من مات مرابطا فی سبیل الله . الخ . ))

ابن ماجه له ابو هریره رضی الله عنه نه روایت کړې دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي څوک چې دالله جل جلاله په لاره کې درباط په حالت کې

مړشو . هغه ته دنیک عمل هغه ثواب جاري کیږي چې ده کاو . او رزق هم ورته جاري کولې شي دقبر له فتنې ( عذاب ) نه به په امن وي . او دقیامت په ورځ به یې الله جل جلاله داسې راپاڅوي چې دفزع اکبر ( لوی یې وارخطایې ) نه به محفوظ اوپه امن وي .

پنځم : مرابط چې په رباط کې مړشي الله جل جلاله به یې دشهیدانو په ډولې کې راپاڅوي . .

(( روی ابن ماجة وعبدالرزاق عن ابي هریره رضی الله عنه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال من مات مرابط مات شهیدا .)) الخ .

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: څوک چې درباط په حالت کې مړشو هغه دشهادت مرتبه ترلاسه کړه . دقبر له فتنو څخه به ساتل کیږي . سهار او بېګاه به له جنت نه رزق ورکول کیږي او عملنا مه به یې جاري وي .

الله جل جلاله هغه مرابط چې درباط په حال کې مړشوې وي څکه شهید پاڅوي چې ده دشهادت غوښتنه کړې وه او په رښتونې زړه سره یې دې ته مخه کړې وه لیکن ده ته په تقدیر کې دانه ولیکل شوي چې دابه په دنیاکې دشهادت مرتبه ترلاسه کوي . له نیکو بندګانو سره دالله جل جلاله همداکړنلاره ده چې څوک کومې یوې نیکي ته په رښتینې زړه سره قصد وکړي زیات شوق او نه ماتیدونکي اراده ولري خو الهی تقدیر یې ترمخې خنډ او حائل وګرځي نودقیامت په ورځ الله جل جلاله ددی عمل ثواب به په خپل فضل او کرم سره ورکوي . څکه چې نیت کې یې اخلاص ، اوپخپل قصد کې رښتینې و له همدې کبله څوک چې دجهاد لپاره ووځي اولاره کې ورته مرګ راشي نو هغه شهید حسابیږي . او څوک چې دحج احرام وتړي خو دحج دمناسکو له اداء کولو نه مخکې مخکې مړشي . دالله په نزد حاجي لیکل کیږي ، څوک چې دتهجد لمانځه داداء کولو لپاره دشپې دویښیدو اراده وکړي خو راویښ نه شي خوب ورباندې غلبه وکړي نو ده ته دتهجد ثواب ورکول کیږي او خوب په ده باندې دالله جل جلاله له طرف نه صدقه ګرځي . څوک چې په جماعت سره دلمانځه

داداکولو لپاره مسجد ته روان شي چې کله هلته ورسيږي نو ګوري چې خلکو لمونځ کړې . الله جل جلاله دته په جمع سره دلمانځه داداء کوونکي پشان ثواب ورکوي .

مرابط هم همداشان دی ځکه ده رباط ددی لپاره کاو . چې شهادت يې په نصيب شي . خپل ځان يې ديته وړاندې کړې و . دشهادت حرص ورسره و . خپل ځان يې ددې لپاره دالله په لارکې خرچ کړی و . لاکن په ميدان کې شهيد نه شو نو دا څه عجيبه خبره نه ده چې الله دی دشهيدانو په ټولی کې پاځوي او دشهيدانو هومره اجر ورکړي .

شپږم . مرابط فی سبيل الله ته دهغو مسلمانانو هومره اجر ورکول کيږي چې داسلامي سرحدراديخواوي او دی يې ساتنه کوي .

(( روی الطبراني عن انس بن مالك رضی الله عنه قال سئل رسول الله صلی الله عليه وسلم عن اجر الرباط .))

طبراني له انس بن مالک رضی الله عنه نه روايت کړی دی هغه وايي چې له رسول الله صلی الله عليه وسلم نه درباط داجر په متعلق پوښتنه وشوه ؟ نو رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وويل :

چاچې يوه شپه دوروستنيو مسلمانانو پيره او څوکيداري وکړه . نوله ده نه وروستنه چې څومره روژه دار او لمونځ ګذار راځي دهغو هومره اجر به ده ته هم ورکول کيږي .

ابراهيم يماني ويلي دي . چې کله زه له يمن نه راغلم نو سفيان الثوري ته ورغلم او ترينه مې وپوښتل . ماپه زړه کې داسنجولې وه چې زه به په " جده " کې کوزيږم . ټول کال به هلته څوکيداري کوم . په هره مياشت کې به عمره کوم . اوپه هرکال کې به حج کوم . او خپل کورته به هم نږدې وم . نو ايا داماته غوزه دې اوکه زه شام ته لاړشم .؟

ماته يې په خواب کې وويل : ای يمني ورورہ! پخپل ځان باندې دشام ساحلونو ته تلل لازم وګرځوه . هرو مرو شام ته لاړشه . ځکه دبيت الله شريف حج لپاره هر کال په لکونو خلک راځي . تاته به دهغو ټولو دحجونو عمرو . او مناسکو هومره اجر درکول کيږي

عثمان بن ابې سودة . وايي چې مونږ له ابي هريره ﷺ سره ددرياب په ساحل کې
( يافا ) نومې ځاى کې پېره کوله اوداپه فلسطين کې مشهور ښار دى.
ابو هريره ﷺ وفرمايل دلته ددغې شپې پيره ماته په بيت المقدس کې د ليلة القدر
شپې نه هم زيات خوښ دى .
اووم : دالله په لاره کې دسرحدونو ديوې ورځې پيره دهغو زرو ورځو پيرې نه غوره
ده چې په نورو ځايونوکې ترسره کړې شي .

(( روى الترمذي والنسائي وابن ابي شيبة عن عثمان بن عفان ﷺ ان رسول الله ﷺ قال : (( رباطُ يومٍ في سبيل الله خيرٌ من اليوم فيما سواه من المنازل .)) [1]

ترمذي ، نسائي او ابن ابي شيبه له عثمان بن عفان ﷺ څخه روايت کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي : دالله په لاره کى د سرحدونو پيره کول د هغو زرو ورځوله پيرې نه غوره دى چې په نورو ځايونوکې تر سره کړې شي .

په دى حديث کې پدې خبره ښکاره دليل موجود دى چې دحفاظت په مقصد په سرحدونو کې يوه ورځ پيره کول په نورو ځايونو کې دزرو ورځو له پيره داري نه زيات ثواب لري اګر چې هغه مکه ، مدينه يابيت المقدس هم وي . همداوجه ده چې له مکې او مدينې نه اصحاب کرام او تابعين دجهاد لپاره وتلي دي اودلته اوسيدل اودحرمينو شريفينو ګاونډيتوب يې پرېښي دي . دشام دسواحلو په طرف ورغلې دى او هلته ټول عمر يې دسرحدونو په حفاظت کې تير کړيدى. آن چې همغلته وفات ياشهيدان شويدي .کله چې حارث بن هشام ﷺ ( دادابو جهل ورور او دفتح مکې په ورځ يې ايمان راوړې و ) له مکې نه دجهاد لپاره دشام په لورې وخوځيد او دمکې

---

[1] ـسنن الترمذي: ۳/ ۱۰۸ وسنن النسائي: ۶/ ۴۰ ومصنف ابن ابي شيبه ۵/ ۲۲۸، والحديث حسن.

آخري سرته ورسید نو لـه خلکونه دخدای په آماني داخستلو لپاره ودرید او هغوی ته یې وویـل : ای خلکو! زه لـه تاسونه دډېر کولویاستاسې په ښار باندی بل ښار ته دترجیح ورکولوپه خاطر نه ځم . له مونږ نه مخکی هم خلک دجهاد لپاره وتلې دي او الله تعـالې پـدې سـره اسـلام راوستې دی ، پـدې کـې ډیـر خـلک داخـل شـویدي، هجرتونه یې کړې اولـه رسول الله ﷺ سره یوځای جهادونه یې کړیدي په الله قسم که چېرته دمکې غـرونه دسرو زرو وای او مونږ ټغه ټول دالله په لاره کې خرچ کړې وایي نو بیا هم مونږ به دهغوی دیوې ورځې ثواب نه و ترلاسه کړې .

په الله قسم چی هغوی لـه مونږ نـه مخکې لاړل کـه مونږ پـه دنیـا کـې لـه هغوی نه وروسته پاتې شوو نومونږ ته کوشش پکار دی چی په آخرت کې له هغوی سره په اجر کې شریک شوو او زمونږ لپاره له جهاد او رباط او الله جل جلاله ته له ځان سپارلو عـلاوه بـل څـه نشته حارث شام تـه ولاړ او همغلته یې جهاد او داسلامي سرحدونو پیره کوله آن چی همغلته شهید اولـه الله سره ملاقي شو.

امـام ابـن تیمیـه رحمـه الله پـدې خبره دعـلماو اجمـاع نقـل کړیـده چی دسـرحدونو حفاظت کول په مکه ، مدینه اوبیت المقدس کې له اوسیدونه زیات بهتر دی .

لـه امـام احمـد بـن حنبـل نـه پوښتـنه وشوه چی تاسې پـه مکـه مدینـه کـې اوسیدل خوښوئ اوکه دسرحدونو حفاظت کول ؟ هغه ﷺ وویل : دسرحدونوحفاظت.

همدغـه رازامـام احمـد بـن حنبـل داهـم ویلي دي چی زمـا پـه نزد هیڅ یو صالح عمل دجهاد اودسرحدونو دحفاظت اوپیره داري سره برابر نه دی .

یو سړي لـه امـام مـالک رحمـه الله نـه پوښتـنه وکړه چی تاسې په مدینه منوره کې زمااوسیدل خوښوئ اوکـه پـه اسکندریه کې ؟ هغه رحمه الله وویل په اسکندریه کې دسرحدونو حفاظت اوکړه. .

کـوم مجاهد چی په سرحدونو کې دمسلمانانو دحفاظت په خاطر یوه ورځ تیروي نو دهغـه دایـوه ورځ دنوروځـایونو لـه زرو ورځونـه بهـتره ده . همدغـه راز داسـلامي سرحدونو دساتندوی هریو عبادت دنورو ځایونو لـه عبادت نـه زر کرته افضل دی ځکـه چی دساتونکې هره ورځ لـه هغـو زرو ورځـو نـه بهتره ده چی په هغه کې پیره نه

وي نو ځکه دمحافظ لمونځ دنورو له لمونځونو نه زیات دی . همدغه راز دهغه روژه ، ذکر ، نفقه ، دقران تلاوت او نور عملونه دي چې ترسره کوي یې .

(( قال معاذ بن جبل ﷺ : کل حسنةٍ من حسنات المرابط تعدلُ جمیع حسنات العابدین . وان الله لیختار خیارامة محمد ﷺ للرباط کما یختار شرار امة محمد ﷺ للسلطان !

معاذ بن جبل ﷺ فرمایي چې دسرحد دمحافظ هر یو نیک عمل دعابدانو له تولونکو اعمالوسره برابر دی .او الله تعالی دمحمد ﷺ له امت نه غوره سړي دسرحدونو دحفاظت او پیرې لپاره منتخب کوي لکه چې دمحمد ﷺ شریر امت دپاچاهی لپاره منتخبوي . په شام کې دسرحدونو یو محافظ وصیت وکړ چې سل دیناره دی دالله په لاره کې ورکړی له عثمان ﷺ نه یې پوښتنه وکړه چې داچېرته مصرف کړي ؟

عثمان ﷺ ورته وویل چېرته اوسیږي ؟ هغه وویل په شام کې .

عثمان ﷺ ورته وویل داپخپل ځان . خپل اهل وعیال پخپل ګاونډي اوستا شاوخوا چې کوم محتاج وي پرهغوی مصرف کړئ .ځکه چې کله دشام اوسیدونکې په یودرهم دخپل عیال لپاره غوښه آخلي نو هغه ته به یوپه اووه سوه ثواب رسیږي .

دشام زمکه دسرحدونو زمکه ده اودهغه ځای سرحدونه چې ساحل ته نژدی پراته دي غوره دي اوپه هغه کې پیره کول ډیر لوی اجر اوثواب لري .محمد بن کعب په عسقلان کې دسرحدونو محافظ و . هغه به ویل چې په عسقلان کې خوراک څښاک اونکاح کول د نورو ځایونو له خوراک څښاک او نکاح نه افضل دی . هغه سیمې چې هلته دسرحدونو حفاظت کول دسرحدونو داهمیت له کبله زیات غوره دي هغه اسکندریه ، دمیاط ، عکا ، صیدا بیروت ، طرابلس ، طرسوس انطاکیه ، قزوین اندلس اونور ځایونه دي .

# فصل

# د رباط معنی او وخت يې

د الله دلارې مرابط( پيره دار ) په ټولو خلکو کې غوره او جهاد رباط او( پيره داري ) له غوره اعمالو څخه دی .

(( روی مسلم عن ابی هريرة ﷺ ان رسول الله ﷺ قال : ((من خيرِ معاش الناسِ لهم: رجُلٌ ممسكٌ بعَنانِ فرسه فی سبيل الله، يطيرُ على متنه ، كلَّمَا سمع هيعـة او فزعة طار على متنه ، يبتغی القتلَ او الموتَ مظانَّه ... ورجل فی غُنَيْمَةٍ فی شَعَفَةٍ مِنْ هذه الشَّعَفَ،او بطن وادٍ من هذهِ الاودية يقيم الصَّلاة ويوتی الزكاة ،ويعبدُ ربه، حتى ياتيه اليقين ، ليس من الناس الا في خير)) .[1]

والمعاش هو العيشُ والحيا ة.

قال النووي في شرح الحديث:معنى :"من خير معاش الناس "من خير احوال عيش الناس .[2] ))

مسلم له ابی هريره ﷺ نه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل :

له ټولو خلکو نه د هغه سړي ژوند ښه دی چې د الله په لاره کې يې اس تيار ودرولې وي او کله چې دد ښمن له خوانه د خطر څه خبر اوري نو فوراً د حملې لپاره اوځي دد ښمن د وژلو اويا دخپل ځان دشهيدولو لپاره کوشش کوي. بل دهغه سړي ژوند ښه دی چې چيرته دغره په سر کې لـه ګډو وزو سره اوسي يا ددغو درو په يوه دره کې

---

[1] ـ اخرجه مسلم ـ رقم ۱۸۸۹

[2] ـ شرح النووي على صحيح مسلم ۱۳/ ۳۵.

پروت وي. لمونځونه کوي ، دخپل مال زکات ورکوي او ترمرګه پورې دخپل رب په عبادت کې لګیاوي اوله خلکو سره یې اړیکې دخیر او ښیګڼې وي .

ابن المبارک له عبدالله بن الحارث څخه روایت کوي چې هغه ویلي دي :

هغه سړي ته خوشالي ده چې دالله په لاره کې دسهار په وخت پخپل اس باندې جهاد ته اوځي او ماښام خپله روژه د ډوډۍ په یوټکړه اوپه یخو اوبو سره ماتوي .

(( وقال ابوهريرة ﷺ رباط ليلةٍ الى جانب البحر ، من وراء عورةِ المسلمين احبُّ اليَّ من اَنْ اوافق ليلة القدر فى احد المسجدين المسجد الحرام او مسجد رسول الله.ورباط ثلاثة ايام علل السنة وتمام الرباط اربعون ليلة [1].))

ابوهريره ﷺ فرمایلی دي چې د دریاب په غاړه کې د مسلمانانو دښځو دحفاظت لپاره یوه شپه پیره کول زمانږ[1] ه لدینه بهتر دی چی په مسجد حرام یاپه مسجد نبوي کې د لیلة القدر شپه وموم. او درې ورځې پیره له یو کال سره برابره ده پوره پیره داري څلوېښت ورځې ده.

عطا رحمه الله علیه ویلي دي چې دپیرې ټول وخت څلوېښت ورځې دی.

(( وقال يزيد بن ابى حبيب: جاء رجلٌ من الانصار الى عمر بن الخطاب ﷺ فقال له اين كنت؟

قال : فى الرباط !

قال : كم رابطتَّ؟

قال : ثلاثين يوما .

قال :فهلاَّ اتممتها اربعين يوماً [1]))

---

[1]ـ مد ت عبدالرزاق : ٥/ ٢٨١

يزيد بن ابى حبيب وايي چې لـه انصارو نه يوسړی عمر بن الخاطب ﷺ خواته راغې عمر ﷺ ورتـه وويـل تـه چيرې وې؟ هغـه وويـل دسرحدونو پيره مې كوله. هغه ﷺ ورته وويل : څو ورځې دې پيره وكړه ؟ هغـه وويـل ديرش ورځې. عمر ﷺ ورته وفرمايل : ولې دې څلوېښت ورځې نه پوره كولې.[1]

دعبدالله بن عمر يو زوې دېرش ورځې پيره وكړه كله چې واپس راغې نو پلاريې ورته وويـل: ز ه تاتـه قسـم دركـوم چې تاسې بيرته لاړشئ اولس ورځې نوره پيره وكړئ ترڅو څلويښت ورځې پوره شي.[2]

چاچې درې ورځې دسرحد پيره وكړه الله تعالى هغه ته لوى ثواب وركوي.

(( قال ابوهريرة ﷺ:اذا رابطت ثلاثة ايامٍ فَلْيَتعَبَّد المتعبدُوْنَ ماشاؤا .)) [3]

ابوهريره ﷺ فرمايلى دي: چې كله ته درې ورځې پيره وكړې نو عبادت كوونكې چې څومره عبادت كولې شي ودې كړي مگر بياهم په اجر كې لـه تاسره نه شي برابرېدلې.

ام الدرداء.

(( وقـالت ام درداء رضى الله عنها : من رابط فى شيءٍ من سواحل المسلمين ثلاثة ايام اجزأت عنه رباط سنة .[4] ))

ام درداء رضـى الله عـنها ويـلي دي: چـاچې دمسـلمانانو دسـاحلونو درې ورځې پيـره وكړه هغه ته ديوكال دپيرې ثواب وركول كېږي.

مطلوب رباط ديته ويلى شي چې يوسړې دسرحد يا محاذ باندې دجهاد يا دفاع په نيت يـاد اسلامي لښكـر دشمير زيـاتولو لپـاره پيره وكړي. داسې سرحد چې هلتـه ددښمـن دحملو امكانـات وي. څكه چې په كوم يوځاې كې ددښمن ويره او خطره زياته

---

[1] ــ مصنف عبدالرزاق : ٥/ ٨٠

[2] ــ المصنف لابن ابي شيبة : ٥/ ٣٢٨

[3] ــ المرجع السابق : ٥/ ٣٢٧

[4] ــ مسند احمد : ٦/ ٣٦٢ ومجمع الزوائد : ٥/ ٢٨٩

وي هلته دپيرې كولو اجر هم زيات وي. برابره خبره ده كه هغه ساحل دبحر وي يابل ځاى.

امام مالک رحمه الله عليه دجدې دښار رباط ته ضعيف ويلي دي ځکه چې په دې باندې دښمنانو صرف يوځل يرغل کړېدی.

له مالک رحمه الله نه دهغو خلكو په اړه تپوس وشو چې په سرحدونو كې له خپل اهل او عيال سره اوسېږي؟ هغه رحمه الله ځواب ورکړ هغوى مرابط ( پيره ) کوونکې نه دي. بلكې رباط هغه څه ته وېل كېږي چې له خپل كورنه دسرحدونو دحفاظت په مقصد وتلې وي او هلته ددښمن ديرغل ويره وي.

خوصحيح خبره داده چې كوم خلک په سرحدونو كې اوسېږي او هغوى هلته دجهاد توقع ياد سرحدونو دساتلو جذبه په زړه كې لري اود تكليف په وخت كې له هغه ځاى نه نه ځي نودا خلک په مرابطينو ( پيره دارانو كې ) شمارل كېږي او درباط اجر ورته وركولې شي اګركه دهغه اهل او عيال هم ورسره وي.

ځكه چې اصحاب كرام اوتابعين همېشه په سرحدونو كې له خپلو ماشومانو سره يوځاى دسرحدونو د حفاظت په نيت اوسېدلي دي.

كيدى شي مالک رحمه الله عليه داخبره دهغو خلكو په باره كې كړې وي چې همعلته په سرحدونو كې زېږيدلې او لوى شويدي او همغلته اوسېږي دهغوى په زړونو كې دپيرې نيت نه وي او صرف دخپلو كورنيو ياله هغه ځاى سره دمينې په وجه اوسيږي . كوم سړى چې په سرحد كې يواځې په دې خاطر اوسېږي چې هلته دكور مشران يې اوسېږي هلته نوكري او كار بار يې وي نو هغه مرابط نه دى او نه ورته درباط ثواب وركول كيږي زياتره وخت داسې خلكو ته په هغه وخت كې درباط اجر وركول كيږي چې نيت يې دجهاد وي او هغه په زړه كې عزم لري چې كله دښمن حمله وكړي له هغه سره به جنګيږي.

امام مالک رحمه الله فرمايي كه څوک له خپل اهل او عيال سره د سرحدونو دحفاظت لپاره لاړشي نو څه باک پكې نشته .

« وعلق سحنون على ذلك بان يخرج باهله الى المواضع المامونة كثيرة الاهل كالاسكندرية وتونس »

يعني سحنون دامام مالک له دی قول سره داقید لګولی دی چې خپل اهل وعيال داسې ځايونوته بوځي چې هلته سوله او امن وي او هستيدونکي ډير ولري لکه اسکندريه او تونس.

او امام احمد بن حنبل رحمه الله به سرحدونو ته له اهل وعيال سره له ورتګ نه منع کاو.

دامام احمدبن حنبل رحمه الله دانهي دهغو سرحدونو په باره کې دی چې هلته امن او امان نه وي. ګويا هغه خپل اولاد او عيال مشرکانو ته دی لپاره وړي چې ياېې ووژني اوياېې بنديان کړي.



# اوه لسم بـاب

# د مجاهدينو د پيرې كولو فضائل

د الله تعالى فرمان دی: ﴿ وَلْيَأْخُذُوا خذرهم أَسْلِحَتَهُمْ ﴾ [ النساء : ۱۰۲ ]

او دوی دی ونيسي احتياط او وسله خپل.

دالله تعالى ارشاد دی:

﴿ وَلَا يَطَئُونَ مَوْطِئًا يَغِيظُ الْكُفَّارَ وَلَا يَنَالُونَ مِنْ عَدُوٍّ نَيْلًا إِلَّا كُتِبَ لَهُمْ بِهِ عَمَلٌ صَالِحٌ إِنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ ﴾[التوبة۱۲۰]

ترجمه: اونـه پائمال كوي دوی څه ځای چې كافران پری خفه كېږي يا له دښمن نه بدل واخلي نـو پـه دې هـريو كـار بـاندې د دوی يـو نيكـي ليكـلې شـي. واقعـي الله تعـالى دنيكانو اجر نه ضائع كوي.

(( روى البخاري عـن ابى هريرة ﷺ عن النبى ﷺ قال: " تعسَ عبدُ الدينا ر وعبدُ الدِرهـم ، وعبدُ الخميصة، إنْ أُعطِيَ رضى و ان لم يُعْطَ سخطَ تعسَ وانـتكَسَ ، واذا شيك فلا انتقش ، طوبى لعبدٍ آخذ بعنا نِ فرسه فى سبيل الله اشعثٌ راسهُ ، مغبَّرةٍ قد ماهُ ، ان كان فى الحراسةِ كان فى الحراسة ، وإنْ كان فى الساقة كان فى الساقة ، ان استأذَنَ لم يُؤذنْ لـه وان شَفَعَ لم يُشفَّعَ.[1] ))

بخاري له ابى هريره رضى‌الله عنه روايت كړيدې چې نبى كريم ﷺ وفرمايل: هلاک دی شي د دينار او درهم بنده، هلاک دی شي د ګل دار څادر حريص. كه هغه ته څه وركړی شي نـو خوشاله وي اوكـه ورنكـړی شي نـو خفـه وي هغـه دی سر پـه تـالاق

[1]ــ اخرجه البخاري برقم : ۲۸۸۷

وغورځیږي ( یعنی تباه دی شي ) ا. چی کله په پښو کې اغزي لاړشي نوهغه دی راونه ووځي . او هغه بنده لپاره دجنت زیری دی چې دالله په لاره کې یې داس جلب نیولې وي. دهغه دسر ویښتان ګډوډ اوپښې یې لـه دوړونه ډکې وي. که هغه د حفاظت په ټولی او ګروپ کې واخستلې شي نو په هغه کې وي اوکه د لښکر په آخره کې واخستلې شي نوډلښکر په اخره کې وي ( یعنی هغه دجهاد په هر میدان کې وظیفه په ښه توګه سرته رسوي ).اوکه اجازه وغواړي نو اجازه ورته ورنکړی شي اوکه هغه سفارښت وکړي نو سفارښت یې قبول نکړی شي. ( یعنی په ښکاره ورته څوک اهمیت نه ورکوي خوله الله تعالی سره دهغه مرتبه ډېره اوچته ده.

عبدالله بن عمر رضی الله عنهما فرمایلی دي:

(( لان ابیت حارساً خائفًا فی سبیل اللهِ عزَّوجل احبُّ الی من ان أتصدق بمائة راحلة .[1]))

که چیرته زه دالله په لاره کې دویرې په حالت کې پیره وکړم نو داماته دسلو سورلو له صدقه کولو نه غوره ده.

یوه شپه دالله په لاره کې پیره کول الله تعالی ته دنږدې کېدو لویه ذریعه او اوچت عبادت دی. اوداد رباط بهترینه نوعه ده .

ځکه دهر هغه ځای ساتونکي ته چې هلته مسلمانان ددښمن لـه حملې نه ویرېږي مرابط وېل کېږي .

دپیره کوونکو لپاره زیات فضیلتونه دي چې یو څو یې په لاندې ډول دي .

لومړی :هغه سترګې چې دپیرې لپاره ویښې شوي وي هغه د جهنم اور نه سوځوي.

---

[1]ــ کتاب الجهاد لابن مبارك

(( روى الترمذى عن عبدالله بن عباس رضى‌الله عنهما قال: سمعت رسول الله ﷺ يقول: "عَيْنَانِ لا تمسهُما النار،عينٌ بكت مِنْ خشيةِ الله،وعَيْنٌ باتتْ تحرس فى سبيل الله ".[1]))

ترمذى لـه عبدالله بن عباس رضى‌الله عنهما نه روايت کړېدې هغه وايي چې ماله رسول الله ﷺ نه اورېدلي دي چې فرمايل يي:

دوه سترګې داسې دي چې اور يې نه سوځوي، يوهغه سترګه چې دالله تعالى لـه وېرې نه ژړلې وي ، بله هغه سترګه چې دالله په لاره کې دسرحدونو دپيرې لپاره دشپې ويښه پاتې شوې وي.

(( وروى النسائى واحمد والحاكم : عن ابى ريحانة الازدى رضى‌الله عنه قل: كـنّا مـع رسـول الله ﷺ فى غزوةٍ، فأتيناذات يومٍ على شرفٍ فبتناعليه ، فأصابنا بـردٌ شـديدٌ ، حـتى رأيـت من يحفر فى الأرض حفرةً يدخل فيها ، ويلقي عليه الحجفة _ يعنى التُّرس_

فـلما رأى رسـول الله ﷺ ذلك من الناس قال: من يحرسُنا الليلة ؟ وادعوا له بدعاءٍ يكون فيه فضل.

فقال رجلٌ من الأنصار: أنايا رسول الله !

قال : ادنُ .

فدنا. فقال : من أنت؟

فتسمّى لـه الانصاري . ففتح رسول الله ﷺ بالدعاء فأكثرمنه .

---

[1]ـ سنن الترمذي ۳/ ۹۶ والحديث صحيح .

قل أبوريحانة: فلما سمعت ما دعا به رسول الله ﷺ قلت: أنا رجل آخر.

قال: أُدْنُ. فدنوتُ.

فقال : من أنت ؟

قلت: أبو ريحانة ، فدعا لي بدعاء هو دون مادعا للأنصاري.

ثم قال: حُرِّمتِ النارُ على عين دمعت اوبكت من خشية الله، وحرِّمت النار على عين سهرت فى سبيل الله )).[1]

نسائی ، احمد او حاکم لـه ابی ریحانه الازدی ﷺ څخه روایت کړیدی هغه وایي چې موږ لـه رسول الله ﷺ سره په یوه غزا کې وو.

یوه شپه موږ په یو اوچت ځای باندې دشپې تېرولو لپاره راغلو ، هلته زموږ ډېره یخني وشوه. ان تردی پورې ماولیدل چې څه خلکو په زمکه کې کندې وکنستلې اوپه کې ننوتل او خپل ډالونه یې دکندو مخې ته کینښودل. کله چې نبی کریم ﷺ د خلکو دا حالت ولید نو وی فرمایل : چې نن شپه به زموږ پېره څوک وکړي زه به هغه لپاره داسې دعاوکړم چې په هغې کې خصوصي فضیلت وي .

لـه انصارو نـه یوسړي وویل : ای دالله رسوله! زه بـه پیره وکړم. رسول الله ﷺ ورتـه وفرمایل : نژدې راشـه هغـه ورتـه نژدی شو. رسول الله ﷺ تربنه پوښتنه وکړه ته څوک یې ؟ هغه خپل نوم ورته وښوده رسول الله ﷺ دهغه لپاره ډېرې دعاګانې وکړې. حضرت ابوریحانـه وایي چې کله مادرسول الله ﷺ دعاګانې واورېدلې نو مارسول الله ﷺ ته عرض وکړ چې زه هغه دویم کس یم چې پیره به کوم، رسول الله ﷺ وفرمایل : نژدې راشـه زه ورتـه نژدې ورغلم. هغـه ﷺ رانـه پوښتنه وکړه چې تـه څـوک یې؟ مـا وویـل ابوریحانه. رسول الله صلی علیه وسلم دلومړي انصاري په نسبت مالپاره لږه دعاوکړه.

[1] _ سنن النسائي : ٦/ ١٥ ومسند احمد : ٤/ ١٣٤ _ ١٣٥ ومستدرك الحاكم ٢/ ٨٣ والحديث رجاله ثقات .

بیارسول الله ﷺ وفرمایل : دجهنم اور په هغه سترگه حرام کړې شو چې دالله له وېرې نه وژاړي اوپه هغه سترگه هم دجهنم اور حرام کړی شو چې دالله په لاره کې دپېرې لپاره ویښه پاتې شي .

دویم : رسول الله ﷺ گواهي کړیدی چې کوم سړي دالله په لاره کې پیره وکړي هغه جنتي دی.

(( روى أبـو داود وأبـو عوانـة والـبيهقي والحـاكم: عـن سهل ابن الحنظلية رضىالله عنه أنهم ساروا مع رسول الله ﷺ يوم حنين ، فأطنبوا السير، حتى كان عشية ، فحضرت صلاةً عند رسول الله . ﷺ

فجـاء رجـلٌ فـارسٌ ، فقـال: يارسـول الله : أنـى انطـلقت بين أيديكم حتى طـلعت جبل كذا وكذا، فإذا أنا بهوازن على بكرة أبيهم ، بظُعُنِهِمْ ، ونَعمَهِمْ ، وشـائهم ، اجـتمعوا إلى حـنين! فتبسـم رسـول الله ﷺ وقـا ل : تـلك غنيمةُ المسلمين غداً، إن شاء الله.

ثم قا ل : من يحرسُنا الليلة ؟

قا ل أنس بن ابى مرثد الغنوي: أنا يارسول الله.

قـا ل له : اركَبْ . فركب فرسًا له. وجاء إلى رسول الله ﷺ فقال لـه رسول الله ﷺ : استقبل هذا الشّعب ، حتى تكون فى اعلاه ، ولا نُغَرَّنَّ من قبلِك الليلة!

فـلما اصبحنا، خـرج رسولُ الله ﷺ إلى مصلاه ، فركع ركعتين ، ثم قل : هل احسستم فارسكم؟

قـالوا: يـا رسـول الله : مـا أحْسَنْـنا هُ! فـثوّبَ بالصلاة ، فجعل رسول الله ﷺ يصـلي ، وهـو يلتفتُ إلى الشعب ، حتى إذا قضى صلاته وسلم قا ل: أبشروا، فقد جا ء فارسُكم.

فجعلـنا نـنظرُ إليـه خلال الشَّجر فى الشعب ، فإذا هو قد جاء ، حتى وقف على رسول الله ﷺ .

فقـا ل: إنـى انطـلقْتُ حتى كنت فى أعلى هذا الشعب ، حيث أمرنى رسول الله ﷺ ، فلما اصبحت اطّلَعْتُ الشَّعْبَيْن كليهما . فنظرتُ فلم ارا احد ..

فقال لـه رسول الله ﷺ : هل نزلت الليلة ؟

قل : لا إلا مصلّياً اوقاضي حاجةٍ.

فقال رسول الله ﷺ : قد اوجَبْتَ ، فلا عليك أن لا تعمل بعدها . [1]))

حضرت سهل بن ابوحنظليه رضی‌الله عنه فرمايي چې د حنين دغزوې په ورځ اصحابو كرامو لـه نبى كريم ﷺ سره او. ږد مزل وكړ تردې چې شپه شوه كله چې دلمونځ وخت راغې نو پر آس يوسپور سړى راغې اوويې ويل :

اى دالله رسوله ! زه لـه تاسو نـه مخكې لاړم اود فلاني فلاني غرونو معاينه مې وكړه دهوازن دقبيلې ټـول خلک د خپلو ښځـو، څارويو او كـنډكونو سره پـه حنين كې راغونـډ شويدي. رسـول الله ﷺ چې دهغـه داخبرې واورېدلـې نوپـه مسكاشـو او وى فرمايل: انشـاء الله تعـالى سباته بـه داټول مـال عيـال دمسلمانانو پـه لاسو كې غنيمت شي. بيارسول الله صلى الله عـليه وسلم وفـرمايل : نن شپه به څوک زموږ پيره وكړي،

---

[1]ــ سنن ابي داود : ٣/ ٢٠ــ ٢١ ومسند ابي عوانة : ٥/ ٨ والسنن البكرى للبيهقي ٩/ ٤٩ اسنا ده على شرط الصحيح .

حضرت انس بن ابی مرثد غنوي رضی‌الله عنه عرض وکړ چې ای د الله رسوله ! زه به ستاسې پېره وکړم. رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : سور شه هغه ؓ په اس سور شو اودرسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو. رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : ددووغرونو ترمینځ دلار په طرف لاړشه، ترڅوستاله طرف نه شپې په وخت پر موږ باندې دښمن حمله ونکړی شي. کله چې سهار شو نو رسول الله ﷺ دلمانځه ځای ته تشریف راوړ او دوه رکعته لمونځ یې اداکړ. بیایې پوښتنه وکړه چې ایاتاسې خپل سپور ( پیره کوونکې ) لېدلې دی؟ اصحابو کرامو عرض وکړ چې نه مو دی لیدلې. دلمونځ اقامت وویل شو او رسول الله ﷺ دلمونځ امامت وکړ. کله چې له لمونځ نه فارغ شو نو اصحابوته یې وفرمایل زیرې مې درباندی ستاسې پیره دار را روان دی. راوي وایي چې ددغې خبرې په آوریدلوسره موږ ټول دونو له منځ نه ددرې په طرف وکتل. ګورو چې حضرت انس بن مرثد ؓ راښکاره شو اودنبی کریم ﷺ په څنګ کې ودرید او عرض یې وکړ. ما ستاسې دحکم په مطابق دواړه درې وڅارلې بره سر ته ولاړم دسهار په وخت ماددرې جاج واخست خو څوک مې په کې ونه لید، رسول الله ﷺ ترینه پوښتنه وکړه چې ایا ته دشپې په وخت له اس لاندې راکوز شوې وې ؟ هغه وویل نه، زه دلمونځ او قضای حاجت نه علاوه له اس نه لاندې نه یم راکوزشوی رسول الله ﷺ وفرمایل: ستا لپاره جنت واجب شو اوس که له دې نه وروسته کوم عمل هم ونکړی نو ستا هیڅ نقصان نه کیږي.

دریم : دوېږې په ځای کې پېره کول دلیلة القدر نه غوره دی.

(( روی البیهقي والحاکم عن عبدالله بن عمر رضی‌الله عنهما: أنَّ النبی ﷺ قال : ألا أُنبئکم بلیلةٍ افضلُ من لیلة القدر؟ حارسٌ حرس فی ارض خوف ، لعلَّهُ أنْ لا یرجع إلی أهله)) [1]

---

[1]ـ السنن الکبری للبیهقي : ۹: ۱۴۹ . والمستدرك للحاکم ۲/ ۸۰ ـ ۸۱ والحدیث صحیح . علی شرط البخاري .

له حضرت عبدالله بن عمر رضی‌الله عنهما نه روایت دی چې نبی کریم ﷺ وفرمایل :
ایازه تاسو ته دقدر له شپې نه زیاته غوره شپه ونه ښایم؟ هغه پیره کوونکې چې دخطرې په ځای کې پیره وکړه او امکان و چې هغه کورته بیرته واپس نه شي نو دهغه داشپه دقدر له شپې نه غوره ده.

څلورم : دپیره کوونکي سړي یوه شپه د زرو ورځو روژو اود شپولـه قیام نه افضله ده .

(( أخرج ابـن عساكر عن أرطاة بن المنذر: أنّ عمر بن الخطاب رضی‌الله عنه قل لجلسائه: أيُّ الناسِ اعظم اجراً ؟

فجعلوا يذكرون لـه الصوم والصلاة ، ويقولون: فلان ، وفلان ، بعد امير المؤمنين !

قل : ألا أُخبرُكم بأعظم الناس اجراً؟ ممن ذكرتم، ومن أمير المؤمنين؟

قالوا : بلى .

قا ل : رويجِلٌ بالشام ، آخِذٌ بلجام فرسه، يكلأ ويحرسُ من وراء

بيضةِ المسلمين ، لا يدرى: أسبُعٌ يفترسه ، أم هامةٌ تلدغه ؟ أم عدو يغشاه ؟

فهذا أعظم اجرا ممن ذكرتم ، ومن امير المؤمنين. !!...))

له ارطاة بن المنذر نه روایت دی چی عمر بن الخطاب ؓ خپلو ناستو ملګرو ته وویل : کوم خلک دلوی اجر خاوندان دي؟ هغوی دلمونځ او روژو یادونه وکړ او ویې ویل چې امیر المومنین لـه تولو نه دلوی اجر خاوند دی او بیاله هغه نه پس فلانکې فلانکي اشخاص دلوی اجرخاوندان دي. حضرت عمر ؓ ورته وفرمایل چې ما له تاسو نه داپوښتنه وکړه چې په خلکو کې داجر په لحاظ سره له هغو تولونه چې تاسو دهغوی یادونه وکړه او پخپله له امیر المومنین نه هم زیات کوم کس دی ؟ دایو ورکوټی شانته سړی دی چې دخپل اس جلب یې په لاس کې نیولې اوپه شام کې دمسلمانانو دسیمې پیره او ساتنه کوي . هغه ته دانه دی معلوم چې کوم ځناور به یې وداړي یاکوم زهرجن

شئ ځیزبه یې وچیچي اویا دښمن وربانديې یرغل وکړي . داسړې له هغو تولو خلکو نه چې تاسې دهغوی یادونه وکړه اوله امیرالمؤمنین نه زیات داجر او ثواب خاوند دی.

(( عـن جابـر بـن عبدالله رضی‌الله عنهما ، قا ل : ...نزّل رسول الله ﷺ منزلاً، فقا ل: من رجلٌ يكلؤْنا ليلتنا هذه؟

فانـتدبَ رجـلٌ من المهاجرين ورجلٌ من الأنصار. فقالا: نحنُ يارسول الله! قل: فكُونا بفم الشَّعْبِ. وكانوا نزلوا إلى شِعب من الوادي .

فـلماخرج الـرجلان إلى فـم الشـعب ، قـال الأنصاريُّ للمهاجري: أىُّ الليل احبُّ إليك ان اكفيك اوله او اخره ؟

قا ل أكفنى أوَّلَهُ .

فاضطجع المهاجرىُّ فنام ، وقام الأنصارىُّ يصلي..

وأتـى رجـل مـن المشركين.. فلما رأى شخص الرجلُ عرف أنه ربيئةُ القوم ، فـرما ه بسهم فوضعه فيه ، فانتزعه ، وثَبَتَ قائمًا ، ثم رما ه بسهم آخر، فوضعه فيـه ، فـنزعه ، وثـبت قائمًـا ، ثـم رما ه بثالث فوضعه فيه ، فنزعه ،فوضعه ثم ركـع، ثـم أيقـظَ صـاحبه ، قائلاً: اجلس ، فقد أُتيتُ. فلما رآهُما المشرك عرف أنهم قد نذروا به وعلموا ، فهرب .

فلما رأى المهاجرى ما بالأنصارىُّ من الدما ء ، قا ل : سبحا ن الله! ألا انبهْتَني أول مارماك ؟

قـال: كنتُ فى سورةٍ أقرؤها ، فلم أُحِبُّ أنْ أقطعها ، حتى أُنْفذها ، فلما تابعَ الـرمى ركعـتُ فلاذنـتك وأيمُ الله لولا أنى خشيتُ أن أضيعُ ثغراً أمرني رسول الله ﷺ بحفظهِ ، لقطع نفسي قبل أن اقطعها أو أُنفذَهَا... [۱] ))

لـه حضرت جابر بن عبدالله رضى‌الله عنه نه روايت دى هغه وايي چې رسول الله ﷺ په يوځاى كى پړاو واچولو او ويې فرمايل چې نن شپه به زموږ پيره څوک وكړي ؟ يوكس له مهاجرونه او يوكس لـه انصارو نـه خپـل ځانونه وړاندې كړل او ويې ويل : يارسول الله ﷺ ! مونږ به پيره وكړو ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :چې د درې په برنۍ برخه كې به پيره كوئ. څكه چې لښكر د درې په لاندې حصه كې پړاو آچولى دى. كله چې دغه دواړه دپيرې ځاى تـه ورسيدل نـو انصاري اصحابي خپـل مهاجر ورور تـه وويـل. تـه دشپې په كومـه حصـه كې پېره كـول خوښوې؟ مهاجر ورتـه وويـل دشپې آخري حصه خوښوم. مهاجر ډده واچولـه او ويده شو او انصاري دلمانځه لپاره ودريد. له مشركانو نـه يوسړى راغـې هغـه چې انصاري اصحابي يې وليـد نـو پـوه شو چې دا دلښكر دڅوكيداري لپـاره ودرول شـويدې. هغـه ورباندې دغشي يوګذار وكړ او هغـه ولګيد هغه فوراً دلمونځ پـه حـالت كې هغـه غشې لـه بدن نه لرې كړ او خپل لمونځ يې جاري وساته. بيا يې بل غشي ورباندې ګذار كړ نو هغه يې هم له خپل بدن نه وويست اوپه خپـل لمونځ باندې قـائم پـاتې شو. بياورپسي دريـم غشـې ويوست هغه يې هم لـه خپل بدن نـه ويويست او پخپل لمونځ كې ولاړ پاتې شو. بيايې ركوع وكړ لدينه وروسته يي خپل ملګري ته وويل كيښنه زه راغلى يم.

كله چې مشرک دويم كس وليد نو وتښتيد اودافكر يې وكړ چې ګني لښكر خبر شو. مهاجر صحابي چې انصاري اصحابي په وينو كې رنګ وليد نو ورته يې وويل تازه په لومړي غشي سره ولې ويښ نكړم؟ انصاري صحابي ورتـه وويل چې ماپه لمونځ كې دقرآن كريم يوسورت شروع كړى و مـا نـه غوښتل چې هغه رانه نيمګړې پاتې شي. خوچې كله پرلـه پسې غشي راباندې وويشتلې شو نو ماركوع وكړه او ته مې هم بيدار

---

[۱]ـ سنن ابي داود : ۱/ ۱۳٦ . والجهاد لابن المبارك : ۲/ ۱٦۸ـ ۱۷۰ واسناده حسن

کړي په الله قسم که چېرته د رسول الله ﷺ د حکم په تعمیل کې دلښکر د پېړې خیال مې نه وای نو مړشوې به وم ،نو سوره به مې په مینځ کې نه و پرېیښې.
او زما ساه به د سوره له ختمیدو نه وړاندې ختلې وای .



# اتلسم باب

# دالله په لاره کې دجهاد په وخت دوېرې فضيلت

(( عن عبدالله بن عمرو بن العاص رضی‌الله عنهما: قال : قال رسول الله ﷺ ((ما مِنْ غازيـةٍ أو سرية ، تغزوْ فی سبيل الله، فيسلمون ويصيبون ، إلاَّ تعجَّلوا ثلثَي اجرهم[1] )).

ومامن غازية او سرية تُخْفِقُ ، وتُخَوَّفُ وتصابُ ، اِلاَّ تمَّ لهم أجرهم ))

له حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل :

کومه غازيه اوسريه چې دالله تعالی په لاره کې دجهاد لپاره ووځي او روغ رمټ دغنيمت له مال سره واپس کورونو ته راشي نو هغوی به په دريوبرخو کې دوه برخې اجر په دنياکې ترلاسه کړي. اوکوم لښکر چې خالي لاس وېريدلې او زخمي واپس شي نو هغوی به خپل پوره اجر په اخرت کې ترلاسه کړي.

((عن ام مالك البهزيه رضی الله عنها،قالت: ذكر رسول الله ﷺ فتنةً فقرَّبها ...

فقلت : يا رسول الله : من خيرُ النَّاسِ فيها ؟

قال : "رجلٌ فی ماشيةٍ يؤدِّیْ حقها ، ويعبدُ ربه ، ورجلٌ اخذ ، برأس فرسه ، يخيفُ العدوَّ ويخيفونه." [1] ))

---

[1] ـ اخرجه مسلم برقم : ۱۹۰۶

لـه حضرت ام مـالک الـبهزیه رضی عـنها څخـه روایـت دی چې رسـول الله ﷺ دیوې دفتنې یادونه وکړه او ډېره نژدې یې وګڼله. ماعرض وکړ چې ای دالله رسوله! دفتنې په دغه وخت به کوم خلک ډېر افضل وي ؟ رسول الله ﷺ ارشاد وفرمايل : هغه سړی چې دخپلو ګډو وزو په رمه کې وي ، دهغې زکات ورکوي اودخپل رب عبادت کوي. اوبل هغه سړې چې دخپـل اس جلب یې نیولې وي اوهغـه دښمنان ویروي او دښمنان هغه ویروي.

(( و روی ابن ابی شیبه عن سلمان الفارسي رضی‌الله عنه: اذاکان الرجل فی سبیل الله ، فا رعدقلبه من الخوف ، تحتت خطایا ه کمَا یتحتُ عنقُ النحلة.))

ابـن ابی شـیبه له حضرت سلمان الفارسي رضی‌الله عنه نه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل : کله چې دالله په لاره کې د مسلمان زړه وویرېږي نودهغه ګناهونه داسې توېږي لکه دکجورې له وګي نه ـ. ـردي توېږي.



ـ[1] اخرجه الترمذي : ۳/ ۳۲۰ والحدیث حسن

# نورلسم باب

# په جهاد کې دصف د جوړولو اوپه هغه کې د ودرېدو فضيلت

قال الله تعالى: ﴿إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِهِ صَفًّا كَأَنَّهُم بُنيَانٌ مَّرْصُوصٌ﴾ (الصف٤).

بيشکه الله تعالى هغه خلک خوښوي چې دهغه په لاره کې دتړلي صف په شکل کې جنګ کوي لکه چې دوی کلک کړای شوي ديوال وي .

مجاهد رحمه الله عليه وايي چې دا آيت شريف د انصارو ديوې ډلې چې عبدالله بن رواحه رضى الله عنه په کې هم و په باره کې نازل شويدې. دغوحضراتو په يو محفل کې ويلي وو چې که چيرته موږ ته هغه عمل معلوم شي چې دالله تعالى ډير زيات خوښ دی نوموږ به ترمرګه پورې همغه عمل کوو. بياکله چې دا آيت شريف نازل شو چې الله تعالى ته له ټولو نه زيات محبوب عمل جهاد دی، نوحضرت عبدالله بن رواحه رضى الله عنه وفرمايل : اوس به زه د ژوند تر اخرې سلګۍ پورې جهاد کوم. هغه ﷺ همداسې وکړ او له کفارو سره دجهاد په حالت کې شهيدشو.

(( عن عبدالله بن سلام رضى الله عنه قال: قعدنا في نفرٍمنْ اصحب رسول الله ﷺ فقلنا: لَوْ نعلم اى الاعمال احبُّ الى الله عملناهُ فانزل قوله تعالى:

﴿ سَبَّحَ لِلَّهِ مَافِي السموات وَمَا فِي الْأَرْضِ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمْ٥ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفْعَلُونْ٥.كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللَّهِ أَنْ تَقُولُوا مَا لَا

تَفْعَلُونَ○. إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِهِ صَفًّا كَأَنَّهُمْ بُنيَانٌ مَرْصُوصٌ﴾ [الصف١-٤ ]فقرأها علينا رسول الله ﷺ.[1] ))

له حضرت عبدالله بن سلام رضى الله عنه نه روايت دې هغه وايي چې موږ درسول الله ﷺ څو تنه اصحاب يوځاى ناست وو. موږ پخپلو کې وويل که : دالله تعالى خوښ عمل موږ ته معلوم شي نوموږ به په هغه کې مشغول شو نو دا آيتونه نازل شول: داسمانونو او ځمکې ټولو څيزونو ديو الله پاکي بيان کړى ، او الله په هرڅه برلاسې او دحکمت څښتن دى . اى مومنانو! هغه څه ولې وايې چې نه يې کوئ دالله په وړاندى داډيره دقهر او کينې خبره ده چې : هغه څه ووايې چې کوئ يې نه . ځکه الله پاک يوازې هغه خلک خوښوي چې په ليار کې يې دټولي صف په شکل جنګ کوي لکه چې دوى کلک کړاى شوى ديوال وي .نورسول الله صلى الله عليه وسلم مونږ ته ولوستل .

(( عَنْ سهل بن سعد الساعدي رضىالله عنه قال : قال رسول الله ﷺ : ساعتانِ تُفْتَحُ فيهِمَا ابوابُ السَّمَاءِ وقَلَّ ماتُردُّ على داعٍ دعوتُهُ عند حضور النداءِ ، والصف فى سبيل الله.[2] ))

له سهل بن سعد الساعدي رضىالله عنه نه روايت دې چې نبى كريم ﷺ وفرمايل : دوه ساعته داسې دي چې په هغه کې داسمان دروازې خلاصولې شي اود ډېرو لږو دعاکوونکو دعا ردکولې شي يود آذان په وخت کې اوبل دجهاد په صف کې.

عَنْ عمران بن حصين رضي الله عنه عن رسول الله ﷺ قال :" مقام الرجل فى الصَّفِّ افضل عندالله من عبادة الرجل ستين سنة." [3]

---

[1]_ سنن الترمذي : ٥/ ٨٥ والسنن والكبرى للبيهقي : ٩/ ١٥٩ _١٦٠ والحديث صحيح .

[2]_ سنن ابي داود : ٣/ ٤٥ ، والحديث صحيح .

[3]_ المستدرك : ٢/ ٦٨ والحديث صحيح .

لـه حضرت عمران بن حصین رضی‌الله عنه نه روایت دی چې نبی کریم ﷺ وفرمایل: دجهاد په صف کې دیوسـړي ودریـدل دالله په نزد دشپیتو کلو له عبادت نه افضل دی.

نوځکه عبدالله بن عمر رضی‌الله عنهما ویلي دي چې کـه چیرته زه دالله په لاره کې دښمن ته مخامخ ودریږم نه یې په توره ووهم اونه یې

په نیزه اونه یې په غشو سره وولـم دالـه دی نه غوره دې چې شپیته کاله لـه ګناه نه پاک دالله تعالی عبادت وکړم.

مجاهد وایي: یزید بن شجره رضی‌الله عـنه لـه هغوخلکو څخـه و چې دهغه عمل دهغه دخبرو تصدیق کاو یعنې چې څه یې ویل هغه یې عملي کاو. هغه یوه ورځ موږ ته خطاب وکړ او ویې فرمایل: ای خلکو! دالله تعالی هغه نعمتونه درپه یاد کړئ چې پرتاسو یې انعام کړیدې.

اوڅومره ښه دی چې پرتاسې دالله تعالی هغـه نعمتونه څرګنداو کتلې شئ چې پرتاسویې انعام کړیدي دشنو( فصلونه باغونـه )، سرو ( اسان اوښان )او زیړو( سره زر دنانیر) له منځ نه اویه سوارلیو کې اوهغه چې په دی کې دي.

اوکله به چې مجاهدین دقتال لپاره صفونه جوړول نو وبه یې ویل دآسمان، جنت او دوزخ دروازې خلاصولې شي، حورعین ښکلې کولې شي اوهغه لـه پاسه نه ګوري، کله چې مجاهد دجنګ په وخت کې مخکې ځي نو هغه دعاکوي چې الله مرسته ورسره وکړي اوکله چې په جنګ کې شا اړوي نوترینه پرده کوي اودعا ورته کوي چې ای الله بخښنه ورته وکړې. نوای مسلمانانو! دښمن ته ښه سخت ګوزار ورکړئ زما مور اوپلار دی له تاسو نه قربان شي. تاسې حورعین مـه رسواکوئ. ځکه دشهید لـه لومړې څاڅکي وینې سره چې په زمکه کې ولویږي الله دهغه ټول ګناهونه بخښي.

هغه به داهم ویل: ماته خبر راکړ شویدی چې تورې دجنت کنجیانې دي.[1]

ابوسعید الخدری رضی‌الله عنه وایي چې الله تعالی بـه دریو کسانو ته دقیامت په ورځ له خوشالي نـه وخاندي یو هغـه سړی چې دشپې پاڅیږي اولمونځ کوي دویم هغه

[1] ـ مصنف عبدالرزاق ۵/ ۲۵۶ ـ ۲۵۸ و مصنف ابن ابی شیبه ۵/ ۲۹۲ـ ۲۹۳

قوم چې دلمونځ لپار صف برابروي دريم هغه مجاهدين چې لـه دښمن سره دقتال لپاره په صف کې ودريږي.[1]

حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضی‌الله عنهما فرمايي چې ايازه تاسوته دقيامت پـه ورځ دالله تعالی پـه نـزدلـه ټولـو نـه غـوره مقـام لـروونکي شـهيدان ونـه ښايم؟داهغه خلک دي چې په صف کې دښمن ته مخامخ ودريږي کله چې مقابله پيل شي نو ښي اوګڅ طرف ته نه ګوري خپل توري پخپلو اوږو ږدي او وايي: ای الله مانن ورځ خپل ځان تاتـه پـه اجورة مزدوري کې درکړيدي دهغـه پـه بدل کې چې پـه تيـرو ورځوکې مې کړيدی اوپه دی وخت ووژل شي.[2]



---

[1] ـ مصنف ابن ابی شیبه : ۵/ ۲۹۸ ).

[2] ـ الجهاد لابن المبارك : ۱/ ۷۰_ ۷۱

# شلم باب

## دالله تعالى په لاره کې دغشو ويشتلو فضيلت اوله زده کولو نه وروسته دهغوى دپريښودلو گناه

په دى خبره پوه شه چې دجهاد په نيت دغشو دويشتلو زدکړه. اوبل چاته ښودل رسول الله ﷺ ته خوښ وو اوخلک به يې ديته تيارول .

دغشو ويشتلو اوپه دښمن باندې دنورو ډول ډول وسلو د استعمالولو ډېر زيات فضيلتونه او ثوابونه بيان شويدي.

لومړې : الله جل جلاله ددين په لاره کې دجهاد لپاره د استعداد د ترلاسه کولو اوپردښمن باندې د غشو اود وسلو د استعمالولو د طريقې دزده کولو حکم کړېدی لکه چې فرمايي:

﴿ وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ ﴾ [الانفال :٦٠ ].

ددښمن د مقابلې لپاره موچې څومره له وسه پوره کېږي قوت برابرکړئ.

ځينې علماو ويلي دي چې دغشو او نورو وسلو د استعمالولو چل زده کول په هر مسلمان باندې واجب دی اوددی لپاره يې دغه پورتني آيت شريف دليل نيولی دی. ځکه چې له قوت نه مراد رمی يعنی دوسلو اوغشو استعمال دی.

(( عن عقبه بن عامر رضى الله عنه قال سمعت رسول الله ﷺ يقول _ وهو على المنبر _ "واعدوا لَهُمْ ماسْتطعْتُمْ مِنْ قُوَّةِ الا اِنَّ القوَّةَ الرَّمىَ الا اِنَّ القوَّة الرمى الا ان القوة الرمى." [1] ))

له عقبه بن عامر رضى الله عنه نه روايت دی هغه وايي چې ماله رسول الله ﷺ نه واوريد چې ويل يې اوپه ممبر ولاړوو. تاسي ددښمن په خلاف څومره چې موپه وس کې

[1] _ اخرجه مسلم برقم : ١٩١٧.

وي قوت تيار کړئ خبردار قوت نه مراد ويشتل دي قوت نه مراد ويشتل دي قوت نه مراد ويشتل دي داخبره يې درې کرته وکړه.

دويم : الله تعالى په يوه غشي سره درې کسان جنت ته وړي .يو دغشي جوړونکي بل دغشي ويشتونکي دريم دغشي په لاس کې ورکوونکى.

(( عن خالد بن زيد رضى الله عنه قال : كُنْت رجلاً راميًا ، فكانَ يَمُرُّ بي عقبة بن عامر، فيقول ياخالد اخرج بنا نرمى! فلما كان ذات يوم ابطأتُ عنه. فقال : ياخالد: تعال اخبرك ماقال رسول الله ﷺ. قال رسول الله ﷺ : " ان الله يُدخل بالسهم الواحد ثلاثة نفر الجنَّة ، صانعه يحتسبُ فى صَنْعَته الخير، والرامى به ومُنبله اُرمُوا واركبوا وان ترموا احبُّ الىَّ من ان تركبوا ، وَلَيْسَ اللهو الاَّ فى ثلاثٍ تأديب الرجل فرسه وملاعبته اهله ورميه بقوسه ونبله وَمَنْ ترك الرمى بعد ما علمه فهى نعمة تركها.[1] ))

له خالد بن زيد رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي چې زه نشان زن وم زماخواته به عقبه بن عامر رضى الله عنه راتلو او ويل به يې اى خالده! له ماسره دغشو ويشتلو لپاره لاړشه .يوه ورځ زه له تللونه پاتې شوم. هغه راته وويل : اى خالده! راشه زه تا درسول الله ﷺ له هغو خبرو نه خبروم چې ويلي يى دي . هغه ﷺ فرمايلى دي چې بيشکه الله تعالى په يوغشي سره درى کسان جنت ته ليږي. يو ددى جوړوونکې سړی چې دخير په نيت يې جوړ کړې وي. بل هغه سړی چې داپه دښمن باندې ولي او دريم هغه سړی چې په لاس کې ورته ورکوي.

تاسې غشي ولئ او په آسونو باندې سورلى کوئ اوستاسې غشي ويشتل ماته په اسونو باندې له سوريدو نه زيات خوښ دي. له دريو لوبونه پرته نورې لوبې نشته

[1] ـ سنن ابي داود ٥/ ١٠٣ والمجتبي للنسائي : ٦/ ٢٨ ومستدرك الحاكم : ٢/ ٩٥ ومسند ابي عوانة : ٥/ ١٠٣ والحديث صحيح .

لومړۍ خپل آس ته تربيت ورکول دی يم له خپلې ښځې سره توقې تقالې کول دريم دغشو ويشتل. اوچاچې د غشو دويشتلو دچل زده کولو نه وروسته دغشو ويشتلو کار پريښود هغه يو لوی نعمت پريښود .

روايت دی چې کله عقبه بن عامر رضی‌الله عنه مړشو نوله هغه سره له اوياونه زيات کمانونه موجود وو اوله هر کمان سره دغشو چانته غشي و. هغه وصيت کړی و چې زماله مرګ نه وروسته دی داټوله وسله په جهاد کې ورکړی شي.[1]

دريم : رسول الله ﷺ به پخپله له اصحابو کرامو سره يوځای دغشو ويشتلو مشق کاو.

(( روی البخاری عن سلمة بن الأکوع رضی‌الله عنه قال :مَرَّ النبی ﷺ علی‌قومٍ ينتضلون ، فقال : (( ارموا بني إسماعيل ، فإنَّ أباکم کان رامياً ، ارموا وأنا مع بنی فلان. فأمْسَکَ أحَدُ الفريقين بأيديهم فقال رسول الله ﷺ. مالکم لاترمون؟

قالوا: يارسول الله : کيف نرمی وأنت معهم ؟

قال : ارموا وأنا معکم کلکم )).[2]

ژباړه :له حضرت سلمه بن الاکوع رضی‌الله عنه نه روايت دی هغه وايي چې نبی کريم ﷺ په يوداسې ډله باندې تيرشو چې هغی دغشو ويشتلو مسابقه کوله. نبی کريم ﷺ ورته وفرمايل : ای داسماعيل زامنو! غشي ولئ ځکه چې ستاسې پلار به هم غشي ويشتل تاسې غشي ولئ زه له بنوفلان سره ملګری يم ( يعنی زه هم له يو ګروپ سره يوځای په مقابله کې برخه آخلم ) راوي وايي چې هغه بلې ډلې دغشو ويشتلو نه لاس واخست نبی کريم ﷺ ورته وفرمايل : تاسې غشي ولې نه ولئ هغوی عرض وکړ

---

[1] ـ شرح السنة للبغوي : ۱۰/ ۳۸۳

[2] ـ اخرجه ا لبخاري برقم : ۲۸۹۹

یارسول الله ﷺ ! ته چې لـه هغوی سره يې نومونړ به څنګه غشي وولو ؟ هغه ﷺ ورته وفرمايل غشي وولئ؛ زه لـه تاسو ټولو سره يم له دی حديث نه ثابت شو چې غشو ويشتونکو ته هغه تعصب مستحب دی کوم چې په دوی کې دمقابلې غيرت پيداکړي چې زړونه يې مضبوط شي مينه يې ورسره زياته شي خو پدی شرط چې په دی کی دابنه نيت اوقصد موجود وي چې درسول الله ﷺ اقتداء شوی دی.

ليکن غشو ويشتونکو لپاره شيطاني تعصب چې هسې په هوا او نفس باندې ولاړوي او ترينه کينه او حسد پيداکيږي حرام دی ځکه چې لدينه ډېر زيات فسادونه پيداکيږي په غشو ويشتلو کې دجنګ نور سامانونه او وسلې هم شاملې دي لکه دتورې او نيزې چلول اوداسې نور. په اوسنې زمانه کې ټولې هغه وسلې شاملې دي چې دجنګ په ميدان کې استعماليږي او کار ترينه اخستل کيږي.

څلورم : دغشي يادنيښې ويشتل مستحب کاردی.

(( عَنْ عـبقة بـن عامـر رضیالله عنه : قال سمعتُ رسول الله ﷺ يقول : "سَتُفْتَحُ عليك ارضون ، ويكفيكم الله ، فلا يعجز احدُكم ان يلهو بأسهمه."[1] ))

له عقبه بن عامر رضیالله عنه نه روايت دی چې ماله رسول الله ﷺ نه واوريدل چې فرمايل يې : ډېر زر به ډېرې علاقې ستاسې په لاسونو فتحه شي اودښمنانو په مقابله کې به الله تعالی ستاسې له لورې کافي شي. خوبياهم له تاسونه دې هيڅوک دغشو ويشتل نه پريږدي.

« وروی النسايي والـبيهقي عـن عطـاء بـن أبـی ربـاح قال : رأيتُ جابر بن عـبدالله وجابـر بـن عمـير الأنصـاری رضیالله عـنهما يـرميان. فملَّ احدهما فجـلس!فقـال لــه الآخـر: کسلت ؟ سمعت رسول الله ﷺ يقول : (( کلُّ شئ

---

[1] ـ اخرجه مسلم برقم : ۱۹۱۸

ليس من ذكر الله عز وجل فهو لهوٌ أو سهوٌ، إلاَّ أربعُ خصالٍ : مشيُ الرجل بين الغرضين ، وتأديبه فرسه ، وملا عبتهُ أهلهُ، وتعليمُ السباحةِ )) [1]

له عطا بنَ ابی رباح څخه روایت دی هغه وايي چې ماجابربن عبدالله او جابر بن عمير الانصاري رضی الله عنهما وليدل چې غشې يې ويشتلې له هغو دواړو نه يوستړی شو او کيناست له هغو دواړو نه يو تن بل ته وويل ته سست شوې ؟ ماله نبی کريم ﷺ نه آوريدلي دي چې فرمايل يې: هر هغه څه چې دالله په ذکر کې نه راځي هغه هسې بې کاره او چټې شي دی. خو څلور څيزونه بې کاره نه دي. لومړی دسړي هغه مزل او منډه چې ددوه نښو په منځ کې يې وهي دويم خپل اس ته تربيه ورکول دريم له خپلې ښځې سره توقې ټقالې اولوبې کول څلورم دلامبو زده کول.

نښه ديته ويل کيږي چې په لرې ځای کې يوهدف ايښودلې شي په هغه باندې کاغذ يابل څه شې سريشوي اوبيا غشې ويشتونکې هغه په دی مقصد يې ولي چې غشې ورباندې لګيږي اوکه نه ؟

مستحب دادی چې دواړو خواوته نښې ودرولې شي او غشې بايدد دوه نښو له منځ نه وويشتل شي. ځکه چې دنبی کريم ﷺ اصحابو همداسې کاو عمربن الخطاب رضی الله عنه به دجهاد په ميدانونو کی لښکر ته نصيحت کاو نښان بازي هروخت کوئ او داکار هر وخت جاري وساتئ. او هيڅ کله يې هم مه پريږدئ

(( عن ابی عثما ن النَّهدی قال : أتانا کتاب عمر بن الخطاب رضی الله عنه، ونحن مع عتبة بن فرقد رضی الله عنه نجاهد بأ ذربيجان ، ومما قال فيه: (( أما بعد فاتَّزروا وانتعلوا ، وارتَـدُوْا، والقُوا الخفا ف والسر اويلات ، وعليكم بلبا س أبيكم إسماعيل ، وأياکم والتنعم وزيَّ العجم ، وعليكم بالشمس فإنَّها حمام العرب

[1] ـ المجتبي للنسائي : ٦/ ٢٢٢ ـ ٢٢٣ والسنن الكبرى للبيهقي : ١٠/ ١٤ والحديث صحيح .

، وتمعددوا، واخشَوْشِنوا ، واخْلَولِقُوْا ، وامشُوا حُفَاةً ، واقطعوا الركب ، وانزوا على الخيل نزواً، وارموا الأغْراض ، وامشوا بينهما .[1]))

له ابی عثمان النهدی ﷺ نه روايت دی هغه وايي چې موږ ته دعمربن الخطاب رضی‌الله عنه يو خط راغې او موږ له عتبه بن فرقد رضی‌الله عنه سره يوځای په اذربائيجان کې جهاد کاو. عمر رضی‌الله عنه پخپل خط کې ليکلي وو امابعد: تاسې لنگ ووهئ پنې واچوئ او څادر واغوندئ ، موزې اوپرنگونه وغورځوئ پرتاسې دخپل پلار اسماعيل لباس واجب دی. تاسې دعيش اوعشرت اود عجميانو فيشن پريږدئ. تاسې پخپل ځان لمر لازم کړئ ځکه چې لمر دعربو حمام دی ساده گي خپله کړئ زيږې او زړې جامې واغوندئ ، پښې ابلې وگرځئ. اوپه سوروباندی مخکې کيږئ په اسونو باندې په ټوپ وخيژئ په غشو سره نښې ولئ اود د دوه نښو ترمنځ روان شئ.

پنځم : چاچې دالله په لاره کې يو غشی وويشت الله تعالی په جنت کې دهغه يوه درجه اوچتوي.

(( عن عمروبن عبسة رضی‌الله عنه قال : حاصرنا مع رسول الله ﷺ الطائف ، فسمعته يقول : " من رمی بسهمٍ فی سبيل الله فله عِدلُ مُحَرَّرٍ، ومن بلغ بسهم فی سبيل الله فله درجة فی الجنة...... " قال عمرو بن عبسة فبلغت يومئذ ستة عشرسهما.[2] ))

له عمروبن عبسه نه روايت دی هغه وايې چې موږ له رسول الله ﷺ سره يوځای طائف محاصره کړ. مادرسول الله ﷺ آواز واوريد چې فرمايل يې: چاچې دالله په لاره کې يوغشې وويشت هغه ته ديو غلام د آزادولو هومره اجر دی اوچاچې خپل غشې تر دشمن پورې ورسولو نو دهغه لپاره په جنت کې يوه درجه وي .

---

[1] ــ السنن الكبرى للبيهقي : ۱۰/ ۱۴

[2] ــ سنن النسائي : ۶/ ۷ ومستدرك الحاكم : ۲/ ۹۵ وموارد الظمآن ۳۹۶ ، والحديث صحيح .

عمرو بن عبسه وايي چې ماپه دی ورځ شپاړس غشي دشمن پورې ورسولې .

(( وروى النسائي و ابـن حبان عن كعب بن مرّة رضى الله عنه قال : سمعت رسول الله ﷺ يقول : (( مَنْ بلغَ العدوَّ بسهمٍ رفع الله له درجة!

فقـال لـه عبدالله بن النحام رضى الله عنه :وما الدرجةُ يارسول الله؟ قال: أما أنها ليست بعتبة أُمّك ! مابين الدرجتين مائةُ عام ))[1]

له كعب بن مره ﷺ نه روايت دی هغه وايي چې ماله رسول الله ﷺ نه واورېدل چې فرمايل يې : څوک چې دشمن پورې يوغشي ورسوي الله تعالى دهغه يوه درجه اوچتوي. عبدالله بن النحام ﷺ وويل : يارسول الله درجه څه ده ؟

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل داستادكور دپوړو په شان نه دی بلكې د دوه درجو ترمنځ به دسلو كالو فاصله وي. آن تردی چې كه چيرته په دې غشي سره دښمن ته ونه رسيږي نو بياهم الله تعالى هغه ته ثواب وركوي او اجر يې څوچنده زياتوي. لكه راتلونكې حديث كې ددی بيان شوی دی .

((عن عمرو بن عبسة ﷺ قال : سمعت رسول الله ﷺ يقول:

" مَنْ شابَ شَيْبَةً فى الاسلام ، كَانَتْ له نوراً يوم القيامة ، وَمَنْ رمى بسهمٍ فى سبيل الله فَبَلَغَ به العد و اولم يبلغ ، كان لـه كعتقِ رقبةٍ مؤمنة ، وكانتْ له فداء ه من النَّارِ[2] ))

له حضرت عمرو بن عبسه رضى الله عنه نه روايت دی هغه وايي چې نبى كريم ﷺ وفرمايل :

---

[1]ـ المجتبى للنسائي : ٦/ ٢٧ وموارد الظمآن ص : ٣٩٦ واسناده صحيح

[2]ـ المجتبى لنسايي ٦/ ٢٧ ـ٢٨. اسناديې صحيح دي.

کوم سړی چې په اسلام کې بوډا شو نو دقیامت په ورځ به دهغه دغه بوډا والې هغه ته رڼا وګرځي، اوچاچې دالله په لاره کې یوغشی وویشت که هغه په دشمن باندې ولګید یاونه لګید نو هغه ته به دیو غلام د آزادولو هومره ثواب رسیږي اودابه هغه ته د دوزخ له اورنه فدیه وګرځي.



# فصل

## دغشو ویشتلو تمرین

(( و روی ابراهیم بن یزید التیمی عن ابیه قال: رأیتُ خذیفه بن الیمان رضی‌الله عنه بالمدائن یشتدُّ بین الهدفینِ ، لیسَ علیه ازارٌ.[1] ))

ابراهیم بن یزید التیمي له خپل پلار نه روایت کوي هغه وایي چې ماخذیفه بن الیمان رضی‌الله عنه ولید چې د دوه نښنو ترمنځ ئي منډه وهله اولنګ یې په تن کې نه و

نښنه دیته ویل کیږي چې له زمکې نه پورته دویشتلو لپاره ودرول شوې وي . مجاهد رحمه الله علیه وایي چې ماعبدالله بن عمر رضی‌الله عنهما ولید چې د دوه نښنو ترمنځ منډه وهله او ویل یې چې څنګه به زه نښنه وولم . څنګه به زه نښنه وولم خذیفه او ابن عمر رضی الله عنهم به چې کله دغشو دویشتلو تمرین اومشق کاو نو منډې به یې وهلې او هسې مزل به یې کاو. حذیفه رضی‌الله عنه به له لنګ نه پرته منډې وهلې ترڅو دروند نه وي اوچې وجودیې دستړتیا سره آموخته شي.[2]

دا روایتونه په دې خبره دلالت کوي چې اصحابو رضی‌الله عنه به دغشو ویشتلو ته زیات اهمیت ورکاو. هغوی خوداقتداستوری او داهتداء ډیوی وي اوددنیا او آخرت

---

[1] ـ سنن سعیدبن منصور : ۲/ ۳/ ۱۸٤

[2] ـ سنن سعیدبن منصور ۲/ ۳/ ۱۸۵

پاچاهان و کوم کارونه یې چې کړیدي په هغوی کې نیک هدایت دی اوکومې رایې ته چې هغوی میلان کړیدې هغه صحیح رای ده.

الله تعالی چې دهغوی کومه ستاینه کړې ده هغـه ستالپاره کافي دی:

﴿مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ تَرَاهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِمْ مِنْ أَثَرِ السُّجُودِ﴾ [ الفتح : ۲۹. ]

محمد دالله رسول دی . او هغـه کسان چې ورسره دي پرکفارو ډیر سخت اوپه خپلو مینځونو کې ډیر مهربان دي . ته به یې همیش رکوع او سجده کوونکې وینې چې دالله دمهربانیو او خوښیو دترلاسه کولو په هڅوکې به وي . په مخونو کې یې دسجدې نښې ښکاري .

تیرانداز اوغشي ویشتونکو ته پکار دي چې هغوی خپل عزت او لویي دنښانه بازي په وخت کې یوطرف ته کیږدي اوله خپلوملګرو سره دغشو په ویشتلو کې ساده ګي اختیار کړي او په دی کار کې دی هیڅ قسم شرم ونه کړي. پخپل دغه عمل دی دالله تعالی دقرب او اجر هیله من ووسي ، دامشق دی لوی عبادت وګڼي او صرف لوبه اوفضول مقابله بازي یې ونه ګڼي. کله چې ورته توفیق په نصیب شي نو په دی دالله تعالی شکر اداکړي چې دهغه جل جلاله په زړه کې دنورو لوبو پرځای ددې مینه آچولې ده. دغشي ویشتلو په وخت کې له خپلو ملګرو سره ټوقې ټقالې او خندا کول څه بده خبره نده بلکې دایو مستحب کار دی ځکه چې په دی سره زیات همت اوچستي پیداکیږي اودغه عبادت سره یې مینه پیداکیږي خو خندا او خوشالي دی دومره زیاته نکړي چې دمکروه حد ته ورسوي.

بلال بن سعد وایي چې ماداسې خلک لیدلي دي چې هغوی به د دوه هدفونو ترمنځ منډې وهلې او پخپلو کې به له یوبل سره خندلې. اوکله به چې شپه شوه نو هغوی به د راهبانو په شان دالله په عبادت کې بوخت شول.

حضرت بلال بن سعد پخپله هم په همدغو اوصافو متصف و او هغه د تابعينو لوی عالم او عابد شخص و.

ابوعبدالله الحليمي وايي کوم شی چی درمی ( دويشتلو) په اوچت مقام اوثواب دلالت کوي هغه دادی چی رسول الله ﷺ هيڅ چاته هم داسې نه دي ويلي چې زما مور او پلار دواړه دې له تانه ځارشي مګر هغه چاته يې ويلي چې نشان زن و لکه بخاري او مسلم دحضرت علي نه روايت کړی دی.

(( عَنْ علی بن ابی طالب رضی‌الله عنه ان رسول الله ﷺ قال: لسعدبن ابی وقاص رضی‌الله عنه يوم احد اِرْمِ فداك أبی وامی.[1] ))

له علي بن ابی طالب رضی‌الله عنه نه روايت دی چې رسول الله ﷺ داحد په ورځ سعدبن ابی وقاص رضی‌الله عنه ته دغزوه احُد په ورځ وويل چې زمامور اوپلار دی له تانه قربان شي دغشو ګذارونه کوه.

ابوعبدالله الجوزجاني وايي مونږ له حضرت ابراهيم بن ادهم رحمه الله سره په سمندرکې جهاد وکړ. په کومه شپه چې هغه مړشو هغه ته داسهال ناروغي ولګيد اوپنځه ويشت ځلې اودس ماتې ته لاړ. هغه به هر ځل دلمونځ لپاره نوی اودس کاو با اودس تازه کلو.

کله چې پوه شو چې نور مړکېږم نو ويې ويل چې ماته کمان کې غشی واچوي او زما په لاس کې راکړئ. کمان يې چې په لاس کې ونيولو نو الله تعالی دهغه روح واخيست.

ابراهيم بن ادهم رحمه الله عليه داکار په دې اميد وکړ چې الله تعالی هغه په داسې حالت کې پاڅوي چې کمان يې په لاس کې وي ځکه چې انسان په هغه حالت کې پاڅول کېږي په کوم حالت کې چې مړشوی وي.

امام مالک رحمه الله عليه ويلي دي چې په آسونو باندې دسوربدو زده کول اوبيا پرې مسابقه کول دنبشان زنئ دزده کړې او مسابقې نه غوره دی.

---

[1] ــ اخرجه البخاري برقم : ۲۹۰۵ ومسلم برقم : ۲٤۱۱ .

مګرجمهور علماء وايي چې لـه اس سواري او مسابقې نه دغشو ويشتلوزده کړه او وربـاندی مشق اوتمرين زيات غوره دی. دوی دمحمدﷺ په دی حديث دليل نيولې دی چې فرمايلی دي:

وَارْمُوْا وارْكَبُوْا وان ترمُوْا اَحبُّ اِلَیَّ من ان تركبوا.

تاسې غشـي وولئ اوپـه اسونو سورشئ خوماته دسوريدو پرځای دغشو ويشتل زيات محبوب اوغوره دي.

ځينو متاخرينو علماو ويلي دي چې اس سواري اوغشـي ويشتل دواړه په مجموعي ډول ضروري دي. کله چې دشمن لـرې وي نـو دغشـو ويشـتل زيـات ګټـور وي خولـه دښمن سره لاس پـه لاس جنګ کې اس سواري زيات غوره دی. له دواړو نه افضل هغه دی چی دښمـن تـه نقصـان رسـوي اولښکـر تـه ګټـور وي اودا دخـالاتو اواشخاصـو پـه اختلاف سره مختلف کيږي.

درسول اللهﷺ پنځه کمان (ليندۍ) وې چې په دی سره يې غشي ويشتلې.

(۱)الروحاء (۲) الصفرا (۳) البيضاء (۴) والزوراء (۵) والكتوم.

اودرسول اللهﷺ د توبرې (شخولې) نوم کافور و چې غشي به يې په کې ايښودل.



# فصل

## د مسابقې، او دغشو د ويشتلو بيا ن

مسابقه: دټول مسلمان امت په دی خبره اجماع ده چې په اسونو او غشو سره مسابقه کول جائزدی. داسونو مسابقې ته رهان او دغشو مسابقې ته مناضله ويل کيږي.

دا سنت دې او ددې فاعل تـه ثواب ورکول کېږي. خوپـه دی شرط چې قصد او اراده يې دجهاد لپاره تياری او مهارت ترلاسه کول وي.

## دمسابقې شرطونه:

لومړی : داچې دمسابقې معقود علیه ( عوض دګټلو) به دقتال جهاد له سامانونو څخه وي لکه اسونه او اوښان نور خره وغیره .

دویم: داچې دمسابقې دشروع کولو ځای او آخري نقطه چې ترهغه ځای پورې به اسونه ځغلولی شي معلوم وي او مسابقه کوونکې دواړه برابر حرکت وکړي. که چیرته داځایونه نه وي معلوم کړی شوې نو بیا مسابقه روا نه ده.

دریم : داچې په مسابقه کې مخکې کیدونکې ته به پوره مال یا زیاتره مال ورکول کیږي .

څلورم شرط دادی چې عوض ( مال ) به له یوې خوا یابه دامام او امیر له خوا مقرر وي اوکه مال له دواړو خواو نه ‎ه‎ نو ددی د جواز لپاره دا صورت دی چې یو دریم ګړی شخص به هم په مسابقه کې برخه اخلي نه که دغه دریم شخص مسابقه وګټله نو هغوی دواړو چې کوم مال ایښی وي هغه به تول ترینه اخلي اوکه هغوی دواړو له دغه دریم نفرنه مخکې شول نو هغوی ته به هیڅ نه ورکول کیږي خپله خپله حصه به واپس بېرته اخلي اوکه په هغوی کې یوله بل نه مخکې شو نو خپله حصه به هم واخلي او دملګري حصه به هم ځانته کړي دغه دریم نفر ته داحادیثو په اصطلاح کې محلل ویل کیږي دده لپاره دا شرط ده چې دده اس به ددې جوګه وي چې مسابقه وګټي او دا احتمال هم پکې وي چې ویې نه ګټي.

پنځم. داچې مخکې کېدل هریولپاره ممکن وي.

شپږم اسونه یې له مخکې نه معلوم کړی وي چې په مسابقه کې به دا دا اسونه برخه اخلي .

اووم : په دی باندی به یې اتفاق کړی وي چه په دغو اسونو باندی به فلان فلان سوریږي.

اتم : اسونو لپاره دمسابقې دښودل شوي مسافې دطی کولو امکان وي یعنې چې نه اسونه ستړي شي اونه هلاک شي .

(( روی البخاري ومسلم عن عبدالله بن عمر ﷺ قال : اجرى النبيُّ ﷺ ماضمر من الخيل من الحفياء الى ثنيه الوداع واجرى مالم يضمر من ثنية الوداع الى مسجد بني زريق . [1] ))

بخاري او مسلم له عبدالله بن عمر ﷺ نه روایت کړیدی هغه وايي چه رسول الله ﷺ تړيننګ ( تمرين ) شوي اسونه يې نه حفيانه ترثنية الوداع پورې وزغلول او هغه اسونه چه تړيننګ شوي نه وو هغه يې له ثنية الوداع نه مسجد بني زريق پورې يوميل وزغلول تضمير داسونو دى ته وايي چې له څاغيدو نه وروسته يو څه موده په اسونو خوراک کم کړې شي . او هروخت وربانديې ذين واچول شي ترڅو خولې شي او خوله بيرته وربانډى وچه شي پدې کار سره داسونو غوښه کميږي اوپه منډې ښه برلاسي کيږي .

سفيان رحمه الله وايي چه له حفيانه تر ثنية الوداع پورې پنځه يا شپږ ميله لا. ۸ ده او له ثنيه نه تر مسجد بني زريق پورې يو ميل فاصله ده.

نهم : په مشروط مال باندې بايد پوه وي چه دومره مال دی .

لسم : له فاسد شرط نه دی ډډه وکړي.

دغشو په ويشتلو کې چې کومه مسابقه کيږي هغې ته مناضله ويل کيږي او دمناضلې شرطونه دادي:

لومړۍ شرط داده چې کچيرته مال له دواړو خواو نه و نو محلل به موجود وي دمحلل تفسير مخکې په رهان کې تيرشو.

دويم داچې مسابقه په يو جنس کې وي يعنې له دواړو خواو به غشي وي يابه نيزې وي که چېرته پکې فرق وي اوله يو جنس نه نه وي لکه يوې خوا غشې وي اوله بلې خوانيزه نو دا صحيح نه دی . دريم داچه هدف ته دغشي رسيدل ممکن وي نه ډير لرې وي اونه ډير نژدى چه لګيدل يې يقيني وي.

[1] ـ اخرجه البخاري برقم : ۲۲۸٦۸ . ومسلم برقم : ۱۸۷۰

ځلورم داچې دواړه په مشروط مال باندې خبر وي په دې هم خبر وي چه په څومره مسافه کې به غشې ولي ، او په دې به هم خبر وي چې په دومره غشو کې دومره واري دهدف ويشتل اړين دي . او څوک به لومړې دغشي په ويشتلو پيل کوي؟

پنځم : دويشتونکو کسانو تعيين او معلومول چه دغه کسان به غشې ولي .

شپږم:دغشي دويشتو لپاره دځای معلومول او دويشتونکو يو برابر ودريدل.



# فصل

# دهغه خلکو په اړه سخت وعيد چې لومړې غشی ويشتل زده کړي خوبيا ئې بيرته پريږدي

دهغه چا په باره کې سخت وعيدونه راغلي چه دغشو ويشتل زده کړي او بيايې هير کړي.

(( روى مسلم اَنَّ فُقَيمًا اللَّخْمِيَّ قال لعقبَةَ بنْ عامرٍ رضىالله عنه : تختلف بين هذينِ الغرضين وانتَ كبيرٌ يشقُّ عليك ؟

فقال عقبةُ بن عامر: لولا كلامٌ سمعته من رسول الله ﷺ لم أُعانه.

قال الحارث _ راوي الحديث _ لابن شماسة: وماذاك ؟

قل:هو قوله ﷺ :(( مَنْ تعلَّمَ الرمى ثم تركه فليس منا.. أو قد عصى .. )) [1]

---

[1] اخرجه مسلم برقم : ۱۹۱۹

مسلم روایت کړیدی چې فُقَیْمًا اللَّخمیُّ عقبه بن عامر رضی‌الله عنه ته وویل چې ته د دوه هدفونو ترمنځ ګرځې اوحال داچی ته بوډایې اوپه دی کې درته ډېر غټ تکلیف دی. حضرت عقبه رضی‌الله عنه ورته وویل : که چېرته مادنبي کریم صلی‌الله علیه وسلم حدیث نه وای آورېدلی نومابه دومره تکلیف نه وویستلې.

دحدیث راوي حارث ابن شماسه ته وویل هغه څه دي ؟ هغه وویل دنبی کریم ﷺ داحدیث:

مَنْ تَعلَّمَ الرَّمْیَ ثُمَّ ترکه فلیس مِنَّا... اوقدعصی.

چاچې دغشي ویشتلو مهارت زده کړ اوبیایې پرېښود هغه له موږ څخه نه دی اویایې وویل چې هغه ګناه وکړ.

دعلماو یوی ډلې ویلي دي چې څوک دغشي دویشتلو له مهارت نه وروسته هغه پرېږدي نو لویه ګناه یې وکړه ځکه چی معتمده قاعده داده چې دکوم کار په باره کی چی نبی کریم ﷺ فرمایلي وي چی چاداکار وکړ هغه له موږ نه نه دی اویاله مانه یې نافرماني کړیدی یا ددی په شان یې نور الفاظ استعمال کړي نو هغه کبیره ګناه وي .

داحدیث ابو عوانه په خپل مسند کې هم روایت کړې دی او ددی حدیث لپاره تردی عنوان لاندی یو مستقل باب یې تړلې دی داباب دغشو ویشتلو دهڅونې په بیان کې دی اوپه دی کې دغشو زده کړه پرمسلمانانو واجب دی اودلیل پدی باندی چې دغشو ویشتل یوه مباحه لوبه ده او هرڅوک چې دازده کړي اوبیا یې هیر کړي نو دهغه لپاره سخت عذاب دی .

نووي ددی حدیث په څېړنه کې ویلي دي چې دغشو دویشتلو هنر پرېښودل سخت سکروه دی. په هر تقدیر دغشو دویشتلو هنر پرې ښودل اوله یاده یستل که کبیره ګناه نه وي نو صغیره خو ضرور ده او په مسلسل پرې ښودلوسره کبیره ګناه ګرځي لهذا دی ته خان بیدارول پکار دي که چاهیر کړی وي باید چې ژر ترژره توبه وباسي او مسلسل پرېښودونه خان وساتي ترڅو په کبیره ګناه کې ښکیل نشي دهغوی تنبیه اوخبرول واجب دي چی ژر تر ژره توبه وباسي او مسلسل پرېښودلو نه خان وساتي .



# یوویشتم باب

# د مجاهدینو د تورو ، نیزو او نورو وسلو فضیلت

دالله تعالی مبارک ارشاد دی: ﴿ وَلْيَأْخُذُوا أَسْلِحَتَهُمْ ﴾ [النساء:۱۰۲]

اودوی دی خپله وسله له ځان سره واخلي.

اود الله تعالی مبارک ارشاد دی :

﴿ وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ ﴾ [ الانفال :٦٠. ]

اوتاسې دهغوی دمقابلې لپاره چې څومره مویه توان کې وي قوت ( وسله ) برابر کړئ. ابن عباس رضی الله عنهما فرمایي چې له قوت نه مراد وسله اوکمان دی الله تعالی دنیزې یادونه هم په قرانکریم کې کړېده او فرمایلی یې دي :

﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللَّهُ بِشَيْءٍ مِنَ الصَّيْدِ تَنَالُهُ أَيْدِيكُمْ وَرِمَاحُكُمْ ﴾

[ المائدة :٩٤ ].

ای مومنانو! دڅه اندازه ښکار سره چې هغه ته ستاسې لاسونه اونیزې رسیږي الله تعالی به خامخا ستاسو امتحان کوي .

پوه شئ چې اس سواري زده کول او نورو مسلمانانو ته یې ورښوول اود وسلو د استعمالولو هنر یادول کفایي فرض دی. اوکله دافرض عین هم ګرځي. اوداهله چې دیته دمسلمانانو ډېر سخت ضرورت وي اوپه مسلمانانو کې هیڅ څوک داسې نه وي چې دایې زده کړې وي اوفرض کفایه تحقق ومومي.

# ځينې هغه احاديث چې دتورو او نيزو په فضيلت کې راغلي

(( روى أحمد عن عبدالله بن عمر رضى الله عنهما قال : قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : "بُعثْتُ بالسيفِ بين يدى الساعة ، حتى يُعبدَ اللهُ وحده ،لاشريكَ لـه ، وجُعِلَ رزقي تحت ظلٌ رمحي ، وجعلِ الذلةُ والصَّغارُ على مَنْ خَالفَ أمري، ومن تَشَبَّهَ بقومٍ فهو منهم.. ))[1]

له عبدالله بن عمر رضى الله عنهما نه روايت دى چې نبى كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل : زه تر قيامته پورى له تورې سره لېږل شوى يم . ترڅو يواځې دهغه يو الله عبادت وكړى شي چې بل څوک ورسره شريک نشته اوزما روزي زما دنيزى تر سيورې لاندى ايښودل شويدې. ذلت او خواري دهغوخلکو لپاره مقدردى چې زماله راوړل شوي دين نه سر غړاوي وكړي. اوڅوک چې له کوم قوم سره مشابهت وكړي هغه له همغه قوم څخه دى .

امام ابن قيم پخپل كتاب ( الفروسية المحمدية ) ص ١٨ كې ويلى دي چې امام پدى خبره تصريح كړى ده . ويلي يې دي چې په كوم ځاى كې دجهاد ضرورت وي هلته دنيزو جوړول له نفلي لمونځونو نه افضل دى. همدغه حكم دنورو وسلو دجوړولو دى

اومحمد صلى الله عليه وسلم فرمايلى دي چې جنت د تورو ترسيورى لاندى دى.

(( روى مسلم عن أبى موسى الأشعرى رضى الله عنه أنه قال – وهو بحضرة العدو – قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : (( إنَّ أبوابَ الجنةِ تحت ظلالِ

---

[1]_ مسند احمد : ٢: ٥٠ _ ٥٢ والحديث صحيح .

السيوف )). فقام رجلٌ رثُّ الهيئة . فقال: يا أبا موسى !: أنتَ سَمِعْتَ رسولَ الله صلى الله عليه وسلم يقول هذا؟ قال أبوموسى : نعم .

فرجعَ الرجُل إلى أصحابه ، فقال: أقرأ عليكمُ السلام. ثم كسر جَفْنَ سيفه فألقاه ، ثم مشى بسيفه إلى العدو، فضرب به حتى قُتل )) [1]

له ابى موسى الاشعرى رضى الله عنه نه روايت دى هغه وايي چې ما له دښمن سره دجنګ په وخت کې وويل : چې دجنت دروازې دتورو ترسيورو لاندى دي. په دى وخت يوسړى چې سريې ببرو پاڅيد او راته يې وويل :

اى ابو موسى ! اياتاله محمدصلى الله عليه وسلم نه پخپله آوريدلي دي چې همداسې يې ويلي وي؟ ابوموسى وويل : هو ما آوريدلي دي.

هغه سړى خپلو ملګرو ته راغى او ورته يې وويل چې پرتاسو سلام وايم. بيايې دخپل تورى قاش مات کړ او وى غورځاو بياد توره په لاس دښمن سره دجنګيدو لپاره ورغې ترهغه يې توره وچلوله چې پخپله شهيد کړى شو.

((و روى البخاري ومسلم عن عبدالله بن أبى أوفى رضى الله عنه، أنَّ النبى صلى الله عليه وسلم كان فى بعض أيامه التى لقى فيها العدوَّ ينتظر، حتى إذا مالت الشمس،قام فيهم فقال:(( يا أيها الناس:لاتتمنوا لقاء العدو، واسألوا الله العافية ، فإذا لقيتموهم فاصبروا، واعلموا أنَّ الجنة تحت ظلال السيوف .. [2]))

له عبدالله بن ابى اوفى رضى الله عنه نه روايت دى چې نبى کريم صلى الله عليه وسلم يوه ورځ چې له دښمن سره يې مقابله وه دلمر ترېرې وتلو پورى انتظار وکړ بياودريد اوخلکوته يې خطبه واوروله او ويې فرمايل : اى خلکو! له دښمن سره دمخامخ کېدو آرزو مه کوئ بلکې له الله تعالى نه عافيت غواړئ. اوکله چې ورسره جنګ شروع شي

---

[1] ـ اخرجه مسلم برقم : ۱۹۰۲

[2] ـ اخرجه البخاري برقم : ۲۹٦۵ او مسلم برقم: ۱۹۰۲.

نوصبر وکړئ ( یعنی مه وارخطاکېږئ باثې په استقامت سره جنګ وکړئ ) اوپوه شئ چې جنت د تورو ترسیوري لاندی دی.

یزید بن شجره رضی‌الله عنه به ویل چې ماته خبر راکړشویدی چې توري دجنت کنجیانې دي.

توري دجنت د دروازو کنجیانې ګرځول شویدی ځکه چې داد جنت د دروازو دخلاصولو لپاره سبب دي.

په تورو سره ددښمنانو وهل په جنت کې د داخلیدو سبب دی. توره دعزت اوکرامت ته درسیدو لپاره یوه ذریعه ده اوبه دی سره مجاهد دالله تعالی درضا په ترلاسه کولو کې کامیابیږي اود جهنم له اور نه دساتلو لپاره وقایه جوړیږي .

داصحابو کرامو رضی‌الله عنهم توري به صرف د جهاد لپاره وې نوځکه په سرو زرو سره به مزینې نه وې.

(( روی البخاری عن أبی أمامة رضی‌الله عنه قال : لقدفتح الفتوح قومٌ ماکانت حلیة سیوفهم الذهب ولا الفضة، إنما کانت حِلْیَتُهم العلابِیّ والآنِك والحدید[1] )).

له ابی امامه رضی‌الله عنه نه روایت دی هغه وایې چې بیشکه داسی قوم ( صحابه و) دېر فتوحات وکړل چی دهغوی دتورو موتی په سروزرو او سپینو زرو نه وو ښایسته بیشکه دهغوی د تورو موتی په علابي سرف او اوسپنه ښایسته وو.

علابی دقلعی هغه ټوټې ته وېل کېږي چې په هغې سره دتورې غلاف تړي. توری خو لاځه کوې کله کله دیو مجاهد آن نوکانوته هم اړتیا پیداکیږي لکه حضرت عمر رضی الله عنه فرمایلي دي :

قل عمربن الخطاب رضی‌الله عنه وفرُوا الأظفارَ فی ارض العدوِّ فانها سلاح.

---

[1]ـ اخرجه البخاري برقم :۲۹۰۹

عمربن الخطاب ﷺ ویلي دي چې ددښمن په سیمه کې خپل نوکان اوږده پرېږدئ ځکه چې داهم وسله ده.

او احمدبن حنبل رحمه الله علیه ویلي دي چې مجاهد ددښمن په سیمه کې خپلو نوکانو ته هم محتاج کېږي که چیرته نوکان یي نه وي نو هغه لپاره دېري خلاصول هم ګرانیږي ددی پشان نور کارونه هم.

دالله په لاره کې چې کومه لومړی توره لـه غلاف نه ویستل شوې ده هغه دزبیر بن العوام رضی‌الله عنه توره وه اوداپه مکه کې داسلام په لومړیو ورځو کې و، زبیربن عوام دمکې یوځوان و چې عمر یې دولسوکلو ته رسیدلی و. آوازه خوره شوه چې رسول الله ﷺ په مکه کې تښتول شویدی نو زبیر خپله توره راویستله اودرسول الله صلی‌الله علیه وسلم په لټې پسې ووت ، ګوري چې رسول الله صلی‌الله علیه وسلم روغ رمټ دی اوهیڅ تکلیف ورته نشته . رسول الله ﷺ هغه اودهغه توری لپاره دعاوکړه زبیر بن عوام رضی‌الله عنه په اصحابوکې بهادر اوقوي اصحابي و. دتورې ښه ګذارونه به یې کول اودهغه دتورې ګذارونه داسلام له مشهورو ګذارونو څخه دي.

له نبی کریم ﷺ سره څو توری وې چې دځو نومونه یې دادي:

۱ـ الماثور: داهغه صلی‌الله علیه وسلم ته له پلار نه پاتې شوې وه اوله ځان سره یې مدینې ته راوړی وه.

۲ـ العضبُ : نبی کریم صلی‌الله علیه وسلم چې کله دبدر غزاته تشریف وړلو نو حضرت سعد بن عباده رضی‌الله عنه داتوره دهغه صلی‌الله علیه وسلم په خدمت کې پیش کړې وه.

۳ـ ذو الفقار : داد بدر په غزاکې دغنیمت په مال کې ورته په لاس ورغلې وه اوپه تولو جنګونو کې له نبی کریم ﷺ سره وه.

۴ـ الصمصام : دا ورته عمر بن معدی کرب الزبیدی رضی‌الله عنه هدیه کړې وه.

۵ـ القلعی ددی تورې نسبت دعربي کوچیانو دقلعه نومې ځای ته دی .

۶ـ البتار : (ښه کوتره کوونکې).

۷۔ الحتف: مرګ ته وړل کېږي. دغی توري به هم مرګ ته کشول کول.

۸۔ الرسوبْ : ددښمن په بدن کي ډوبیدونکي توره.

۹۔ الْمِخْذَم . غوڅوونکې توره.

۱۰۔ اَلْقَضِيْبُ : ډېر زیات کټ کوونکي.

اونبی کریم صلی الله علیه وسلم پنځه نیزی هم درلودي:

له نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره یو برچه هم وه چې البتعه نومېده. اویوه لویه برچه یې هم درلوده چې نوم یې البیضاو. لدینه علاوه یوه بله وړه برچه یې هم درلوده چې نوم یې العنزه وه رسول الله صلی الله علیه وسلم به دتګ اوراتګ په وخت کې پخپل لاس کې ګرځوله اوداختر په ورځ به له نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره سړي ګرځوله په هغی باندې تکیه کوله . درسول الله صلی الله علیه وسلم مخې ته به یې کینبود اولمونځ به یې ورته کاو. یعنې ستره به یې ترې جوړه کړه .

له نبی کریم ﷺ سره داوسپنې جنګي ټوپی هم وې چې دیوی نوم الموشج اودبلې نوم السبوغ و. اودا دمکې دفتحې په ورځ حضرت محمدصلی الله علیه وسلم پر سرمبارک وه.

رسول الله صلی الله علیه وسلم یوډال هم درلود چې نوم یې الزلوق و. ددی معنی ده خوېدل یعنې دتورې ګوزار به ترینه خویده. لدینه علاوه دوه نور ډالونه یې هم درلودل.



# دوه ویشتم باب

## دالله په لاره کې دټپي کیدو فضیلت اودځینو ټپي شویو حضراتو بیان

(( عن ابی هریرة رضی‌الله عنه عن النبی صلی‌الله علیه وسلم قال: لایکْلَمُ اَحَدٌ فی سبیل الله ، والله اَعْلَمُ بِمَنْ یکلمُ فی سبیله اِلاَّ جَاءَ یومَ القیامةِ ، وجُرحُه یَثْعَبُ ، اللون لونُ الدَّم والریحُ ریح المسك.[1] ))

له ابی هریره رضی‌الله عنه نه روایت دی چې نبی کریم صلی‌الله علیه وسلم وفرمایل: له تاسونه چې کوم یو کس دالله په لاره کې زخمي شي. اوالله ښه پوهیږي په هغه چاچې دهغه په لاره کې زخمي شي. مګردقیامت په ورځ به هغه په داسې حالت کې راشي چې له زخمونو نه به یې وینې روانی وي.رنګ به یې دوینې وي خوبوی به یې دمشکو وي.

دبخاري او مسلم په بل روایت کې راغلي دي چې هر یو زخم چې مسلمان ته دالله په لاره کې ورسیږي دقیامت په ورځ به پداسی حالت کې راځي. لکه په نیزه چې اوس وهل شوې وي له بدن نه یې وینه روانه وي. رنګ به یې دوینې وي خوبوی به یې دمشکو وي.[2] ابن دقیق العبد رحمه الله علیه وایي :چې دقیامت په ورځ شهید په داسې حالت کې راځي چې له زخم نه یې وینه روانه وي نو ددی حکمت دادی چې دظالم دشمن پر خلاف ګواهي ده چې دی دهغه له لاسه شهید شویدی. اوبل داچې هلته ټولو ولاړو خلکو ته دهغه دشهادت شرف معلوم شي چې له وینې نه یې هم دمشکو بوی خي.

---

[1]ـ اخرجه البخاري برقم : ۳۸۰۳ . ومسلم برقم : ۱۸۷۶ .

[2]ـ اخرجه البخاري برقم : ۲۳۷ ومسلم ۱۸۷۶

(( و روى أبـوداود والترمـذى والنسـائي وابـن ماجـه : عـن معـاذبن جـبل رضـىالله عـنه عـن النـبى صلىالله عليه وسلم قا ل: (( مَنْ قاتلَ فىسبيل الله فُـواقَ ناقـة ، فقـد وجـبت لـه الجنة ، ومَنْ سأ لَ الله القتلَ من نفسه صادقاً ثم مـات أو قُـتِلَ ، فـإنَّ لـــه أجرَ شهيد ، وَمنْ جُرح جرحًا فى سبيل الله ، أونكب نَكـبةً ، فإنهـا تجـىءُ يوم القيامة كأغزرِ ماكانت ، لونُها لونُ الزعفرانِ ، وريحُها ريحُ المسك. وَمَنْ خرجَ به خُرَاجُ فى سبيل الله ، فإنَّ عليه طابعُ الشهداء.[1] ))

لـه معـاذ بـن جبل رضىالله عنه نه روايت دى هغه وايي چې محمدصلىالله عليه وسلم وفـرمايل: څوک چې دالله په لاره کې داوښې دلوشلو دوخت په برابر جهاد وکړ نو هغه لپاره جنت واجب شو اوچاچې په پوره صداقت سره لـه الله تعـالى نه دشهادت مرګ وغوښت بياپخپل مرګ مړشو اوياقتل کړى شو نو هغه لپاره دشهيد اجر ورکول کيږي.

اوڅوک چې دالله په لاره کې ددښمن په سلاح باندى زخمي شي اويا له وسلې پرته په بل شي زخمي شي لکه کانړي وغيره په ذريعه زخمي شي نوهغه به دقيامت په ورځ په داسې حالت کى راځي چې په کوم حالت کې يې لـه زخم نه زياته وينه بهيدلې وي . رنګ به يې دزعفرانو پشان وي اوبوى به يې دمشکو دبوى پشان وي اودچاپه بدن چې دالله تعالى په لاره کې دانې وخيژي نوپرهغه به دشهيدانو مهرولګول شي.

(( وروى الترمـذى عـن أبـى أمامـة رضـىالله عـنه ، عن النبى صلىالله عليه وسـلم قـال : (( ليـس شيءٌ أحبُّ إلى الله من قطرتَيْن وأثرَيْنَ: قطرةِ دُموعٍ من

[1]ـ سنن ابي داود : ٣/ ٤٦ . وسنن الترمذي : ٣/ ١٠٢. وسنن النسائي : ٦/ ٢٥ ـ ٢٦ وسنن ابي ماجه : ٢/ ٩٣٣ ـ ٩٣٤ والحديث صحيح .

خشية الله ، وقطرة دمٍ يراقُ فى سبيل الله. وأمّا الاثران: فأثرٌ فى سبيل الله ، وأثرٌ فى فريضةٍ من فرائضِ الله.[1] ))

له ابى امامه رضی‌الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی‌الله علیه وسلم وفرمایل : په الله تعالی باندې له دوه څاڅکواوله دوه نښو او اثرونونه زیات بل څه ډېر ګران نه دي. یودسترګودهغه قطره اوښکو ده چې دالله لـه وېرې نـه تویه شي اوبله دوینې هغه څاڅکی ده چې دالله په لاره کې تویه شي اوله دوه اثرونو نه یو هغه اثر دی چې دالله په لاره کې رامنځ تـه شوی وي لکـه ( زخمي کیدل او دانی وغیره ) اوبله هغه نښه دی چې دالله لـه فرائضونه دیو فرض د اداکولو نه جوړه شوي وي ( لکه په ژمي کې په یخو اوبو باندی داودس کولو له وجهې لاسونه او پښې چاودی شي ).

حسن بصری رحمه الله علیه فرمایي چې دوه څاڅکي اودوه غړپونه داسې دي چې هغه په الله تعالی باندې ډېرې ګرانې دي یوه دغصې هغه غړپ دی چې یو بردبار سړی یې دالله درضا پـه خاطر څکي اوبـل دمصیبت هغـه دردونکي غـړپ دی چې دالله بـنده ورباندې صبر او زغم کوي.

پـه الله تعالی باندې دوینې لـه هغـه څاڅکي نه چې یواځې دالله درضا پـه خاطر فی سبیل الله تویـه شوې وي بـل څه ګران نـه دي اوبـل داوښکې هغـه څاڅکې دی چی پـه نیمـه شپه کې ذسجدی پـه حالت کې دبنده له سترګو نه روانه شي اوپخپل ځای کې له الله تعالی نه پرته بل څوک نه ویني.

(( وَعَنْ عائشـة رضی‌الله عنها قالت: كَانَ ابوبكر رضی‌الله عنه اذا ذكر يوم احد قـل: " ذلـك يومٌ كُلُّهُ لطلحة " يعنى طلحة بن عبيدالله. كنتُ اول من فاء فرأيْتُ رجـلاً يقـاتل مـع رسـول الله صلى‌الله عليه وسلم دو نه فقلت : كن طلحة . حيث

---

[1] سنن الترمذي : ۳/ ۱۰۹ ، والحديث حسن ؟

فاتنی هذ الموقف. فلاذا بطلحة بضع وسبعون ، بين طعنة ورمية وضربة ، فاصلحنا من شانه . [1]))

حضرت عائشه رضی‌الله عنها نه روایت دی چی کله به حضرت ابوبکر صدیق رضی‌الله عنه داحد دغزا یادونه کوله نو فرمایل به یې، هغه ورځ ټوله دحضرت طلحه رضی‌الله عنه وه ، له ټولو نه وړاندې واپس راتلونکې سړی زه وم، کله چې زه واپس راغلم نوومې لیدل چې یوسړی دحضرت محمدصلی‌الله علیه وسلم مخې ته له کافرانو سره په جنګ بوخت دی. ما وویل یقیناً داسړی به طلحه رضی‌الله عنه وي چې هغه شرف یې ترلاسه کړ کوم چې له مانه پاتی شو . په دی ورځ دحضرت طلحه رضی‌الله عنه په بدن باندې له ۷۰ اویاو نه زیات دنیزو، غشو ، اونور زخمونه وو بیایې مونږ درملنه وکړه او ملهم او پټی مو ورباندی ولګوله .

قیس بن ابی حازم فرمایلی دي چې مادطلحه رضی‌الله عنه لاس ولید چې شل شوې و داهغه لاس و چې په هغه سره یې داحد دغزا په ورځ دمحمدصلی‌الله علیه وسلم دفاع کړی وه.[2]

عروه بن زبیر وایي چې دزبیر په بدن باندې دتورې درې ګوزارونه اوټپونه وو یوټپ دهغه رضی‌الله عنه په وږه باندې و هغه دومره ژور و چې ما به خپلې ګوتې پکې ننه باسلې. دوه ګوزارونه دبدر په ورځ ورته لګیدلې وو اویو ګوزار دیرموک په ورځ .[3]

انس بن مالک رضی‌الله عنه وایي چې ابودجانه رضی‌الله عنه دیمامی دجنګ په ورځ دننه باغ ته ودانګل خوپښه یې ماته شوه، مګر له دې سره سره له کفارو سره په نره ترهغه وجنګید ترڅو چې دهغوی دلاسه شهید شوی نه و.معاذ ابن عمروبن الجموح رضی‌الله عنه وایي چې زه دبدر دغزا په ورځ ابوجهل پسې ورغلم. کله چې ماته موکه پیداشو نو ماپرهغه برید وکړ اوپښه مې ورته دپنډۍ له منځ نه غوڅه کړه. په دی وخت

---

[1] ــ المغازي للواقدي : ١/ ٢٤٦

[2] ــ سير اعلام النبلاء : ١/ ٢٦

[3] ــ سير اعلام النبلاء : ١/ ٥٢

له شاطرف نه دابوجهل زوی عکرمه زه په وړه باندی په توره ووهلم اولاس یې راته غوڅ کړ. زمادغه لاس زمابدن پورې ځوړندو. دهغه په دی وار سره زه له ابوجهل نه وروسته شوم اوټوله ورځ په همدغه ځوړند لاس سره له کفارو سره جنګیدم خوکله چې ډیر زیات په درد شو او په تکلیف یې کړم نو ماپدغه لاس باندې پښه کیښود اوپه زور سره مې راښکود اوله بدن نه مې جداکړ.[1] جعفربن عبدالله بن اسلم فرمايي چې دیمامې جنګ په ورځ له ټولونه مخکې حضرت ابو عقیل رضی‌الله عنه ددښمن مقابلې ته وړاندی شو. ددښمن له لورې یوغشې راغې اودهغه د ولي اوزړه ترمنځ ولګید هغه غشي ترینه وویستل شو خو ګڅ اړخ یې ډیر سخت زیانمن شو. مګربیاهم هغه رضی‌الله عنه په خپلو خپلو ځان خیمې ته ورساو. کله چې دجنګ میدان ښه ګرم شو او مسلمانان له ماتې سره مخامخ شول نو حضرت معن بن عدی رضی‌الله عنه انصاروته آواز وکړ چې ای انصارو! دالله نه وویریږئ له الله نه وویریږئ اوپه دښمن باندې یرغل وکړئ. دهغه دا آواز چې حضرت ابوعقیل رضی‌الله عنه ترغوږشو هغه نیغ ودرید. حضرت عبدالله بن عمررضی‌الله عنه فرمايي چې ماله هغه نه پوښتنه وکړه چې تاسي چیرته ځئ؟ هغه راته وویل : آواز کوونکې زمانوم آخستی دی، ماورته وویل دهغه مقصد خوزخیمان نه دي. هغه راته وویل چې زه هم دانصارو له ډلې څخه یم، زه به ضرور دهغه آواز ته ځان رسوم که څه هم په خپلو خپلو هم وي. هغه خپله ملا وتړله او توره یې اوچته کړه او روان شو. په زوره زوره یې آوازونه شروع کړل چې ای انصارو! نن دحنین پشان راوګرځئ اوپردښمن کلک یرغل وکړئ. حضرت عبدالله ابن عمر رضی‌الله عنه فرمايي چې په دی جنګ کې تورې له یوبل سره وجنګیدلې اود حضرت ابوعقیل ټپې شوې لاس له اوږې نه غوڅ شو. ماورته وویل ای ابو عقیله! هغه راته په کمزوري آواز سره ځواب راکړ او پوښتنه یې رانه وکړه چې کوم لوری له ماتې سره مخامخ دی؟ ماورته وویل : مبارک دی شه دالله دشمن مسیلمه کذاب ووژل شو. هغه چې زماداخبره واوریده نو ګوته یې داسمان په طرف پورته کړ دالله تعالی شکر یې اداکړ او شهیدشو.

---

[1] ـ سیر النبلاء ۱/ ۲۵۰ـ ۱۵۱

ابن عمر رضی الله عنهما فرمایي چې مادغه کیسه حضرت عمر رضی الله عنه ته وکړه، هغه رضی الله عنه وفرمایل: پرهغه دی دالله تعالی رحمتونه وي هغه دشهادت په لټه کې لګیدلي و تردی چی دشهادت لوړه مرتبه یې ترلاسه کړه.

له حنظله بن ابی سفیان نه روایت دی چی دابو حذیفه آزادکړی شوي غلام سالم رضی الله عنه غوښتنه وکړه چی دیمامې دجنګ په ورځ بیرغ هغه ته ورکړی شي ؟

خلکو ورته وویل : مونږ وویریږو که تاته بیرغ درکړو نو ستاله خوانه به له څه خطر او ویری سره مخ شو نو بل چاته به یې ورکړی هغه رضی الله عنه وفرمایل : که داسې یم نوبیاخودقرآنکریم بدعالم یم. کله چې هغه بیرغ په لاس کې ونیو نو ښي لاس یې غوڅ کړی شو. هغه بیرغ فوراً په ګڅ لاس کې ونیو. دښمن چې دهغه ګڅ لاس پری کړ نوبیرغ یې دغاړی په مرسته له سینې سره کلک کړ او دا آیتونه یې شروع کړل.

﴿وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ أَفَإِيْن مَاتَ أَوْ قُتِلَ انْقَلَبْتُمْ عَلَى أَعْقَابِكُمْ﴾ [ ال عمران ١٤٤ ]

اومحمدصلی الله علیه وسلم خوصرف یورسول دی.لدېنه مخکې هم ډېر رسولان تیرشوېدي. پس که هغه مړ اویا ووژلې شي نو تاسې له اسلام څخه بیرته راګرځیږئ ؟

﴿وَكَأَيِّنْ مِنْ نَبِيٍّ قَاتَلَ مَعَهُ رِبِّيُّونَ كَثِيرٌ فَمَا وَهَنُوا لِمَا أَصَابَهُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَمَا ضَعُفُوا وَمَا اسْتَكَانُوا وَاللَّهُ يُحِبُّ الصَّابِرِينَ﴾ [آل عمران١٤٦]

دډیرو پیغمبرانو په ملتیا دخدای جل جلاله ډېرو دوستانو جهاد کړیدی . دهغو ستونزو له کبله چی دالله په لیار کې ورته رسیدلې وي نه بې زړه او سست ، نه ناتوانه اونه سرټیټې شوي وو الله پاک صبر کوونکي خوښوي.

کله چې هغه رضی الله عنه پرزمکه وغورځیدلونو له خپلوملګرونه یې پوښتنه وکړه چې په ابوحذیفه بن عتبه باندې څه چل وشو؟ هغوی ورته وویل چې هغه شهیدشو. بیایې پوښتنه وکړه چې په فلانکي باندې څه چل وشو؟ په ځواب کې ورته وویل شو چې هغه هم شهیدشو. هغه رضی الله عنه وفرمایل چې ماددغو دواړو په منځ کې

خملوئ[1] . لـه حضرت یزیدبن السکن رضی‌الله عنه نه روایت دی چی کله د احد دغزا په ورځ جنګ سخت شو اودښمن رسول الله صلی‌الله علیه وسلم خواته ورسید. په هغه ورځ رسول الله صلی‌الله علیه وسلم دوه زغرې آچولې وې اوپه دی وجه هغه درون‌دو. دښمن چی محمدصلی‌الله علیه وسلم ته نژدې شو نو حضرت معصب بن عمیر رضی‌الله عنه دهغوی مقابله وکړه اولری بې وزغلول تردی چی شهید شو. حضرت ابو دجانه هم داسلام دښمنان په شاوتمبول خو هغه هم کلک ټپي شو. پخپله دحضرت محمدصلی‌الله علیه وسلم مبارک مخ ټپي اوغاښونه یې شهیدان شول دهغه صلی‌الله علیه وسلم مبارکې شونډې او اننګې ټپي شوې وې. په دی وخت هغه صلی‌الله علیه وسلم وفرمایل :

نن څوک داسې شته چې زماپاره خپل ځان په الله تعالی باندې خرڅ کړي ؟

دمحمدصلی‌الله علیه وسلم ددغې خبرې په آوریدو سره سم دانصارو پنځه ځوانانو سنګرته راودانګل په دغو ځوانانو کې حضرت زیاد بن سکن رضی‌الله عنه هم و. دغه ټول ځوانان شهیدان شول خو حضرت زیاد ټپي شو او پر زمکه راوغورځید په دی مهال مسلمانانو په دښمن یرغل وکړ او دحضرت سکن رضی‌الله عنه له څنګ نه یې کافران په منډو وزغلول[2]

له زید بن ثابت رضی‌الله عنه نه روایت دی وایي چې داحد په ورځ زه محمد ﷺ دی لپاره واستولم چې سعد بن الربیع رضی‌الله عنه ولټوم ، هغه ﷺ راته وفرمایل چې که دی ولید نو زما سلام ورته ورسوه او ورته ووایه چې محمدصلی‌الله علیه وسلم درته وایي چې څنګه یې څه احساسوې. زه دشهیدانو په منځ کې ننوتم او هغه مې اخوادی خوا راولټاو اوپه داسې وخت کې ورته ورسیدم چی آخري سلګی یې وهلې اوپه بدن باندې اویا ټپونه جوړشوي وو. مادنبی کریم صلی‌الله علیه وسلم له سلام او کلام نه خبر کړ. هغه وویل په رسول الله صلی‌الله علیه وسلم او پرتادې سلام وي. هغه صلی‌الله علیه وسلم ته ووایه چې سعد وایي . ای دالله رسوله! الله دی تاته زموږ له طرف نه

---

[1]ـ الجهاد لابن المبارك : ۱ . ۱۲۳

[2]ـ اجهاد لابن المبارك : ۱ . ۱۰٤ ـ ۱۰۵

غوره بدله درکړي چې یونبی ته دهغه دامت لـه طرف نه ورکوي اوزه دجنت بوی محسوسوم خپل قوم انصارو ته هم زمالـه لوری سلام ورسوه او ورته ووایه چې سعد تاسوته داخبره کوي چې کـه چیرته نبی صلی‌الله علیه وسلم ته څه تکلیف ورسید اوتاسې ژوندی وئ نو دالله په نزد به ستا سې هیڅ قسم عذرقبول نکړی شي. داخبره یې وکړه او روح یې الله ته وسپاره [۱] .له جنګونو نه په یوجنګ چې په کې زرګونه مسلمانان شهیدان او ټپیان شول په عراق کې دجسر جنګ و.

په دغه جنګ کی دمسلمانانو قوماندان ابوعبید بن مسعود الثقفی رضی‌الله عنه و. دمسلمانانو شمیر تقریبًا شپږ زرو شاوخواوته رسید. درستم قوماندان بهمن جاذویه ابوعبید بن مسعود ته لیک واستاو چې یا تاسې له دریاب نه راپورې اوځئ مونږ به څه نه درته وایواویابه مونږ له دریاب نه پورې اوځو.تاسو مونږ ته څه مه وایاست .

ابوعبید وویل : چې داخلک په مرګ کې لـه مونږ نه زیات زړه ور نه دي مونږ باید له دریاب نه پورې واوړو. مسلمانان په یوه داسې تنګه لاره فارسیانو ته دجګړې لپاره له دریاب نه پوری وتل چې بېرته تیښته پرې ممکنه نه وه . هلته د دواړو ترمنځ کلک جنګ شروع شو ټولـه ورځ سخته جګړه روانـه وه . لـه دښمنانو سره فیلان وو اود مسلمانانو اسونو پرهغوی دورتلو جرئت نه شو کولی. ابوعبید خپل لښکر ته وویل چې په فیلانو باندې یرغل وکړئ. ابوعبید رضی‌الله عنه پخپله په یو سپین فیل باندې چې په ټولو فیلانو کې غټ و حمله وکړه اودهغه خلتم یې غوڅ کړ خوفیل په ابوعبید باندې حمله وکړه هغه یې پائمال کړپرې ورځملاست او شهید یې کړ.

کله چې لښکر خپل قوماندان ولید چې فیل هغه پښولاندې کړیدی نو دهغوی همتونه کمزوری شول په شاشول اود پل طرف ته یې مخه کړه. په دی ورځ څلور زره مسلمانان شهیدان شول او دوزره ترینه روغ رمټ ووتل.

د مسلمانانو یوشخص پل ته نژدی په یو انصاري تیرشو چې هغه راڅښیدو او لاسونه اوپښې په تورو غوڅ کړي شوي وو اوهغه دالله تعالی دکلام دا آیت شریف تلاوت کاو.

---

[۱] ـ المستدرك للحاكم : ۳/ ۲۰۱

﴿ فَأُوْلَـٰئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ وَحَسُنَ أُوْلَـٰئِكَ رَفِيقًا ﴾ [. النساء : ٦٩. ]

دوی به لـه هغو خلکو سره وي چی الله ورباندې خپل لورینه کړیده چې هغوی انبیاء، صدیقین، شهداء او صالحان دي اوداډېر ښه ملګري دي بیاهغه رضی‌الله عنه خپلې آخري سلګی ویستلې او شهید شو.

مسلمانان دی په دی خبره ځان ښه پوه کړي چې په جهاد کې ټپي کیدونکي مجاهد ته دنورو ټپیانو پشان درد او تکلیف نه رسیږي. شهید فی سبیل الله صرف دومره غوندې درد محسوسوي لکه چې میږي ورباندې چک لګولی وي. کله چې دشهید داحال وي نودزخمي اندازه هم لګولې شئ ځکه چې دزخم او مړینې ترمنځ خو داسمان او زمکې فرق دی .

اودایوښکاره حقیقت دی لدینه یواځې هغه خلک انکار کوی چې تجربه یې نه وي. داخبره له عقل نه هم لری نه ده ځکه چې کله دغصې اوغیرت کیفیت په انسان باندې سخت شي نو هغه پخپل ځان کې ډیر قوت او غښتلتیا محسوسوي. اوپه درد اوتکلیف باندې نه پوهېږي. همدغه راز کله چې دوه سړي ذاتي غصه یاغیرت باندې پخپلو منځوکې جګړه کوي نوهغوی ته دجوش او غصې لـه کبله دخپلو ډیرو سختو سختو ټپونو احساس هم نه کیږي اوهر یوله مرګ نه دځان ساتلو په کوشش کې وي چی مړنه شي. بیاکله چې لـه جنګ نه خلاص شي نو دټپونو په دردونو پوهېږي. نوبیابه دهغه سړي څه حال وي چې دالله تعالی اودهغه جل جلالـه ددین په خاطر غصه شي اودشهادت په لټه کې ووځي پخپل ایماني رڼاسره دالله تعالی هغه لوی فضل او نعمتونه هم نه یواځې په علم سره بلکې دحقیقت په سترګو ووینې چې دشهیدانو او ټپیانو لپاره برابرکړیدي، لـه دی سره دانس ابن النضر رضی‌الله عنه هغه خبره موافقه ده چې داحد دغزا په ورځ ویلی وو. واه زه احد ته نژدی د جنت بوی محسوسوم داخبره یې وکړه او مخامخ دمشرکانو په صف کې ورننوت او شهید شو.

دموصل ښار د یوې ښځې په اړه روایت دی چی کله دهغې پښه دجهاد په میدان کې او خویده نو نوک یې لـه بیخ نه جداشوهغی دخپلې پښې نوک دوتلو په حالت کې ولید

نو په خنداشوه. چاورته وویل ستانوک لـه منځه ځي اوته ورته خاندې؟ هغې وویل :
دثواب خوړوالی لـه مانه د درد تریخوالی ختم کړېدی.

روایت دی چې حیاش بن قیس القشیری دیرموک په جنګ کې په داسي حالت کې لـه کفارو سره جنګیدو چې یوه پښنه یې کافرانو په توري سره پری کړې وه هغه رضی الله عنه دروم ډېر کافران ووژل خو هغـه تـه دانـه و معلوم شوې چې پښنه یې غوڅه شوېده بیادجنګ لـه ختمېدو نه وروسته پوه شو چې پښنه یې غوڅه شوېده.



# درویشتم باب

# دالله په لاره کې دکافرو د وژلو فضیلت

الله تعالی پخپل کتاب قرآنکریم کې فرمایي :

﴿وَمَنْ يُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيُقْتَلْ أَوْ يَغْلِبْ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا﴾ [النساء :٧٤ ].

اوکوم سړی چې دالله په لاره کی جنگ وکړي پس هغه ووژل شي اویا غالب شي نو ژر ده چې موږ به هغه ته لوی اجر ورکړو.

الله تعالی په بل آیت کې فرمایي :

﴿ فَإِذَا لَقِيتُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا فَضَرْبَ الرِّقَابِ ﴾ [محمد :٤]

پس کله چې تاسې له هغوکسانو سره مخامخ شوئ چې کافران دي نوڅټونه يې ورباندې ووهئ.

((عن ابی هریرة ﷺ انَّ رسول الله ﷺقال:"لاَ يَجْتَمِعُ كافرٌ وقاتله فى النَّار اَبَداً ." [١]))

له ابی هریره ﷺ نه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلی دي : کافر اودهغه وژونکي به هیڅکله په اور کی نه یوځای کیږي .

سلمان بن ربیعه الباهلي ﷺ ویلي دي چې ماپخپله په دی توره په زغرو او جنگي خولیو کې بند سل کافران وژلي دي. هغوی ټولو له الله نه پرته دبل چاعبادت کاو. ماله هغوی نه هیڅوک تړل شوی نه دی وژلی.یعنې ټول مې په جنگ کې وژلي

---

[١] - مسلم : ١٨٩١ .

دحضرت عمر ﷺ دخپل خلافت په وخت کې هغه ته دکوفې د قضا منصب وسپارله بيا عثمان بن عفان ﷺ د ارمينې دغزا قوماندان مقرر کړ په همغې غزا کې هلته شهيدشو.[۱]

محمدبن سيرين وايي چې براء بن مالک ﷺ ستونې ستغ څملاست اوپه ترنم او وزن سره يې څه وويل، انس ﷺ ورته وويل : اې وروره دالله ذکر وکړه براء نيغ کيناست او ويې ويل : اې زما ورور انسه ! زه پخپل کټ کې نه مرکېږم مابه په ښکاره او په چيلنج سره سل مشرکان وژلي دي اوداله هغونه علاوه دي چې له چا سره يوځاى مې په شريکه وژلي دي .

دانس ﷺ په يوبل روايت کې دي چې براء بن مالک د شعر يو بيت وويل انس واتې ماورته وويل ورورهٔ ته شعرونه وايې کيدى شي داستا آخرې خبرې وي.

هغه وويل زه پخپل کټ کې نه مرکېږم ما سل مشرکان او منافقان پخپل لاس وژلي دي .[۲]

عمربن الخطاب ﷺ د براء بن مالک په اړه وليکل چې دادلښکر قوماندان مه جوړوئ ځکه چې دالښکر سختو ځايونو ته وړي[۳]. ( يعنى داډېر بهادر سړى دى اوپه وړاندى تللو او جنګيدو کې بلد دى ).

ديمامې په جنګ کې دمسيلمة الکذاب ملاتړې په يوه کلاکې ايسار وو اودروازه يې په ځان پسې بنده کړې وه هغه يې نه خلاصوله نو صحابه و براء ابن مالک رضى الله عنه په يوه ډال کې کيښناو او هغه ډال يې په نيزو باندى دکلا ديوال ته ورپورته کړ . هغه سمدستې ددروازې په ساتونکو ورټوپ کړ او جنګ يې ورسره پيل کړ آن چې دروازى ته ورسيد اوهغه يې خلاصه کړه. په دى ورځ دهغه په بدن له اتياو نه زيات ټپونه جوړ شوي وو.[۴]

---

[۱]- المصنف لابن ابي شيبه ٥/ ٣٢٠ .

[۲] - المرجع السابق : ٥/ ٣١٢

[۳]ـ المستدرك للحاكم ٣/ ٢٩١

[۴]ـ الاصابة لابن حجر : ١/ ١٤٣

کله چې دتستر په ښار کې مسلمانانو لـه فارسي لښکر سره جګړه وکړه نو مسلمانانو لـه براء بن مالک ﷺ نه غوښتنه وکړه چې هغوی ته لـه الله نه دعا وغواړي. ځکه چې دهغـه دعاقبليده. براء لـه خپل رب نه دعاوغوښت او ويې ويل :

ای ربه ! زه تاتـه ستاپه نـوم قسـم درکـوم چـې تـه مـونږ پرکفارو غـالـب کـړې اودهغـوی دځتهونو مونږ مالکان کړی ( يعنې هغوی زمونږ غلامان کړی ) اومالـه خپل نبی محمد ﷺ سره يوځای کړی. ( يعنی شهادت مې په نصيب کړې ). له دی نه وروسته هغه اودهغه لښکر پردښمن يرغل وکړ، فارسيانو سخته ماته وخوړله او براء بـن مالک ﷺ دشهادت اوچت مقام ترلاسه کړ.براء بن مالک ﷺ د جهاد ډېر زيات شوقي و مشري او اقتدار يې بالکل نه خوښاو.حضرت انس ﷺ وايي : کله چې ابوموسی اشعري ﷺ دبصری حاکم وټاکل شو نو حضرت براء بن مالک ﷺ لـه هغه سره دوزير په توګه ولېږل شو. ابوموسی اشعري ﷺ هغه ته وويل چې کوم کار دی خوښيږي هغـه راته وغواړه براء بن مالک ﷺ ورته وويل چې زه لـه تانه نه امارت غواړم اونه دخراج دترلاسه کولو مسوئليت اومشري ، ته ماته يواځې زما کمان، نيزه، توره او زغره راکړه چې جهاد ته لاړشم.[1]

(( عن انس بن مالك ﷺ ان رسول الله ﷺ : قال يوم حنين :"من قتل قتيلاً فلـه سَلَبُهُ فقتل ابو طلحة ﷺ يومئذٍ عشرين رجلاً من المشركين ، واخذ اسلابهم.[2] ))

لـه انس بن مالک ﷺ نه روايت دی چې رسول الله دحنين په ورځ وفرمايل : چاچې کوم کافر وواژه نودهغـه ټول سامان بـه هغـه ته ورکول کېږي ، حضرت ابوطلحه ﷺ په دی ورځ شل کافران ووژل اودهغوی ټول سامان يې ترلاسه کړ.

---

[1]ـ مصنف ابن ابي شيبة ۵/ ۳۱۲.

[2]ـ ابو داود : ۳/ ۱۶۲ والحاكم : ۳/ ۲۹۲ والحديث صحيح .

ابوالحسن المرادی لـه عـلي بـن بكـار نه روايت كوي هغه وايي: ماپه روم كې يومجاهد وليد چې كُلمی يې بهر وتلی وې اود اس په زين باندې پرې وتی وې. هغه خپلې كلمې بيرته په ګيډه كې دننه كړی اوبيايې پخپل پګړی سره خپله ګيډه كلكه وتړله. لدينه وروسته يي له دښمن سره جنګ شروع كړ اوله لسونه زيات روميان يې ووژل .



# څلیر ویشتم باب

## دشهادت غوښتنې اودښمن ته دزیان اړولو په موخه یواځې دیومجاهد، یا د ورکوټي ډلې ددښمن په لوی لښکرکې دورننوتلو او په هغوی باندې د برید کولو فضیلت

دالله تبارک وتعالی ارشاد دې:

﴿ كَم مِّن فِئَةٍ قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةً بِإِذْنِ اللَّهِ وَاللَّهُ مَعَ الصَّابِرِينَ ﴾.

[البقره : ۲٤۹ ].

دالله په حکم ډېرځله بیخي کوچنۍ ټولۍ په ډیرو لویو ډلو بریالی شویدي اوالله پاک دصبر کوونکو مل دی.

الله جل جلاله پخپل کلام قران کریم کی فرمایلی دي:

﴿وَمِنَ النَّاسِ مَن يَشْرِي نَفْسَهُ ابْتِغَاءَ مَرْضَاتِ اللَّهِ وَاللَّهُ رَءُوفٌ بِالْعِبَادِ ﴾ .

[ البقرة : ۲۰۷ ].

اوله خلکو نه ځینې کسان داسې دي چې دالله تعالی دخوښې دترلاسه کولو لپاره خپل ځان پلوري او الله په بندګانو ډېر مهربان دی.په دی آیت کی د( يَشْرِيْ ) معنی ده پلوري اوخرڅوي. لکه چې آیت شریف ( وشروه بثمَنٍ بَخْسٍ ) یوسف : ۲۰ ). خرڅ یې کړه په لږ پېسو سره.

دجمهورو علماو په نزد دا آیت د صهیب بن سنان الرومي ﷺ په باره کې نازل شوېدی. هغه ﷺ په مکه مکرمه کې اسلام قبول کړی و. کله چې مسلمانانو مدینې ته هجرت وکړ نو صهیب ﷺ هم هجرت وکړ. په لاره کې دمشرکانو له څوکسانو سره مخامخ شو هغوی غوښتل چې له هجرت نه یې منع کړي هغه ﷺ له خپلې سوارلۍ نه راکوزشو ټولې غشې یې له ترکش نه راوویستلې اوپه لاس کی ونیولې.

هغوی ته یې وویل : تاسې ماپیژنئ چې زه په تاسو کې له ټولو نه ښه غشي ویشتونکې یم. په الله قسم ترڅوپورې چې زماپه لاس کې یوغشی هم وي تاسې زما خواته نشئ راتلې. زه به داټول غشي په تاسو وولم. لدېنه وروسته ترڅوپورې چې زما توره زما په لاس کې وي نو ترهغه به زه له تاسو سره جنګیږم. له دینه وروسته چې تاسې له ماسره څه کول غواړئ وکړئ.

مشرکانو ورته ووېل مونږ تا تللوته نه پرېږدو. ته چې کله مکې ته راغلی وې نو غریب وې هیڅ درسره نه و. اوس چې مالدار شوې له دی ځای نه تښتې ؟ که ته خپل ټول هغه مال چې په مکه مکرمه کې ده مونږ ته راکړې نوتابه خوشې کړو. د دواړو ترمنځ په همدی خبره تړون وشو. حضرت صهیب ﷺ هغوته دخپل مال ادرس اوپته ورکړه او ترینه راغی په مدینه منوره کې درسول الله ﷺ څنګ ته راغی اوله هغه ﷺ سره یوځای شو. نو الله تعالی دغه پورتني آیت شریف نازل کړ. محمد ﷺ ورته وفرمایل : ای ابویحیی! تاد ډېرې ګټې وتې تجارت وکړ.

اوبیایې دا آیت ورته تلاوت کړ.

که څه هم دا آیت شریف دصهیب ﷺ په باره کې نازل شویدی لېکن یواځې هغه لپاره خاص ندی.

حافظ ابن کثیر دمشقي پخپل تفسیر کې ویلي دي چې دزیاترو مفسرینو په نزد دا آیت دټولو هغو مجاهدو لپاره نازل شویدې چې خپل ځان په الله تعالی پلوري اودهغه جل جلاله په لاره کې جهاد کوي لکه چې دالله تعالی ارشاد مبارک دی :

﴿إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ﴾. [ التوبة :۱۱۱ ].

بیشکه الله تعالی له مؤمنانونه دهغوی ځانونه او مالونه آخستی دي په دی چې هغوی لپاره جنت دی .

ابن عباس ﷺ فرمایلی دي : ﴿ وَمِنَ النَّاسِ مَن يَّشْرِىْ نَفْسَهُ ابتغآء مَرْضات الله﴾ .

اوځينې لـه خلکو څخه هغه دي چې خپل ځانونه دالله دخوښې دترلاسه کولو لپاره خرڅوي.

مجاهدينو خپل ځانونه په الله تعالى باندى په دى خرڅ کړيدي چې دهغه په لاره کې به جهاد کوي اوپه حق باندې به کلک ودريږي تردى چې مړشي اوله الله سره ووينې .

اصحابوکرامو بـه پـه دښمن باندې پـه داسې حالت کې حمله کوله چې خپل ځانونه به يې په الله خرڅ کړي وو.

هشام بن عامر الانصاري ﷺ ددښمن د دوه صفونو په منځ کې ودانګل اويرغل يې ورباندې وکړ. څه خلکودهغه دغه کار باندې تنقيد وکړ اوښه يې ونه ګاڼه.

دهغوى په دى خبره حضرت عمرﷺ ، حضرت ابوهريره ﷺ او نورو اصحابو رد وکړ اودا آيت شريف يې ولوست.

((وَمِنَ النَّاسِ مَنَ يَّشْتَرِىْ نفسهُ ابتغاء مَرْضَاتِ الله .[1]))

اوځينې لـه خلکو څه هغه دي چې خپل ځانونـه دالله دخوښې دترلاسه کولو لپاره خرڅوي.

مدرک بن عوف الاحمسي ﷺ وايي چې موږ لـه عمر ﷺ سره يوځای ناست وو چې دنعمان بن مقرن استازى راغى ، عمر ﷺ لـه هغه نه پوښتنه وکړه چې خلک په څه حال کې دي؟

هغه وويل چې فلانکى اوفلانکى شهيدان شويدي او نور نه پېژنم. عمر ﷺ ورته وفرمايل لاکن الله تعالى يې پيژني .

هغه وويل : اى امير المؤمنينه ! يوسړي خپل ځان په الله وپلورلو.

[1]ـ تفسير القران العظيم لابن كثير : ۱/ ۲٤۷

مدرک بن عوف وویل : په الله قسم چې دازما ماما دی خلک دهغه په هکله داګمان کوي چې هغه خپل ځان پخپله په هلاکت کې آچولی دی.

عمر ﷺ وویل : داخلک دروغ وايي . بلکې داله هغو خلکوڅخه دی چې آخرت یې ددنیاپه بدل کې واخست . [1]

ابن ابی شیبه پخپل مصنف ( یعنې کتاب )کې روایت کوي چې دختیځ یعنی دلمرختلوله لورې دکفارو یوه پوځي قافله راغله دانصارو یوکس هغه ولیدله پرهغه یې یرغل وکړ اوټول یې دړې وړې او تیت او پرک کړ روغ رمټ ترېنه ووت او بیرته یې ورباندې برید وکړ، بیا ورنه ووت او ورباندی برید یې وکړ داکاریې دوه درې کرته وکړ.

سعدبن هشام الانصاری ﷺ دغه کیسه ابی هریره ﷺ ته وکړه. ابوهریره ددغسې کیسي له آوریدونه وروسته دغه آیت شریف تلاوت کړ:

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَشْرِىْ نَفْسَهُ ابْتِغَاۤءَ مَرْضَاتِ الله . [2]

حاکم پخپل مستدرک کی له ابی اسحاق السبیعی نه روایت کوي چې یوسړي له براء بن عازب ﷺ نه پوښتنه وکړه چې: ای ابا عماره! آیادا آیت ﴿ ولا تلقوا بایدیکم الی التهلکة ﴾ دهغه چاپه اړه کې نازل شویدې چې ددښمن له لوی لښکر سره مخامخ شي له هغوی سره جنګ وکړي او ووژل شي ؟ هغه ﷺ ورته فرمایل: نه. بلکې دا آیت دهغه چا په باره کې نازل شویدی چه ګناه وکړي او بیا ووايي چې الله زما لپاره بخښنه نه کوي . [3]

اوپه بل روایت کې راغلي دي چې یو سړي براء بن عازب ﷺ ته ووېل : که چېرته زه په دشمن باندی په یواځې ځان برید وکړم او هغوی ما ووژني نو ایا ماخپل ځان

---

[1]ـ المصنف لابن ابي شيبة : ٥/ ٣٠٣ وسنده صحيح .

[2]ـ المرجع السابق ٥/ ٣٢٢ واسناده صحيح .

[3]ـ المستدرك للحاكم : ٢٧٥ـ ٢٧٦

پخپله هلاکت ته سپارلی دی ؟ هغه ﷺ ورته وفرمایل نه . ځکه چې الله تعالی خپل رسول ته فرمایي :

﴿ فقاتل فی سبیل الله لاتکلّفُ اِلاَّ نفسك ﴾ [النساء : ۸٤].

پس ته دالله په لاره کې قتال کوه ته یواځې دخپل ځان مکلف یې.

دغه آیت چې تا تلاوت کړ دنفقې په باره کې دی.

په دریم روایت کی راځي چې یوسړي براء بن عازب ﷺ ته وویل:

هغه سړی چې توره په لاس په داسې لښکر حمله وکړي چې زروتنو ته یې شمیره رسیږي نو ایادغه سړی خپل ځان پخپله دهلاکت کندې ته غورځولی دی ؟

براء ﷺ وویل نه : بلکې دادهغه سړي په باره کې دی چې ګناه وکړي اوبیا ووایي چې مالپاره توبه نشته.

له ابو عمران اسلم بن یزید التجیبی ـ نه روایت دی هغه وایي چې موږ په روم کی وو زموږ په خلاف یولوی لښکر راووت دهغوی دمقابلې لپاره مسلمانانو یولښکر غالبًا دهغوی په برابر اویاله هغوی نه زیات میدان ته ووت. دمصري مجاهدینو قوماندان عقبه ابن عامر رضی الله عنه و او دمسلمانانو عمومي قوماندان فضاله ابن عبید رضی الله عنه و.

له مسلمانانو نه یوسړی درومیانو په صف باندې برید وکړ او دهغوی په منځ کې ننوت په دی وخت خلکو شور وکړ او ویې ویل سبحان الله خپل ځان یې پخپله دهلاکت په کنده کې واچاو.

ابوایوب الانصاري ﷺ ودرید او ویې فرمایل : ای خلکو! تاسې داسې تاویل کوئ حال داچې دا آیت زموږ دانصارو په باره کې نازل شویدی. کله چې الله اسلام قوي کړ او کومکیان یې ډېر شول نوله زمونږ نه ځینو خلکو پخپلو منځو کې له رسول الله صلی الله علیه وسلم نه په پټه یوبل ته وویل زموږ مالونه ضائع شول، اوالله تعالی اسلام ته عزت ورکړیدی او کومکیان یې ډېر شویدي. که موږ پخپلو کورو کې

واوسو اوخپل مالونه بیرته ترلاسه کړونوهیڅ بدي نشته ، په دی وخت الله تعالی پخپل نبی محمد ﷺ باندې دا آیت نازل کړ:

﴿وانْفِقُوْا فی سبیل الله ولاتُلْقُوْا بایدیکم اِلَی التهلکة﴾ .

له هلاکت نه مراد دمال دګټلو لپاره په کورو کې کیښناستیدل اودجهاد پریښودل دی.

ابو ایوب ﷺ دالله په لاره کې ترهغه په جهاد کی مشغول اوبوخت و چې په روم کې وفات شو او همغلته خاوروته وسپارل شو.[1] بیهقي په دی باره کې مستقل باب قائم کړیدی چې دیوسړي اویاله یو نه دزیاتو سړو دجهاد لپاره لیږل جائز اوصحیح دی اګرچې غالب ګمان داوي چې دوی ددښمن له لاسه وژل کیږي.[2]

بیهقي لـه مجاهد نه روایت کړیدی هغه وايي چې رسول الله ﷺ عبدالله بن مسعود اوخباب رضی الله عنهما دجنګ لپاره لیږلي وو اودحیه بن خلیفة الکلبی یې ځانله په یواځې ځان دجهاد لپاره لیږلی و.[3]

همدغـه راز محمـد ﷺ دوه تـنه عمـرو بـن امیـه اود انصارو یوسړی دجنګ لپاره استولي وو اوعبدالله بن انیس یې ځان ته په یواځې تن جنګ ته لیږلي و.

(( عَـن یـزید ابـی عـبیدقل : قـلتُ لسـلمة بن الاکوع ﷺ: علی ایِّ شَيٍ بایعتم رسول الله ﷺ ؟

قل عَلَی الموتِ. ))

---

[1]_ سنن الترمذي : ٤ / ٢٨٠ وسنن ابي داود ٣/ ٢٧ ومستدرك الحاكم : ٢/ ٢٧٥ والحديث صحيح .

[2]_ السنن الكبرى للبيهقي : ٩/ ٩٩.

[3]_ المرجع السابق : ٩/ ١٠٠ وسنده صحيح .

له یزید بن ابی عبید ﷺ نه روایت دی هغه وایي چې ما سلمه بن الاکوع ﷺ ته وویل چې تاسې لـه رسول الله ﷺ سره په کوم یو څیز بیعت کړیدی . هغه ﷺ راته وویل په مرګ.

((عن انس بن مالك ﷺ قال : غاب عمي أنس بن النضر عن قتال بدر،فقال: يارسول الله: غبت عن أول قتال قاتلتَ المشركين ، لئن أشهدني الله قتال المشركين ، ليريَنَّ الله ما أصنع فلما كان يو م أحد ، وانكشف المسلمون ، قال: اللهم أنى اعتذرُ إليك مما صنعَ هؤلاء _ يعني المسلمين _ وأبرأ إليك مما صنع هؤلاء _ يعنى المشركين _ ثم تقدم للمعركة فاستقبله سعدبن معاذ: فقال: اسعدبن معاذ: الجنة ورب النضر، إنى أجدُ ريحها دون أحد.

قل سعد: فما استطعت يارسول الله أن أعرف ماصنع .

قال أنس: فوجدنا به بضعًا وثمانين ضربةً بسيف ، أو طعنةً برمح، أو رميةً بسهم ، ووجدناه قد قُتِل ، وقدمَثَّلَ به المشركون. فما عرفَهُ أحدٌ إلا أخته ببنانه. وكنانرى أو نظن أنَّ هذه الأية نزلت فيه وفى اشباهه من المؤمنين .))
﴿من المومنين رجالٌ صدقوا ماعاهدوا الله عليه ﴾ (١) [الاحزاب: ٢٣.]

ژباړه :له انس بن مالک ﷺ نه روایت دی هغه وایي چې زماتره انس بن النضر دبدر په غزاکې غیرحاضرو. هغه محمد ﷺ ته وویل : ای دالله رسوله ! زه له مشرکانو سره په لومړی جنګ کې غیر حاضروم، که چیرته زه له مشرکانو سره په قتال کې حاضرشوم نو الله تعالی به له مشرکانو سره زما جنګ ووینې چې څه ورسره کوم.

(١)_ اخرجه البخاري برقم : ٤١٦٩ . ومسلم برقم : ١٨٦٠.

کله چې داحد دغزا ورځ راغله او مسلمانان جنګ ته ووتل نو هغه وویل : ای الله زه عذر وړاندې کوم دهغه څه چې دغو مسلمانانو وکړ ( یعنی دشکست دخوړلو) اوبیزاري ښکاره کوم له هغه څه نه چې دغه مشرکان یې کوي بیادجنګ لپاره وړاندې شو، مخې ته یې سعد بن معاذ راغی اوهغه ته یې وویل:

ای سعدبن معاذه ! الجنة ورب النضر، انی اجد ریحها دون احد.دنضر په رب قسم چې زه په احد کې دجنت بوی محسوسوم .

سعد وویل : یارسول الله ﷺ ! زه ددې توان نه لرم چې هغه څه کړي هغه درته بیان کړم .

انس ﷺ وویل مادهغه په بدن کې له اتیاونه زیات دتورې ګوزارونه دنیزې اوغشو زخمونه ولیدل او هغه وژل شوې و. مشرکانو هغه مثله کړی و ( یعنی غوږونه پوزه اوشونډې یې پرې کړې وې.) دهغې خور هغه یواځې دګوتو له بندونو نه وپیژانده. زموږ خیال داو چې لاندې دا آیت دهغه په باره کې اودهغه په شان د نورو مسلمانانو په باره کې نازل شویدې .

﴿ من المؤمنين رجالٌ صَدَقُوْا ماعهدوا الله عليه ﴾[الاحزاب۲۳].

(( وروى ابن ابى شيبة اَنَّ معاذ بن عفراء ﷺ قال : يارسول الله مايُضْحكُ الرَّبَّ مِنْ عَبْدِهِ ؟

قال غمسه يده فى الْعَدُوِّ حاسرا

فألْقَى دِرْعًا كَانَتْ عَلَيْهِ وقاتَلَ حَتّى قُتِلَ. [1] ))

ابن ابی شیبه روایت کړیدی چې معاذ بن عفراء ﷺ وفرمایل :

---

[1] ـ المصنف لابن ابي شيبة : ۵/ ۳۳۸

ای د الله رسوله ! دبنده کوم عمل د الله تعالی دخوشالي سبب دی ؟هغه ﷺ وفرمایل : کوم وخت کې چې خپل لاسونه راونغاړي اود دښمن په منځ کې ننوځي. دایې چې واوریدل نو حضرت معاذ زغره وغورځوله اوله دښمن سره يې جګړه شروع کړه او ترهغې وجنګیده ترڅوچې شهید کړی شو .

(( و روی أحمد وابن أبي شيبة عن ابن مسعود ﷺ ، عن النبی ﷺ قل : (( عَجِبَ ربُنَا من رجلين : رجل ثارَ عن وطأته ولحافه من بين اهله وحبه إلى صلاته ، فيقولُ الله عزوجل: انظروا إلى عبدي ثار عن فراشه ووطأته من بين حِبِّه وأهلِهِ إلى صلاته ، رغبةً فيماعندي، وشفقةً مما عندي.

ورجلٌ غزافي سبيل الله ، فانهزَمَ أصحابهُ ، وعلمَ ماعليه فی الانهزام ، وماله فی الرجوع ، فرجعَ حتی أُريق دمه ، فيقول الله: انظروا إلى عبدي ، رجعَ رجاء فيما عندي ، وشفقةً مما عندي، حتی يُريق دَمه [1] ))

له ابن مسعود ﷺ نه روایت دی چې نبی کریم ﷺ وفرمایل : زموږ رب له دوه سړونه خوشالیږي. یو هغه سړی چې له خپلې نرمې توشکې اوبړستنې نه دخپل اهل او محبوب ځیزنه دلمونځ لپاره راپاځیږي. الله تعالی ددغه سړي په باره کې فرمايي : زمابنده ته وګورئ خپله نرمه توشکه بړستنه او خپل اهل او محبوب ځیز یې پریښوداو له مانه دبخښنې اوله عذاب نه دبچ کېدو په امیدلمونځ کوي.

بل له هغه سړي نه خوشالیږي چې دالله په لاره کې په غزاکې شریک شي ملګري يې ماته وخوري او وتښتي. هغه په دی پوهیږي چې دتیښتې څومره ګناه ده او بیرته جنګ ته دوردانګلو څومره ثواب دی . هغه بېرته ددښمن په لور وګرځي او ورسره جنګ وکړي آن تردې چې وینه یې وبهیوله شي، په دی وخت الله تعالی فرمایي چې زما دغه بنده ته وګورئ چې له ماسره څه دي دهغه دترلاسه کولو او عذاب نه دبچ

---

[1] ـ مسند احمد : ٦/ ٢٢ ومصنف ابن ابي شيبة : ٥/ ٣١٣ واسناده صحيح .

کیدوپه امید بیرته راوګرځید اوترهغه وجنګید چې وینه یې وبیوله شوه.که چیرته په دی باب کې لدی صحیح حدیث نه علاوه نور احادیث نه وای نو موږ لپاره د استدلال په خاطر همدغه یو حدیث کافي و چې په یواځې ځان ددښمن په لښکر کې دننوتلو اودهغه اجر څومره ډېر دی.

ددښمن په لښکر کې دیومجاهد ننوتل اوله هغوی سره جهاد او جنګ کولو په کیسو اومثالونو کې دسلمه بن الاکوع ﷺ واقعه ډېره مشهوره ده.

(( روى مسلمٌ عن سلمة بن الاكوع ﷺ قال : قدمنا المدينة زمن الحديبية مع رسول الله ﷺ ، فخرجتُ أنا ورباح ، _غلام رسول الله_ بظهر رسول الله ﷺ وخرجتُ بفرسٍ لطلحة بن عبيدالله ﷺ ، أريد أن أُندِّيه مع الإبل .

فلما كان بغلسٍ أغار عبدالرحمن بن عيينة على إبل رسول الله ﷺ فقتل راعيها، وخرج يطردُها هو وأُناسٌ معه فى خيل.

فقلت : يارباح ، اقعد على هذا الفرس فألحقه بطلحة ،وأخبر رسول الله ﷺ أنه أُغير على سرحه!

وقمت على تلٍّ ، وجعلتُ وجهي من قبل المدينة ، ثم ناديت ثلاث مرات: يا صُباحاه!!

ثم اتبعت القوم ، معي سيفي ونبلي، فجعلت أرميهم، وأعقر خيلهم، وذلك حين يكثر الشجر، فإذا رجع إليَّ فارسٌ جنست له فى أصل الشجرة ،ثم رميته ، فلايقبل عليَّ فارس إلاَّ عقرتُ به فرسه.

فجعلت أرميهم وأنا أقول : أنا بن الأكوع ، أليوم يوم الرُّضَّع!

كنت ألحق بالرجل منهم ، فأرميه وهو على رحله ، فيقع سهمي فيه ، وينتظم كتفه ، فأقول : خذها، وأنا ابنُ الأكوع، اليوم يوم الرُّضع !

وإذا كنت في الشجر كنت أحرقهم بالنبل ، وإذا تضايقت الطرق والثنايا ، كنت اعلوا الجبل ، وأرديهم بالحجارة .

فما زال ذلك شأني وشأنهم ، أتبعهم وأرتجز، حتى استنقذتُ منهم جميع سرح وظهر رسول الله ﷺ ، تركوه وهربوا ، فخلَّفته وراء ظهري.

ولحقت بهم ، ولم أزل أرميهم،حتى ألقوا أكثر من ثلاثين رمحاً ، وأكثر من ثلاثين بردة ، لتخفَّ حركتهم وهم هاربون ، وكانوا لا يلقون شيئاً إلاَّ جعلت عليه حجارة ، وجمعته على طريق رسول الله ﷺ .

حتى إذا اشتدَّ الضحى أتاهم عيينة بن بدر الفزاري مدداً لهم ، وهم في ثنيةٍ ضيقَّة ! ثم علوتُ الجبل وصرت فوقهم. ورآني عيينة ، فقال لهم: ماهذا ؟

قالوا: له : لقينا من هذا الرجل الشدة والبَرَحَ! إنه لم يفارقنا منذالسَّحر حتى الآن ، وقد أخذ كلَّ شيء في أيدينا ، وجعله وراء ظهره.

قال : لولا أنه يرى وراءه مدداً من أصحابه لتركَكم ، ليقم إليه نفرٌ منكم ! فقام إليَّ نفرٌ منهم أربعة، فصعدوا في الجبل ولما كانوا قريبين مني بحيث يسمعون صوتي قلت لهم : أتعرفوني؟

قالوا: ومن أنت ؟

قلت :أنا ابنُ الأكوع، والذي كرّم وجه محمدﷺ ، لا يطلبني أحدٌ منكم ويدركني ، ولا أطلب أحداً منكم فيفوتني!

فقال رجل منهم: إني أظنُّ ذلك!

ومابرحت مكاني ذلك، حتى نظرت إلى فوارس رسول الله ﷺ، يمشون خلال الشجر. وكان أوّلهم الأخرم الأسديّ، وعلي إثره أبو قتادة فارس رسول الله ﷺ .

فنزلت من الجبل ، وعرضت للأخرم الأسدي ﷺ، وأخذت عنان فرسه، وقلت : ياأخرم: إحذر القوم، فإني لا آمن أن يهجموا عليك فاتَّئدْ ولا تتعجّل! حتى يلحق بك رسول الله ﷺ وأصحابه!

قال: يا سلمة : إن كنت تؤمن بالله واليوم الآخر، وتعلم أنَّ الجنة حق والنار حق، فلا تحُلْ بيني وبين الشهادة!

فخليت عنان فرسه ، فلحق بعبد الرحمن بن عيينة ، وعطف عليه عبدالرحمن، فاختلفا طعنتين ، فعقر الأخرم بعبد الرحمن، ولكنَّ عبدالرحمن طعنه فقتله! وتحوّل عبدالرحمن إلى فرس الأخرم وركبه!

ولحق أبوقتادة ﷺ بعبدالرحمن بن عيينة، فاختلفا طعنتين، فعقر عبدالرحمن بأبي قتادة ، ولكن أبا قتادة قتل عبدالرحمن، وتحوّل أبو قتادة إلى فرس الأخرم فركبه.

وهرب المشركون، فخرجت أعدو في أثرهم، وأبتعدنا كثيراً، حتى إنني لا أرى شيئًا من غبار أصحاب رسول الله ﷺ .

و ذهبوا قبل غياب الشمس إلى شعب فيه ماء ، يقال له: (ذوقَرَد) وأرادو أن يشربوا منه ، فأبصروني أعدو وراءهم ، فتركوا الماء وولوا هاربين، وغربت الشمس!

ولحقت رجلاً منهم، ورميته ، وقلت: خذها وأنا ابن الاكوع ، اليوم يوم الرَّضع !

فقال : ياثكل أمي. الأكوعُ الذي يرمينا منذ الصباح ؟

قلت: نعم، ياعدوَّنفسه.

فرميته بسهم ، وأتبعته سهماً آخر، فعلق به السهمان!

وهرب القوم ، وخلَّفوا وراءهم فرسين.

فجئت بالفرسين أسوقهما إلى رسول الله ﷺ، ووجدته ﷺ مع أصحابه على ماء ( ذي قرَد)) وكان ﷺ فى خمسمائة من أصحابه. وكان بلالٌ ﷺ قد نحر جزوراً مما خلَّفت ورائي، وأخذ يشوي لرسول الله ﷺ من كبدها وسنامها .

فأتيت رسول الله ﷺ، فقلت: يارسول الله ؛ خَلِّني أنتخب من أصحابك مئة، فآخذ على الكفار بالعشوة ليلاً، فلايبقى منهم حيٌّ إلا قتلته!

قال : أكنتَ فاعلاً ذلك ياسلمة ؟

قلت : نعم، والذى أكرمك.

فضحك رسول الله ﷺ حتى رأيت نواجذه فى ضوء النار..ولما أصبحنا، قال رسول الله ﷺ : خَيرُ فرساننا اليوم أبوقتادة ، وخير رجّالتنا سلمة!

فأعطاني رسول الله ﷺ سهم الفارس والراجل جميعاً .[1]))

ژباړه :له سلمه بن الاكوع ﷺ نه روايت دی هغه وايي چې موږ دحديبيه په زمانه کې له رسول الله ﷺ سره مدينې ته راغلو. زه او درسول الله ﷺ غلام رباح درسول الله ﷺ په اوښانو پسې ووتلو زه دطلحه ابن عبيدالله په آس باندی ورپسې ووتلم ماغوښتل اس چې اوښان سره وڅروم او اوبه ورته ورکړم.

دسهار په تياره کې عبدالرحمن بن عيينه درسول الله ﷺ په اوښانو باندې ډاکه واچوله شپونکي يې وواژه او مال يې له ځان سره روان کړ.ما وويل ای رباحه ! په دی اس باندې سپور شه اوطلحه نه ورسوه او محمد ﷺ ته خبر ورکړه چې دهغه په اوښانو باندې ډاکه آچول شويده. زه په يوه غونډۍ باندې وختلم مخ مې مدينې طرف ته واړاو او درې کرته مې آواز وکړ يا صُباحاه !! ای خلکو سهار وختي ډاکه واچولی شوه بيا هغوی پسې روان شوم له ماسره زما خپله توره کمان او غشي وو، مابه پرهغوی باندې غشي ويشتل اودهغوی اسونه به مې زخمي کول . کله به چې دهغوی اس سواره زماطرف ته راتلل نوزه به دونو ډډونو په منځ کې کښيناستيدلم اوبيابه مې په هغوی غشي ويشتل اوهر اس سوار به چې زما طرف ته راتلو مابه دهغه اس زخمي کاو.مابه چې پرهغوی غشي ويشتل نو وبل به مې : زه داکوع زوی يم نن ورځ به معلوم شي چې چادشريفې ښځې شدې څکلي دي او څوک رذيل دی.

له هغوی نه به چې هريوسړی زما مخې ته راغې نومابه په غشو ويشتلو، هغه به پخپل سپارلۍ باندې سپور و او زما غشي به په هغه ولګيده او ولی به يې ورته سوری کړه په دی وخت کې به ماويل درواخله زه ابن الاكوع يم، نن ورځ به پته ولګيږي چې چا دشريفې مور پی څکلي دي. کله به چې زه د ونو په منځ کې وم نومابه هغوی په غشو سره سوځول. او کله به چې لارې تنګې شوې نو زه به دغره څوکې ته وختلم اوپه کاڼو به مې ويشتل.

[1]ـ اخرجه مسلم برقم : ۱۸۰۷.

زما اودهغوی ترمنځ دغه کشمکش روان وهغوی مې هم ویشتل او خپل بیت مې هم زمزمه کاو اوزه ترهغه واپس نه شوم ترڅو مې چې درسول الله تول اوښان نه وو خلاص کړي.

هغوی درسول الله ﷺ ټول مال خوشې کړ او وتښتیدل. ما اوښان شاته پریښوول اودهغوی تعاقب مې پرې نښود اوغشي مې وروباندې وورول هغوی په دې خاطر چې خپل ځان سپک کړي ترڅو تیښته ورته آسانه شي له دیرشونه زیاتې نېزې اوڅادرونه وغورځول، هغوی به چې هریوشې وغورځاو مابه پرهغه کښې ودرول اودرسول الله ﷺ په لاره کې به مې جمع کول. آن چې ښه څاښت شو نو عیینه بن بدر الفزاري دهغوی مرستې لپاره راغې هغوی په یوه تنګه دره کې وو. زه پاس غونډۍ ته وختلم اودهغوی لپاسه شوم. عینیه زه ولیدلم اوله هغوی نه یې پوښتنه وکړه چې داسړې څوک دی؟ هغوی ورته وویل له دې سړي نه ډیرسخت په تکلیف یو او سهار وختې نه موږ پسې دی له موږ سره چې څه وو هغه ټول یې واخستل اوخپل شاته پریښودل هغه ورته وویل: که چیرته هغه خپل شاپسې دخپلو ملګرو مرسته نه لیدای نو تاسې به یې پرېښی وی. له تاسې نه څو کسان دی پسې وخیژئ او ویې نیسئ. څلور کسان راپسې بره وختل. هغوی چې ماته دومره نژدې شول چې زما غږ یې اورید نو ما ورته وویل: ایاتاسې ما پیژنئ چې زه څوک یم؟ هغوی وویل ته څوک یې؟ ماورته وویل زه ابن الاکوع یم. په هغه لوی ذات قسم چې محمد ﷺ ته یې عزت ورکړیدی که چیرته تاسې ماګیرول غواړئ نونه مې شئ ګیرولی اوکه زه په تاسې کې دچاګیرول وغواړم نوله مانه نشئ خلاصیدلی. له هغوی نه یوسړي وویل زما هم همداګمان دی.

زه له خپل ځای نه نه وم خوځیدلی چې درسول الله ﷺ اس سواره مې ولیدل چې دونو په منځ کې روان وو. له ټولو نه مخکې اخرم اسدی رضی الله عنه او هغه پسې درسول الله ﷺ غوره اس سوار ابوقتاده و. زه له غره نه کوز شوم او احزم اسدی ته وړاندې شوم دهغه داس جلب مې ونیو او ورته مې وویل چې شاته نورو خلکو ته صبر وکړه. زه پرتاباندې دحملې ویره محسوسوم ودرېږه او تلوار مه کوه ترڅورسول الله

ﷺ او دهغه اصحاب راورسیږي. هغه راته وویل :ای سلمه ! که چېرته ته په الله اودآخرت په ورځ ایمان لرې او په دې پوهېږې چې جنت او دوزخ حق دي نو بیا زما اودشهادت ترمنځ خنډمه جوړېږه مادهغه داس جلب خوشي کړ هغه عبدالرحمن بن عیینه ته ځان ورساو. عبدالرحمن ورته راوګرځید او دواړو یوبل باندې نیزې وویشتلې اخرم اسدي عبدالرحمن زخمي کړ. لیکن هغه اخرم په نیزه وواهه اوشهید یې کړه دهغه اس یې واخست او وریاندې سور شو. ابوقتاده ؓ عبدالرحمن پسې راورسید. دواړو یوبل باندې دنیزو ګوزارونه وکړل ابوقتاده دعبدالرحمن دلاسه زخمي شو مګر ابو قتاده عبدالرحمن وواژه او مردار یې کړ. داخرم ؓ اس یې واخست او وریاندې سورشو. مشرکان په منډه وتښتېدل. زه هغوی پسې روان شوم او دومره لرې لاړم چې داصحابو ؓ داسونو دپښو دوړه هم نه ښکاره کېده هغوی دلمر پرېواته طرف ته یوې درې ته لاړل چې هلته اوبه وې هغه ځای ذوقرد په نامه یادیده. هغوی غوښتل چې دلته اوبه وڅښي. هغوی چې زه ولیدلم نو اوبه یې پرېښودې اوپه منډه وتښتېدل . لږ وخت وروسته ماښام شو اولمر پرې وت. مادهغوی یوسړی راګیر کړ او په غشي مې وویشت او ورته مې ووبل: دړواخله زه ابن الاکوع یم نن ورځ به معلومیږي چې چادشریفې اوبهادرې مور شیدې څکلې دي؟ هغه وویل : زما مور دې بوره شي. همغه اکوع یې چې سهار راهیسې موږ پسې شوې یې اوپه غشو مو ولې ؟

ما ورته وویل ای دځان دښمنه زه همغه یم په هغه مې دوه غشي یوبل پسې مسلسل وویشتل اوهغه ولګید دهغوی نور ملګري وتښتیدل او دوه آسونه یې شاته پرېښودل . ماهغه آسونه را ونیول او رسول الله ﷺ ته راغلم. هغوی مې د ذي قرد نومې ځای کې د اوبو په چینه باندې ولیدل. له هغه ﷺ سره تقریبا پنځه سوه اصحاب کرام وو. بلال ؓ له هغو اوښانو نه یو اوښ حلال کړی و چې ماشاته پرېښي وو اورسول الله ﷺ له پاره دهغه ینه اوکوب یې په اور باندې وریتاو.

درسول الله ﷺ خواته راغلم او ورته مې وویل چې ماپرېږده چې له اصحابو نه سل تنه منتخب کړم ترڅو په کفارو باندې دشپې حمله وکړو او ټول یې ووژنو .

هغه ﷺ وفرمایل : ای سلمه ! ته داکار هم کوې ؟ ماوویل هو په هغه ذات قسم چې تاته یې عزت درکړېدی. رسول الله ﷺ مسکی شو تردی چې د اور په رڼا کې دهغه نواجذ غابښونه مې ولیدل.

کله چې سهار شو نو محمد ﷺ وفرمایل : نن ورځ زموږ په اس سوارو کې له ټولو نه غوره اس سوار ابوقتاده دی اوبهترین پیاده سلمه بن الاکوع دی. رسول الله ﷺ ماته داس سوارۍ او پېدل دوه برخې راکړې.[1]

داصحیح او ثابت حدیث پدې خبره غټ دلیل دی چې ددښمن په ډېرو کسانو باندې دیومسلمان سړي حمله جائز دی. اګر که دهغه غالب ګمان داوي چې وژل کیږي. ځکه چې هغه په دی سره دشهادت مرګ غواړي لکه چې اخرم اسدي په یواځې ځان حمله وکړ اوشهید شو، رسول الله ﷺ دهغه دې کارته بد ونه ویل اونه یې اصحاب ددی پشان حملې نه منع کړېدي بلکې په حدیث کې ددی کار استحباب او فضیلت معلومیږي . ځکه چې نبي کریم ﷺ داباقتاده او سلمه صفت وکړ حال داچې دواړو په یواځې ځان په دښمن باندې حمله کړی وه او دې ته یې انتظار یي نه و کړې چې نور مسلمانان هم ور ورسیږي اویوځای ورباندې حمله وکړي. او کوم کفارچې دوی زغلولی و هغه خوزا غټ ټولی و ددی خبرې دلیل داده چې سلمه ابن الاکوع رضی الله عنه له نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه دسلو کسانو اصحابو دانتخاب غوښتنه وکړه نوکه کفار ډیر نه وای نوبه ګوته چڼ سلو اصحابو ته څه اړتیا وه خو سره له دې بیا هم سلمه په یوازې تن په هغوی باندی حمله اوکړه .

له دې حدیث نه دادلیل هم ترلاسه کیږي چې امام ته داجائز دي چې یوسړی شفقتاً په یواځې ځان په دښمن باندې له حملې نه منع کړي او داهم ورته جائز دي چې پریږ یې دي هله چې هغه رښتوني قصد اوپوخ عزم یې کړې وي .او نیت یې یواځې دشهادت غوښتنه وي اوداخبره داخرم اسدی سره دسلمه ابن الاکوع له کړنلارې نه

---

[1] ــ ( مسلم برقم ۱۸۰۷ ).

معلومیږي څکه چې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم په یوې خبرې هم ملامت نه کړ چې اول دې ولې دهغه لاره ونیوله او بیا دی ولی پریښود؟.

ابن عساکر پخپل ((تاریخ دمشق)) کې له عقبه بن قیس الکلابي نه روایت کوي چې لـه مسلمانانو څخه یوسړی ابی عبیده بن جراح ته دیرموک دجنګ په ورځ کی ووېل: ماداعزم کړېدی چې زه به نن په هواڅې ځان په دښمن باندی یرغل کوم ایاتاسې دخپل نبی ﷺ په نوم کوم پېغام لېږل غواړئ؟ حضرت ابوعبیده ؓ ورته وفرمایل چې رسول الله ﷺ ته لومړی زما سلام ووایه اوبیاورته ووایه چې موږ دالله تعالی وعدی رښتونی ولیدلې.

ابن عساکر همدغه راز لـه محمدبن اسحاق نه دشام دفتحې اود دمشق دمحاصرې روایت بېان کړیدې هغه وایي چې له مسلمانانو نه یوسړي پخپل اس باندی راغی او دحمص ښار ته نژدی ویالې ته ورسید چې دیرمسحل ته نژدې و. اوبوته راغی او خپل اس ته یې اوبه ورکړې. دهغه په طرف د حمص لـه اوسیدونکو څخه تقریبًا دېرش سړي راغلل. کله چې هغه یې یواځې ولید نوجنګ یې ورسره شروع کړ، نودغه مسلمان دهغوی په طرف راغې او اس له اوبونه پوری ویست اوپرهغوی یې برید وکړ. لـه هغوی نه یې یوتن وویشت بیا ورپسې بل یې وویشت اوبیا ورپسې دریم سړی یې وویشت له هغوی سره خپل جنګ تردې مسحل پوری جاري وساتلو او پولس کافران یې ترېنه مردار کړل. ددیرمسحل ترمنځ پوری یې کفارو سره خپل جنګ ورسولو بیا ددیر خلکو هغه په کاڼو وویشت او شهید شو. حافظ ابو الحجاج المزي لـه علاء ابن سفیان الحضرمي نه روایت کړیدی هغه وایي چې (بُسرُ بن ارطاة ؓ لـه رومیانو سره جهاد کاو رومیانو به مجاهدینو ته کمینونه نیول او زیات نقصان به یې ورتـه رسولو کله به چې بسر بن ارطاة داحال ولیدنو سل ملګري یې لـه ځان سره کړل او دکمین نیونکورومیانو په لټون پسې ووت یوه ورځ له لښکر نه وروسته دیو غره په لمن (خوړ) کی پاتی شو. له هغه ځای نه هغه دیرش ترل شوي ترکي اسونه ولیدل اخواته یوګرجاو په دغه ګرجاکی دکفارو جنګیالي موجودوو. همدغو جنګیالو به په مسلمانانو دشاله طرف نه بریدونه کول. حضرت بسر ؓ

خپل اس له ترکې اسونو سره نژدی وتړلو او یواځې هغه ګرجا ته ورننوت اوله دننه طرف نه یې دروازه بنده کړه. کمین نیوونکي رومیان یې دکنیسې دننه ایسار کړل رومیان د دروازې په بندیدو ډېر حیران شول ده ورباندی ناځاپي غلچکی برید وکړ هغوی چې نه ځان خبریدل او وسله یې راخسته نو ده له هغوی درې کسان ووژل اوله نورو سره په جګړه بوخت شو. دحضرت بسر رضي الله عنه ملګرو چې هغه ونه لید نو دهغه په لټه کی شول. له ګرجا سره نژدی دهغه اس یې ولید او ویی پېژنده چې داد حضرت بسر رضي الله عنه اس دی نو ګرجاطرف ته راغلل له ګرجانه چې شور هم ترغوږ شو نوګرجاته یې دننوتلو کوشش وکړ خو دروازه بنده وه. هغوی دګرجا چت مات کړ اوپه کی ننوتل. ګوري چې حضرت بسر رضي الله عنه پخپل ګڅ لاس خپلې کلمې نیولي دي او په ښي لاس یې توره او چته کړېده اوله کفارو سره جنګ کوي. کله چې دهغه ملګرو په ګرجاباندې بشپړه قبضه وکړه نو ګوري چې حضرت بسر رضي الله عنه بېهوش پروت دی. په دی جنګ کې څو کسه رومي جنګیالي ووژل شول اوڅوکسه یې ژوندي ونیول. دغوقیدیانو دحضرت بسر رضي الله عنه ملګرو ته وویل دخدای لپاره داراته وښایئ: چې داڅوک دی ؟ چې په مونږ باندې یوازې برید وکړ اوپه یوازې تن راسره وجنګید. هغوی وویل دابسر بن ارطات نومیږي. هغوی وویل : په الله قسم هیڅ یوې مور داسې اولاد نه دی راوړی دهغه ملګرو دهغه کولمې بیرته په ګیډه کې دننه کړې اوپخپلو پګړیو سره یې دهغه ګیډه وتړله اوله ځان سره یې راوستوګیډه یې ورته وګنډله. له دوا درمل نه وروسته روغ رمټ شو او دالله په لاره کی خپل جهاد ته ادامه ورکړه.بیهقي روایت کړیدی چې براء بن مالک رضي الله عنه دیمامې په جنګ کي ګډون وکړ او له مسلمانانو سره یوځای په کډه په هغه باغچه یرغل وکړ چېرته چې هلته مسلیمه الکذاب ځان پټ کړی و. دباغچې شاوخوا جګړه ډېره ګرمه او سخته روانه وه. براء رضي الله عنه له خپلو ملګرو غوښتنه وکړه چې په ډال کی مې کینښنوي اوپه نیزو باندې مې دیوال ته اوچت کړي او ددیوال له پاسه یې واچوي. اصحابو همداسې وکړ او هغه پکې یواځې باغچې ته وردننه شواوله کفارو سره یې ډیر سخت جنګ وکړ. له هغوی نه یې لس کسه کافران مردار کړل او دروازې خلاصولو ته یې ځای پیداکړ دهغه په بدن کې له اتیاونه زیات ټپونه لګیدلي وو. دهغه له ملګرو نه هیڅ یو

اصحابي دهغه په دې کار باندې بد ونه ویل. ابن عساکر له ولید بن مسلم نه روایت کړېدی هغه وايي چې دحمص يوشيخ ماته داکیسه وکړه چې ماپه رومي لښکر کې چې په حمص کې وو يوسړی ولید چې سترګه يې ړنده وه. ماته چاوويل چې ددی د ړندیدو وجه معلومه کړه چې ولې ړنده شوېده. ماچې له هغه نه پوښتنه وکړه نو هغه ماته وويل:

کله چې مسلمانانو په حمص باندې يرغل وکړ او دبحيره عاصي ـ نهر الارند ـ د يو سيند په غاړه کې پړاو واچو نو د حمص رومي جنرال ماته دهرش تنه بهترين اس سواران راکړل او زه يې ددی مقصد لپاره ولېږلم چې له مسلمانانو د څوک ونيسم اودلته يې راولم اويادهغوی حالت وڅارم. ماله څان سره خپل ملګری راوستل اودسين يدې غاړه روان و کله چې مسلمانانو ته ورنږدې شونو په دی وخت موږ له سيند نه پورې غاړې يوسړی وليد چې خپل اس ته يې اوبه ورکولې اونيزه يې په خواکې پرته وه. دهغه سترګې چې پرموږ ولګېدلې نو سمدلاسه يې په اس باندې زين سم کړ ورباندې سور شو او نيزه يې په لاس کې واخسته موږ فکر وکړ چې له موږ نه ووېريد او خپل لښکر ته ځان رسوي. خوناڅاپه هغه خپل اس په درياب کې ورګډ کړ او زموږ په طرف راپورې وت. موږ دهغه په دې جرئت حيران دريان شوو. له درياب نه چې راپورې وت او غاړې ته ورسيد نو له خپل اس سره يې دراټوپ کولو کوښښ وکړ مګر کامياب نشو. بياد اس په زين باندې ودريدو او دنيزې په مدد سره يې راټوپ کړ اوله ختونه دی خوا راپورې وت. بيايې اس ته آواز ورکړ هغه هم ورپسې راورسېد. بيرته په اس سور شو او پرموږيې حمله وکړه. موږ يوځای ولاړوو خو هغه تيت پرک کړو. له موږ نه يوکس يې راګير کړ او هغه يې وواژه بيا مونږ راټول شو هغه بيا حمله راباندې وکړه تيت پرک يې کړو او يوبل ملګرې يې هم رانه وواژه. هغه څو څوکرته پرموږه حملې وکړې او ډير نفر يې رانه ووژل. موږ چې داجريان وليدنو دخپل ځان دساتلو لپاره ښارته وتښتيدلو خو هغه موږ پسې په منډه روان و له موږ نه يې يو يو وژل آن چې له مانه پرته بل هېڅوک پاتې نه شو اوټول يې ووژل. کله چې هغه دحمص دروازې ته نږدې شو نو دلته ولاړ پېره دارانو دهغه ټول کارونه وليدل اودهغوی په اطلاع يوڅوتنه سواره زموږ په طرف راغلل. ماپه زره کې ووېل

چې ددغو کسانوپه لیدوسره به هغه تښتیدلی وي ماچې شاته وکتل نو دهغه په نیزه زماسترګه ولګیدله او سترګه یې رانه برقه ویستله. په دی وخت ډیرو رومي پوځیانو هغه محاصره کړه اوپه شهادت یې ورساو. دمسلمانانو یو ګروپ هغه پسې دهغه په لټه کې ګرځېدل. هغوی چې ورته ورسیدل نو داخلمی پرزمکه راغورځیدلی و مونږ بیارته راستانه شو هغوی سرې را اوچت کړ او دفن یې کړ.

(( و روی البخاري عن البراء بن عازب ﷺ قال : بعث رسول الله ﷺ إلى أبي رافع اليهودي عبدالله بن عتيك وعبدالله بن عتبة ،في ناسٍ من الصحابة ، فانطلقوا حتى دنوا من الحصنِ.فقال لهم عبدُ الله بن عتيك: امكثوا حتى أنطلقَ أنا فأنظر.

قالَ ابنُ عتيك : فتلطَّفْتُ أن أدخلَ الحصن، ففقدوا حماراً لهم، فخرجوا بقبسٍ يطلبونه ، فخشيتُ أن أُعرف ، فغطَّيْتُ رأسي ، كأني أقضي حاجة... ثم نادى صاحبُ الباب : مَنْ أرادَ أنْ يدخل فليدخل قبلَ أنْ أغلقة . فدخلتُ ثم اختبأ تُ في مربطِ حمارٍ عند باب الحصن..

فتعشوا عند أبي رافع ، وتحدَّثوا حتى ذهبت ساعةٌ من الليل ، ثم رجعوا إلى بيوتهم، حتى إذا هدأت الأصوات ، ولم أُعُد أسمعُ حركة ، خرجْتُ.

ورأيتُ صاحبَ الباب عندما وضعَ مفتاحَ الحصن في كوةٍ عند الباب، فأخذتُ المفتاح، ثم فتحتُ باب الحصن.. وعدتُ إلى بيوتهم فغلَّقْتُ ابوابَهَا من الخارج. ثم صعدتُ إلى أبي رافع في سُلَّم ، فإذا البيتُ مظلمٌ قد طفىء سراجُه ، فلم أدر أين الرجل.

فقلت : يا أبا رافع ؟

قل : من هذا ؟

فعمدتُ نحو الصوت وضربْتُه ، فلم تُغْنِ عَنِّي شيئاً!!

ثم جئتُ كأني أغيثهُ ، فغيَّرْتُ صوتي وقلتُ : مالَكَ يا أبارافع ؟

قال : ألا يعجبكَ لأمِّكَ الويل! دخلَ على رجل ، فضربني بالسيف!

فعمدتُ لـه أيضًا، فضربته ضربةً أخرى! فلم تغنِ شيئاً فصاح، وقام أهلهُ.

ثـم جـئتُ وَغيَّرْتُ صـوتي كهيـئةِ المغيـث ، وإذا هومسـتلقٍ عـلى ظهره ، فوضعْتُ السيفَ في بطنه ، ثم انكفأتُ عليه حتى سمعت صوت العظم!!

ثـم خـرجْتُ دهِشـاً حـتى أتيـتُ السُّـلَّمَ ، أريـدُ أنْ أنـزل ، فسـقطْتُ منه ، فانخلعَتْ رِجلي، فعصبْتُها ، ثم أتيتُ أصحابي أحْجِلُ!!

وقـلت لاصـحابي: إنـي لا أبـرحُ حـتى أسمـعَ الناعية.. ولما كان وجه الصبح صعدَ الناعية فقال: أنعي أبا رافع!

فـأدركْتُ أصـحابي: وانطلقْـنا إلى الـنبي ﷺ، فأخبرته بمقتل أبي رافع، وأريته رجـلي المكسـورة. فقـال ﷺ : ابسـط رجـلك فبسـطتها فمسـحها ، فكأني لم أشتكها قط![1] ))

له حضرت براء بن عـازب ﷺ نه روايت دی هغـه وايي چې رسول الله ﷺ ديهودي ابی رافـع پـه قتل پسې عبدالله بن عتيک ، عبدالله بن عتبه اوځو نور اصحاب وليږل . هغوی كلاتـه ترنژدی ځـای پورې لاړل. حضرت عبدالله بن عـتيک خپلو ملګرو ته وويل چې تاسې دلتـه لـه قلا سره ودريږئ، زه پـه كـلا كې دننوتلو لپاره څه چل ول

[1] ـ اخرجه البخاري برقم : ٤٠٤٠

کوم. په دی وخت یهودیان خپل ورک خره پسې ګرځیدل اوهغوی پخپل لاس کې د اور رڼانیولی وه. زه وویریدم هسې نه چې څوک مې وپیژني. ماپخپل سر باندې څادر واچاو او داسې کښیناستلم لکه چې څوک اودس ماتې ته ناست وي بیا د دروازې پیره دار آواز وکړ چې څوک دننه کېدل غواړي نو د دروازې له بندولو نه وړاندی دی دننه سي.

زه په دی مهال وردننه شوم اودخرو دتړلو په ځای کی می چې د دروازې ته نژدې و ځان پټ کړ. ابو رافع پاس په بالاخانه کې اوسیدو اوشپې به له هغه سره دکیسو وینکو مجلس جوړېدو. کله چې هغوی دماسخوتن ډوډی وخوړله او مجلس ختم شو او خلک خپلو خپلو کورونو ته واپس لاړل نو د دروازې پیره دار دروازې بند کړې اودکنجیانو غوچه یې په یوه کونډه کې ځوړندی کړې. کله چې خلک ویده شول او هیڅ غږ مې نه ترغوږ ونیا نو زه لاړم او له کونډې نه مې کنجیانې راواخستلې اود کلا دروازې مې ورباندې خلاصه کړه . لدینه پس دهغوی کورونو ته لاړمه او دروازې مې له شاطرف نه ورباندې بندې کړې. بیاپه زینه باندې دابې رافع کورته وختلم دهغه په کور کې تیاره وه اوډیوې یې مړی کړې وې. زه نه پوهېدم چې هغه چیرته دی. ما ورته آواز وکړ ای ابورافعه ! هغه وویل ته څوک یې. زه دهغه آواز پسې لاړم اوپه توره مې وواهه چیغه کړه خو سم ونه لګید ما ورته آواز بدل کړ اودفریاد رس په شکل کې مې ورته وویل : ای ابورافعه ! پرتاڅه چل شویدی؟ هغه وویل ستا مور ته دی هلاکت وي اوس راباندې چاد توري ګوزار وکړ، دهغه له آواز سره سم مې دتورې بل ګذاره ورباندې وکړ هغه چیغه وکړه بیا هم سم ونه لګید اود کور خلک پاڅیدل بیامې ورته آواز بدل کړ اودفریاد اوریدونکي په شکل کې مې ورته وویل، ولې څه چل درباندې وشو هغه په دې وخت کی دشاپه تخته پروت و. خپله توره مې دهغه په ګیډه کې ونومبله اودومره زور مې ورباندې وکړه چې توره دملاهډوکي ته راورسېده اود هډوکي خرپ مې واورېد زه بیرته ترینه په بیړه راواپس شوم او زینې ته ورسیدم غوښتل مې چې ترینه ښکته شم خوله زینې نه وغورځیدم اوپښه مې ووتله ماپخپل پګړی سره هغه وتړله اوپه ګوډه پښه خپلو ملګرو ته ورسېدم. هغوی ته مې وویل تاسې لاړشئ، زه به ترهغه دلته ناست یم ترڅو مې چې دهغه دمرګ اعلان نه

وي آورېدلې کله چې سهارشو نو اعلان کوونکي بره وخوت او ويې ويل چې ابارافع مړشوېدی داعلان له آوريدونه وروسته روان شوم اوله خپلو ملګرو سره يوځای شوم بيامورږ ټول دمحمد ﷺ په خدمت کې حاضرشوو. هغه ﷺ ته مو دابارافع دمرګ زېرې ورکړه. رسول الله ﷺ زما ماته پښه وليدله او راته يې وويل: پښه دې وغځوه ماخپل پښه وغځوله. رسول الله ﷺ خپل لاس ورباندې راکش کړ او زماپښه داسې ښه شوه لکه چې له سره چېرته خوږ شوې نه وه.

ابن هشام روايت کړيدی چې رسول الله ﷺ اباحدرد الاسلمي رضي الله عنه يې له دوه نورو اصحابو سره دمشرکانو يولوی لښکر باندې ديرغل کولو لپاره ولیږه دغه لښکر دمدينې شاوخوا سيمه کې و. او دا اراده يې درلوده چې په مدينې يرغل وکړي دغو درې وارو اصحابو په دې لښکر باندې يرغل وکړ او اباحدرد الاسلمي دمشرکانو غټ غټ کسان ووژل. لښکر ته يې ماتې ورکړه اوله هغوی نه يې زيات غنيمت ترلاسه کړ.

له لويو جنګونو څخه يو جنګ په عراق کې دقادسيه جنګ و. په دې جنګ کې دمسلمانانو دلښکر شميره له اووه زرونه زيات و او سعدبن ابی وقاص رضي الله عنه ددغه لښکر امير و . خو دکفارو شمير له څلويښتو زرو نه بره بره و او ددغه لښکر قيادت درستم په غاړه و. طرطوشي پخپل کتاب (سراج الملوک) کې ويلي دي چې عمرو بن معدي کرب دقادسيه په جنګ کې درياب ته نژدی راغی او خپلو اصحابو ته يې وويل. زه په پل باندې تيرېږم اوپردښمن باندې برید کوم. که چيرته تاسې داوښ دحلالولو دوخت په اندازه کې راورسيدئ نومابه توره په لاس ددښمنانو په منځ کې دجنګ کولو په حالت کې وموميئ اوکه چيرته له دې وخت نه زيات ځنډ مو وکړ نومابه شهيد وموميئ. له دی نه پس هغه له درياب نه پورې وتلو اوددښمنانو په منځ کې دننه شو. ځينې مسلمانانو ځينې نوروته وويل ای بنو زبيده. و تاسې به خپل ملګری په کوم نوم رابولئ په خدای قسم ګمان نه کوم چې هغه به ژوندی وي . لږوخت پس دهغه ملګرو هم يرغل وکړ کله چې هغه وليد نو هغه له خپل اس نه غورځيدلې و. هغه ددښمن يواس له پښونه کلک نيولې و ، هغه به خپل آس واهه چې روان شي خو اس له خپل ځای نه حرکت نشو کولې. کله چې مسلمانان دهغه

څنګ ته ورسېدل نو دښمن پوځي لـه خپل اس نه لاندې کوزشو اومنډه يې کړه .
حضرت عمروبن معديکرب دهغه په اس سپور شو او ويې فرمايل چې زه ابو ثور يم.
نژدې و چې زه به لـه تاسو نه ضائع شوی وم. دهغه ملګرو د هغه نه پوښتنه وکړه چې
ستا خپل آس څه شو؟

هغه وفرمايل چې په غشو ولګيد اوزه يې راوغورځولم.

طرطوشي پخپل کتاب سراج الملوک کی ليکلي دي چې طارق بن زياد په اندلس
باندې نه ۱۷۰۰ مجاهدينو سره حمله وکړه.

سفير چې داندلس دپاچا لذريق ( داډرک ) نائب واسپانيايانو تردريو ورځوپورې
دطارق بن زيادله لښکر سره جنګ وکړ مګر څه برياليتوب يې ترلاسه نه کړ هغه
لذريق ( راډرک ) پاچا تـه په خط کې وليکل چې موږ ته داسې يوقوم راغلی دی چې
موږ ورباندې نه پوهيږو چې دوی لـه آسمان نه راکوز شويدي اوکـه لـه زمکې نه
راغلي دي، موږ لـه هغوی سره جنګ وکړ ليکن موږ دهغوی سره نورد جنګ کولو
توان اوقدرت نه لرو. ته پخپله دلته ځان ورسوه.

دخط لـه رسيدو سره سم لذريق ۹۰ زره پوځ اس سواره لـه ځانه سره ملګرې کړ او
راغی لـه مسلمانانو سره درې شپې ورځې وجنګيد او مسلمانان يې ډېر تنګ کړل
طارق بن زياد مسلمانانو تـه مخاطب شو او ورتـه يې وويل : الله جل جلاله ته رجوع
کولو او پـه قتال باندې له منګولي خښولو موبله چاره نشته ای مسلمانانو. شاته مو
څپې وهونکې سمندر اومخی ته مو دښمن دی. زه اوس داسې يو پلان جوړوم چې په
دی سره ياخوبه موږ بريالی شو اوياشهيدان. لښکر ترينه پوښتنه وکړه ستاسې څه
پلان او منصوبه ده؟ هغه ورته وويل زه غواړم د دوی په پاچا لذريق ( راډرک ) باندې
حمله وکړم. خو کله چې زه پرهغه حمله وکړم نو تاسې هم لـه ماسره يوځای پرهغوی
حمله وکړئ. هغه يرغل شروع کړ طارق داندلس پاچايې وواژه او دهغه ډېر ملګري
ووژل شول، دهغوی لښکر لـه ماتې سره مخامخ شو او پـه منډه وتښتيدل. مسلمانانو
درې ورځې دهغوی تعاقب وکړ او ډېر کسان يې ترينه ووژل اوپـه دی ورځ د
مسلمانانو صرف يوځو مسلمانان شهيدان شول.له دغوفيصله کوونکوجنګونو څخه
يوجنګ چې لږ مسلمانان دکفارو او مشرکانو په ستر لښکر ورننوتلی د ( ملاڅوکرد ).

جنګ دی په دی جنګ کې ډېرو لږو مسلمانانو دکفارو لـه لوی لښکر سره جنګ کړې ډیرو مسلمانانو تاریخ دانانو ددی جنګ تذکره کړې ېنو هم دهغوی څخه طرطوشي دی چې پخپل کتاب سراج الملوک کی ددی جنګ یادونه کړېده.

ددغه جنګ قائد ملک الپ ارسلان و او دروم دپاچا په خلاف یې ګرم کړی و د روم پاچا ددغه جنګ لپاره ډېر زیات تیاری نیولی و اوله شپږلکه نه زیات عسکریې جنګ ته وړاندې کړي وو. بې حسابه وسله یې راجمع کړی وه. دقوت په نیشه مستو رومیانوپه دی کې شک نه کاو چې پر مسلمانانو باندې موغلبه ترلاسه کړي آن چې خپل لښکر ته یې د مسلمانانو جلا جلا سیمې لـه نیولومخکې ویشلې وي. ملک الپ ارسلان ترکي نسل و د عراق او عجمو پاچاو. هغه چې کله درومیانو داغوروپش واوریدنو خپل ټول وزیران یې دمشورې لپاره راغونډ کړل او ورته یې وویل تاسو ته څرګنده ده چې نن سبا پر مسلمانانو څومره لوی مصیبت را روان دی. تاسې په دی کې ماته څه مشوره راکوئ. هغوی وویل موږ ستا دمشورې اوحکم تابع یو. ظاهراً خو د دومره لوی لښکر مقابله لـه توان نه وتلې ښکاري. ملک ارسلان وویل موږ لپاره خودتېښتې ځای هم نشته، چې مړکیږو نو په عزت سره مړکېدل زموږ لپاره ډېر ښه دې. وزیرانو ورتـه وویل چې ته جنګ لپاره چمتو یې نو موږ هم درسره ولاړیو. په جهاد باندې متفقه فیصله وشوه او دا پرېکړه یې وکړه چې ددښمن مقابله دهیواد په لومړی ښار کی کوو. ددې مقابلې لپاره شل زره زړه ورمجاهدین حاضرشول .سبا ته چې درومي لښکر سره مخامخ شول نو دوی دهغوی په وړاندې داسې ښکاره کېدل لکه چې دتورغوایي په بدن کې یوسپین داغ . پاچا وویـل زه بـه نن لـه دوی سره لـه غرمې نه وروسته جنګ شروع کوم. خلکو پوښتنه وکړه په څه وجه ؟ هغه وفرمایل چې په دی وخت کی بـه دزمکې لـه سرنه پر هر منبرباندې به زموږ لپاره ددعاګانو آوازونه پورتـه کیږي ځکه چې نن دجمعې ورځ ده. لـه غرمی نه وروسته ټولو لمونځ وکړ. بیا پاچاوویل : هریوکس تـه لـه بل سره درخصتیدو آخري ملاقات وکړئ اوکه څوک وصیت کول غواړي نو وصیت دی هم وکړي. ټولو همدغسې وکړ. پاچا ورته وویل مادروم په لښکر باندې دیرغل کولو قصد او عزم کړیدی کله چې زه ورباندې یرغل وکړم نوتاسې هم لـه ماسره یوځای یرغل وکړئ اوزه چې هرڅه کوم هغه تاسی

هم وکړئ. رومیانو مسلمانانو ته ټول داسې شل صفونه جوړ کړل چې د یوصف هم ډیر والې له امله لراوبر نه ښکاریده. پاچا وویل دالله په نوم اوبرکت سره ماپسې تاسې هم حمله شروع کړئ. پاچا یرغل شروع کړ هغه پسې دهغه لښکرهم یرغل شروع کړ. ددښمن صفونه یې مات کړل اودپاچا خیموته یې ځان ورساو. هلته خپل لښکر ته دتم کیدو حکم وکړ. بیایې هغه خیمې محاصره کړې. له پاچا سره چې کوم خلک وو دهغوی په خوب او خیال کی دانه راته چې دلته به هم څوک ورسیږي، لهذا هغوی ټول دغفلت په حالت کی ووژل شول. مسلمانانو دیورومي عسکر سر غوڅ کړ اوپه یوه نیزه باندې یې اوچت کړ او اعلان یې وکړ چې درومیانو پاچا ووژل شو. ددغه اعلان په آوریدو سره دښمنان وارخطااوګډوډ شول ماته یې وخوړه او وتښتیدل. خو مسلمانانو له هغوی نه دتیرو ورځو انتقام واخست دلښکر ټول خلک یاخو ووژل شول اویاهم ونیول شول. سلطان ارسلان دپاچا په تخت باندې کیښناست اودهغه په دسترخوان باندې یې ډوډۍ وخوړله. بیایې حکم وکړ چې درومیانو پاچا دې حاضر کړی شي. دهغه په غاړه کې رسۍ واچولی شوه او میدان ته رواستی شو. الپ ارسلان له رومي پاچانه پوښتنه وکړه چې که تاغلبه موندلې وای نو تابه له ماسره څه کړي وو؟ هغه ورته وویل مابه ته وژلې. الپ ارسلان ورته وویل : زه خوستا پشان د ذلیل انسان وژنه نه خوښوم. حکم یې وکړ چې بوځئ او خرڅ یې کړئ. مسلمانو عسکرو دهغه په غاړه کې پړی آچولی و اوپه لښکر کې ددی دخرڅولو اعلان یې کاو خوهیچا وانه خست آن چې دلښکر آخري سرته ورسیدل. هلته یوسړي وویل : که چیرته دسپي په بدل کې خرڅوئ نو زه به ددغه سپې په بدل کې واخلم. عسکرو هغه سړی الپ ارسلان پاچا ته راوست او ورته یې وویل چې هیڅ چابیه هم نکړېرواخې داسړی یې دسپي په بدل کې آخلي. پاچا ورته وویل سپی هم لدینه ښه دی ځکه چې دسپي څه ګټه خوشته اودا هیڅ ګټه نه لري. بیا پاچا دهغه د آزادولو حکم وکړ او ویې ویل چې سپی اودا دواړه په یورسۍ کې وتړئ اوخپل ښارته یې ورسوی کله چې هغه خپل ښار ته ورسید نو دهغه ځای خلکو هغه له پاچاهۍ نه لرې کړ اوپرځای یې بل سړی وټاکه.

ابن عساکر له زبیربن بکار هغه له یوکوچي نه روایت کوي هغه وایي چې عبدالعزیز بن زراره الکلابي په نوم یو شریف سړی و او ډېر زیات مال یې درلود په عیش او عشرت کې یې ژوند تېراو.

هغه وویل : ای الله زه عبدالعزیز تاګواه نیسم چې هغه خپل مال ځان او خپل اهل دالله په لاره کې دجهاد لپاره وقف دی.

بیاخپل پلار ته راغې او ورته یې وویل ته زما درای‌په باره کې څه وایې؟پلار یې ورته وویل ستا رای دمنلو ده ای عبدالعزیزه! الله دې تاخوشال کړي هغه وویل :ماخپل ځان ،مال او اهل دالله په لاره کې دجهاد لپاره وقف دی. پلار یې ورته وویل :دالله په نوم دجهاد لپاره ووځه.

هغه له مجاهدینو سره قسطنطینیه ته لاړ. هغه غوښتل چې خپل ځان شهادت ته حواله کړي ، یوه ورځ له رومیانو سره جنګ ګرم اود دتورو شرنګار جوړشو عبدالعزیز درومیانو په لوی لښکر کې ورننوت اوترهغه پورې یې جنګ وکړ نردی چې داسې شهادت یې په برخه شو لکه څنګه یې چې غوښت.محمدبن جریر طبری روایت کړیدی چې عبدالوهاب بن بخت له ابي محمد بطال سره په روم کی غزا وکړه مسلمانانو په روم باندې یرغل وکړ خو ماتې یې وخوړه اوپه تیښته یې لاس پورې کړ. عبدالوهاب خپل اس دجنګ په طرف زغلاوه او ویل یې : ماستا په شان بزدل اس چېرته نه دی لېدلی. الله تعالی دی زما وینه توی کړي که ماستاوینه تویه نکړه.

بیاله خپل سرنه اوسپنیزه تهوپۍ یې لرې کړه او آواز یې وکړه زه عبدالوهاب بن بخت یم ایاتاسې له جنت نه تښتئ. ددښمن په طرف لاړ او حمله یېورباندی وکړه هغه د یو داسې تږي سړي له څنګ نه تیرشو چې ویل یې آه زه تږی یم.

ابن بخت په لښکر کې دننه ننوت اوله دښمن سره په جنګیدو کې پخپله هم شهید شو او اس یې هم ووژل شو.

طبری همدغه راز روایت کړیدی چې علی بن اسد ډېر ګنهګار انسان و هغه قتلونه او نور غټ غټ ګناهونه کړي و. یوه شپه په نیمه شپه کوفه کې روان و چې له یوسړي نه دالله تعالی ددغه آیت تلاوت واورید:

﴿يَاعِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُواعَلَى أَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا مِنْ رَحْمَةِ اللَّهِ﴾ (الزمر:۵۳).

ای زماهغه بندګانو چې تاسې پخپلو ځانونو زياتې کړيدی دالله له رحمت نه مه مايوسه کېږئ.

علي دغه سړی ته وويل : دا ايت بياولوله.دا آيت بياولوله . هغه ولوست بيايي ورته وويل چې دآيت يوځل بياولوله هغه ورته ولوست ، څو څو ځلي د تکرارولو غوښتنه يې وکړه او هغه ورته تلاوت وکړ. ددغه آيت له آوريدونه وروسته يي غسل وکړ اوبيايې خپلې جامې ووينځلې دالله په عبادت کې لګياشو آن تردی چې د ژړا له لاسه سترګې يې کمزوري او زنګنونه يې د اوښ دزنګنو په شان شول بياهغه درومیانو په خلاف سمندري جهاد ته لاړ. مسلمانانو خپلې کشتۍ د روميانو کشتيو ته نژدې ودرولې. علي له خپل ځان سره وويل زه به نن دجنت دترلاسه کولو کوشش کوم دايې وويل او تن تنها درومیانو په کشتيو حمله وکړه. په جنګيدو جنګيدو هغه اويو څو روميان دکشتۍ په يوګوټ کی راغونډ شول اوکشتۍ واوښتله ، علي ابن اسد چې داوسپنې زغره يې په سر کړی وه په اوبو کې ډوب او دشهادت لويه درجه يې ترلاسه کړه.

ابن المبارک روايت کړيدی چې عکرمه بن ابی جهل ﷺ ديرموک د غزاپه ورځ له اس نه راکوز شو او پياده روان شو.

خالد بن وليد ورته وويل : ته داکار مه کوه په مسلمانانو باندې ستامرګ ډير درووند تماميږي. عکرمه ورته وويل زمامخه پرېږده. تاسې خپل ژوند دمحمد ﷺ په ملګرتياکې تير کړی دی اوزه دخپل پلار سره وم چې دمحمد ﷺ له سختو دښمنانو څخه و. عکرمه پياده جنګ ته ادامه ورکړه او هلته شهيد شو داټول هغه شېږ ويشت پېښې او واقعات دي چې مجاهدين جهاد ته ورانديې او له غټو دښمنانو سره مخامخ شويدي. په دغو واقعاتو کې ډيرو بهادرو مجاهدينو په يواځې ځان ددښمن په لوی لښکر باندې او ډيرو وړو وړو ډلو ددښمن په لويو لويو لښکرونو باندې دشهادت په شوق يرغلونه کړيدي. اودمجاهدينو داکارونه لوی اوقبول شوې جهاد و.

# فصل

## د دښمن په ډېر لښکر باندې يواځې ديومجاهد دبريد كولو په اړه دعلماو ترمنځ اختلاف دی

په دې خبره پوهيدل پكار دي چې علماء كرامو په جنګ كې ددښمن په ډيرو كسانو باندې ديو مجاهد په يواځې ځان دبريد اوپه هغوی کی دننوتلو په اړه اختلاف كړيدی كه څه هم تاسې وړاندې هغه واقعات اوپيښې ولوستل چې ددښمن په ډيروكسانو باندې يواځې ديومجاهد بريد كولو په استحباب باندې دلالت كوي مګر ددې سره سره علماو په دې اړه اختلاف كړيدی.

امام ابو حامد غزالي په احياء علوم الدين نومی كتاب كی دخپلو خبرو امربالمعروف اونهی عن المنكر په ترڅ كې ليكلي دي:

كه چېرې د مسلمانانو دايقين وي چې هغه به له شهيد كيدو نه وړاندې دښمنانو ته څه نقصان اوضرر ورسوي.

ياخپل جرئت اوبهادري ورته ښكاره كړي اودښمنان وويروي. ياپركافرانو دمسلمانانو دبهادرۍ اودشهادت دجذبې رعب واچوي نوداسی مسلمان لپاره په يواځې ځان په پوره لښكر باندې يرغل كول روادی اګركه دهغه دايقين وې چې زه خامخا شهيدكېږم.

خوكه هغه ته دامعلوم وي چې په دی بريد سره دښمن ته هيڅ تاوان نه رسيږي نوبيادا حمله حرامه ده. لكه يو ړوند سړی چې خپل ځان ددښمنانو په منځ كې واچوي چې ماووژنئ اوشهيد مې كړئ .

علامه نووي وايي چې دجمهورو علماو په نزد يواځې ديومجاهد ددښمن په صف كې ورننه كېدل اوخپل ځان دشهادت مرګ ته وړاندې كول له كراهت نه پرته روا دی

امام شافعي رحمه الله وايي چې درسول الله ﷺ په وړاندې اصحابو کرامو په مبارزه کې ګډون کړی و. دانصارو يوشخص چې له نبی کريم ﷺ نه يې ددې دفضيلت اوښيګڼې بيان واوريد نو دبدرېه ورځ په يواځې ځان په مشرکانو باندی يرغل وکړ.

ابوعبدالله قرطبی رحمه الله فرمايي چې په پوره لښکر باندی ديوسړي دبريد کولو په اړه دعلماو ترمنځ اختلاف دی.

قاسم بن مخيمره اوقاسم بن محمد او عبدالملک فرمايي : که چېرته په يوسړي کې ددښمن په لښکر باندی د بريدکولو توان وي او نيت يې هم خاص دالله رضا وي نو بياخه باک پکې نشته. خوکه په ځان کی قوت نه ويني نو بيا ځان په هلاکت کی آچول دي.يوقول داهم دی چې که چېرته هغه دشهادت په لټه کی خالص نيت لري نو يرغل ورباندی کولې شي ځکه چې مقصد همغه دی چې دقرآنکريم په دی آيت کی بيان شوېدی:

﴿وَمِنْ النَّاسِ مَنْ يَشْرِي نَفْسَهُ ابْتِغَاءَ مَرْضَاةِ اللَّهِ﴾ ( البقرة:۲۰۷)

له خلکونه ځينې هغه کسان دي چې دالله دخوښۍ ترلاسه کولو لپاره خپل ځان خرڅوي ابن خويز منداد رحمه الله وايي چې که چېرته يوسړی په سلو کسو دښمنانو، يادغلو په يوه ډله ياعسکري قطعه باندې په دې يقين بريد کوي چې هغوی به وژني اوپخپله به ترېنه دځان په خلاصولو بريالی کيږي نوبيا ورته بريد کول ښه کار دی همدغه راز که دهغه داغالب ګمان وي چې که زه شهيد هم شوم نو دښمنانو ته هم نقصان رسولی شم او ياپرهغوی داسې اثر قائمولی شي چې دمسلمانانو لپاره ګټور وي نو داهم ورته جائز دی.

محمدبن الحسن رحمه الله فرمايلی دي چې که چيرته يو مسلمان مجاهد په يواځې ځان دمشرکانو په زرو کسو باندی بريد وکړي نوپه دې کی څه باک نشته خوداهله چې دهغه يقين داوي چې يابه ترېنه نجات ترلاسه کوي اويابه هم په کفارو باندې دمسلمانانو رعب او وېره آچوي او هغوی ته به زيان رسوي اوکه چېرته دايقين يې نه وي نوبيا مکروه دی ځکه چې هغه خپل ځان پخپله هلاکت ته وړاندی کړ او مسلمانانو ته په کې هيڅ ګټه نه وه.

اوکه چیرته په دی کی دهغه مقصد مسلمانانو ته جرئت ورکول وي چې هغوی هم زما پشان په کفارو بریدونه وکړي نوبیا هیڅ ممانعت په کی نشته ځکه چې په دی سره مسلمانانو ته ګټه رسیږي. همدغه راز داسې حمله په هغه صورت کې هم رواده چې مقصد یې ددښمنانو ویرول اوي، دی پوهول وي چې مسلمانان په دین باندی کلک ولاړدي اونه په شاکیږي بیشکه دالله تعالی ددین دسرلوړي اودکفارو دکمزوري کولو لپاره دځان قربانول ډیر لوی کار دی، او الله تعالی دهغوی صفت بیان کړیدی.

﴿إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ

[ التوبة :١١١ ].

بې له شکه الله تعالی له مؤمنانو نه دهغوی ځانونه اومالونه آخستي دي په دی چې هغوی لپاره جنت دی.



# فصل

## د مبارزی د بیان په باره کې

په اتفاق سره داجائزه ده چې که چیرته کافر له مسلمان نه دمبارزی ( مقابلې) غوښتنه وکړي نو دهغه لپاره وتل مستحب دي. خوددې ابتداء نه مستحب دی اونه مکروه. بلکې داد هغه چالپاره ښه ده چې په دی کی تجربه ولري اوله خپل قوت نه خبروي ، هغه چالپاره مکروه ده چې کمزوري اوپخپل ځان باور نلري. د امیرپه حکم اوله حکم نه پرته مبارزه په راجح قول سره رواده.

له امام مالک رحمه الله څخه دهغه چاپه باره کې پوښتنه وشوه چې په جنګ کې د دوو صفونو په منځ کې ودریږي او آواز کوي چې څوک له ماسره مبارزه کوي ؟ هغه

رحمه الله وويل : دادهغه نيت پوري اړه لري کـه چيرته هغـه په دی سره دالله تعالی رضا ترلاسه کول غواړي نوزما اميد دې چې هغه ته به ثواب ورکړی شي.

امام شافعي رحمه الله ويلي دي چې دمبارزی هیڅ باک نشته.

ابن المنذر رحمه الله ويلي دي چې دپاچا په حکم سره مبارزه ښه او غوره ده اوڅوک چې د امام له حکم نـه پرته مبارزه کوي په هغه کې څه حرج اوبدي نشته ، مبارزه بد کار نـه دی ځکـه چې ماتـه داسې کـوم خبر نـه دی رسېدلی چې دمبارزی نه يې منع کړی وي ، پـه جـنـګ کـې مـبـارزه او څـوک چـې مـبـارزه کـوي دهغـه غوښتـنـه منل دپهلوانانو دقهرمانانو او بهادرانو طريقه او شعارو. د جاهليت او اسلام په زمانه کې به هغوی په دی باندی فخرکاو .

اصحابو درسول الله ﷺ په زمانه کې دمحمد ﷺ په امر سره مبارزه کړېده. همدغه راز دراشده خلفاو پـه زمانـه اوله هغوی نـه وروسته پـه زمـانوکې مسلمانانو مبارزه کړېده .

موږ وړانـدې ددی خبرې يادونـه وکړه چې براء بن مالک رضي الله عنه ددښمن لـه سلو سرو سره مبارزه وکړه اوهغوی يې ووژل.

ابن اسحاق پخپل سيرت کې ليکلي دي چې علي بن ابی طالب رضي الله عنه د خندق په ورځ لـه عمروبن عبدود سره مبارزه وکړه، ځکه چې عمروبن عبدود ميدان ته ووت او آواز يې وکړ چې څوک له ماسره مبارزه کوي.؟

علی رضي الله عنه چې زغره يې اغوستې وه ودريد او ويې ويل يارسول الله ! زه لـه دې سره مقابله کوم . نبی کريم ﷺ ورته وفرمايل:

داعمرو دی ، کښينه،عمرو ټول مسلمانانو ته آواز وکړ چې په تاسوکې کوم سړی داسې نشته چې لـه ماسره مبارزه وکړي.؟ هغه مسلمانانو ته داپيغور ورکړ: ستاسو هغه جنت چېرته دی چې تاسې دايقين لرئ چې کله له تاسی‌نه څوک ووژل شي سيده همغلته ځي.

علی رضي الله عنه وويل يارسول الله ! زه ورسره مبارزه کوم. رسول الله ﷺ ورتـه وفـرمايل : کېښنه.

عمرو په دریم خل آواز وکړ او ویې ویل:

- زما مرۍ په چیغو چیغو خرابه شوه ایا په تاسو کې څوک مقابله کوونکی شته؟

- اوزه دمقابله کوونکي مبارز په شان ودریدلم کله چې مقابله کوونکي بهادران بزدل شول.

- همدغه راز زه لـه جنګ پیـل کیـدو نـه وړانـدې پـه تیـزي سـره وارکوونـکی یـم. شجاعت په ځوان کی وي اوسخاوت پـه ښـه غریزه طبیعت لـرونکي سړي کی. علی رضی‌الله عنه پاڅید او ویی ویل زه ددی مقابله کوم . رسول الله صلی‌الله علیه وسلم وویـل داعمرو دی ؟علـی ﷺ ورتـه وویـل : اګـر کـه عمـرو وي . محمد ﷺ ورته اجازه ورکـړه. دهغـه خواتـه لاړ او ورتـه یـې وویـل تـلوار مـه کـوه تاتـه سـتاد آواز داسـې قبلوونکی راغلی دی چې عاجز نه دی.

دنیت اوبصیرت خاوند دی اوربښتیاګوی په هروخت کی کامیاب وي ، زه امید لرم چې زه به په تاباندی دمړي ویرکوونکی ودروم.

اودتورې به داسې ګوزار درکړم چې یادونه به یې دهر جنګ په وخت کی کولی شي . عمرو ورته وویل ته څوک یې ؟

هغه ورته وویل : زه علی بن ابی طالب یم.

عمرو ورته وویل : ای زما وراره ! له خپلو ترونو نه څوک راوباسه چې له تانه مشران وي زه دانـه خوښوم چې ستاوینه توی کړم. علی ﷺ ورته وویل : لاکن په الله قسم چې زه ستا وینه تویول بد نه ګڼم .

عمرو تـه غصـه ورغله او پـه ډیر قهر او غضـب سره رامخکی شـو خپلـه توره یـې وویسـتله هغـه داسې پړقیده لکه د اور شغله ، په ډیر غضب یې دعلي کرم الله وجهه په طرف یي مخ واړاو، علي ﷺ پخپل ډال سره دهغه مخې ته ودرید عمرو دهغه ډال پـه تـوره وواهـه ډال یـې څیـری یـې کـړ اوتـوره یـې همغلـته ونښـته اودعـلي ﷺ سرتـه ورسید او زخمي یې کړ، علي ﷺ توره اوچته کړه اوهغـه یـې پـه څټ باندی وواهه اوپرزمکه وغورځید. خلکو پرهغه چغې پورتـه کـړې. رسول الله ﷺ دالله اکبر نـاره واورېده او پوه شو چې علی ﷺ هغه وواژه .

په کوم وخت کې چې عمرو بن عبدود دخندق په ورځ ووژل شو په هغه وخت دهغه عمر ۹۰ کاله و او دقریشو له ځوبهادرانو څخه یو هغه هم و.

دیرموک په جنګ کې د مسلمانانو څخه یوشخص راووت اوددوارو صفونو ترمنځ ودرید .

دروم لښکر ته یې آواز وکړ چې دمقابلې لپاره ورته خپل سړي وباسي. داوښ په شان یوغټ سړی چې داوسپنې زغره یې آغوستې وه راووت مسلمان پرهغه دتورې ګوزار وکړ اوځای پرځای یې وواژه.

مسلمان بیارومي لښکر ته آواز وکړ چې زما مقابلې لپاره څوک راوباسئ. هغوی خپل بیرغچي راوویست. مسلمان هغه هم دتورې په یوګذار پرزمکه راوغورځاو او مړ یې کړ. دریم ځل بیادمقابلې لپاره آواز یې وکړ. رومي لښکر ورته وویل : شیطان ته ووایه چې ستامقابلې ته راووځي. علماء حضراتو په دی خبرې اختلاف کړیدی چې آیادهغه مسلمان مرسته رواده چې له کفارونه یې د مقابلې غوښتنه کړې وي ؟

ځینو علماو دهغه له مرستې نه ممانعت کړیدی او ځینو علماو اجازه ورکړېده .

چاچې دمرستې رخصت ورکړیدی په هغو کی امام شافعی او امام احمد شامل دي. هغوی دادلیل نیولی دی چې کله دبدرپه غزا کې مسلمانانو قریشو ته دمبارزې دعوت ورکړی و نو اصحابو کرامو دخپل ملګري مرسته کړې وه .

(( روى أبـو داود عـن علـيٍّ بـن أبي طالب ﷺ قال : تقدم عتبةُ بن ربيعة وابنه الوليد وأخوه شيبة ، فنادى عتبة : من يبارز؟

فانتدب له شباب من الأنصار.

فقال : من أنتم ؟

فأخبروه ، فقال : لا حاجة لنا فيكم!

فنادى : اخرجوا إلينا أكفاء نا من قومنا!

فقال ﷺ : قمْ ياحمزةُ ، قم ياعليّ، قم ياعبيدة بن الحارث.

فأقبل حمزةُ إلى عتبة فقتله ، وأقبلْتُ إلى شيبة فقتلْتُه ، واختلف بين الوليد وعبيدة ضربتان ، فأثخن كل واحدٍ منهما صاحبه.. ثم ملْنا على الوليد فقتلْناه ، واحتملْنا عبيدة ... [1] ))

له علي ﷺ نه روايت دی هغه وايي چې عتبه بن ربيعه. دهغه زوی وليد او ورور يې شيبه را وړاندې شول او عتبه اعلان وکړ چې څوک لـه موږ سره مقابله کوي ؟ دانصارو يوشخص دهغوی مقابلې لپاره راووت.

هغوی ورته وويل ته څوک يې ؟ هغه خپل ځان ور وپېژانده . هغه ورته وويل موږ ته ستاضرورت نشته. بيايي يوځل اعلان وکړ چې تاسې زموږ مقابلې ته زموږ له قوم نه خپل سيال راوباسئ.

رسول الله ﷺ وفرمايل : ای حمزه ! ته ورته پاڅه، ای علي ته ورته پاڅه ای عبيده بن الحارث ته ورته پاڅه.

حمزه ﷺ لـه عتبه سره مقابلې تـه ووت او هغـه يې وواژه. زه ( علي ) له شيبه سره مقابلې تـه ووتلم اوهغه مې وواژه. د وليد اوعبيده ترمنځ دتورو دوه ګوزارونه وشول اوهريو يودبـل وينې توی کړی بيا موږ په وليد حمله وکړه هغه مو وواژه اوعبيده مو ترېنه اوچت کړ.

غوره خبره داده چې کله مسلمان او کافر دمقابلې په وخت داشرط کيږدي چې هېڅوک بـه ورسره مرسته نـه کوي نو بيا پـه دی باندې ودريدل واجب دي. که چيرته کافر مسلمان وواژه نو مسلمانانو ته جائز دي چې کافر ووژني.

اوکله چې کافر لـه مسلمان نـه دمقابلې کولو غوښتنه وکړي نودهغه ويشـتل اومړکول روادی ځکه چې هغـه مشرک دی دهغه لپاره نه عهد دی اونه امان او وژل يې مباح دي.

---

[1] ـ اخرجه ابو داود: ٣/ ١١٩ ـ ١٢٠ وسنده حسن

# پنځه ويشتم باب

## له جنګ نه تېښته او شا اړول ډېره لويه ګناه ده

الله تعالى مسلمانانو ته ارشاد فرمايلى دي:

﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا لَقِيتُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا زَحْفًا فَلَا تُوَلُّوهُمُ الْأَدْبَارَ. وَمَنْ يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُ إِلَّا مُتَحَرِّفًا لِقِتَالٍ أَوْ مُتَحَيِّزًا إِلَى فِئَةٍ فَقَدْ بَاءَ بِغَضَبٍ مِنَ اللَّهِ وَمَأْوَاهُ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴾ [الأنفال١٥-١٦]

اې مومنانو! کله چې له کافرانو سره ديولښکر په بڼه مخامخ شواست نوله هغوی نه تېښته مه کوئ. اوهرڅوک چې په دې ورځ تېښته وکړي پرته له دې چې دجنګ تاکتيک يې غوښتنه کوي اويا له بلې جنګيالۍ ډلې سره يوځای شي. نوپه تحقيق چې دالله غضب يې په برخه اوجهنم يې دورتګ ځای دی او هغه دورتګ لپاره ډېر بدځای دی.

ای مسلمانه ! په دی خبره ځان ښه پوه کړه چې له کفارو سره دجنګ په وخت تېښته کول روانده او دټولو علماو په اجماع دالله په نزد تېښته ډېره لويه ګناه ده. هرڅوک چې له جنګ نه تېښته کوي هغه دالله تعالی دقهر اوغضب مستحق دی او الله تعالی به ورته ډېره سخته او دردوونکي عذاب ورکوي .په ګڼ شمير احاديثو کې ددی وبال او وعيد ذکر شوې دی چې ځينې يې دادي :

((روى البخاري ومسلم عن أبي هريرة ﷺ، أنَّ رسول الله ﷺ قل : اجتنبوا السبع الموبقا ت.

قيل : وماهنَّ يارسول الله ؟

قـال الشركُ بالله ، والسحر، وقتل النفس التي حرم الله إلا بالحق، وأكلُ مال اليـتيم ، وأكل الربا ، والتولي يوم الزحف ، وقذ ف الـمحصنات الغافلات المؤمنات ... [١] ))

له ابى هريره رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل:

لـه اووه هلاكوونكـو ګناهونو څخـه ځانونـه وساتئ چـاوويل : يارسـول الله ! هغـه ګناهونه كوم كوم دي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل:

له الله سره شريک نيول، سحر، دهغه چاوژل چې الله تعالى دهغه وژل حرام كړي وي مګرپه حقه سره، ديتيم مال خوړل، سود خوړل ، دجنګ په ورځ لـه جنګ نه تېښته كول او په هغومومنوښځو باندې تهمت لګول چې هغوی ناخبره اوپاک لمنې وي.

(( و روى الطـبراني فى الكبير عن عبيد بن عمير بن قتا دة الليثيّ رضي الله عنه أنَّ رسـول الله ﷺ قـال في حجـة الـوداع : (( إن أولياء الله المصلون ، ومن يقيم الصـلوات الخمس التي كتبهنَّ الله عليه ، ويصوم رمضان ، ويحتسب صومه ، ويـرى أنـه عـليه حق ، ويؤتي الزكاة محتسباً طيبةً بها نفسه ، ويجتنب الكبائر التي نهى الله عنها !فقال رجلٌ من أصحابه : يارسول الله : كم الكبائر ؟

قـال : تسـعٌ . أعظمهُـنَّ الإشـراك بالله ، وقتل المؤمن بغير حق، والفرار من الـزحف ، وقذ ف المحصنة ، والسحر، وأكلُ مال اليتيم ، وأكلُ الربا ، وعقوق الوالدين المسلمين ، واستحلال البيت الحرام... [٢] ))

---

[١]ـ اخرجه البخاري برقم : ٦٨٥٧ ومسلم برقم: ٨٩

[٢]ـ المعجم الكبير للطبراني : ١٧/ ٤٧ ـ ٤٨ رقم : ١٠١، ورجاله موثوقون.

له عبید بن عمیر بن قتاده اللیثي رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله ﷺ په حجة الوداع کې وفرمایل : بېشکه دالله دوستان لمونځ ګذارا ن دي ، او هغه څوک چې دی سره پنځه فرضي لمونځونه اداکوي ، دروژې دمیاشتې روژې یې په دی یقین سره نیسي چې داوزباندی حق دي او الله ورته ثواب ورکوي او زکات د زړه په خوشالي سره ورکوي . اوله هغو لویو ګناهونو څخه ځان ساتي چې الله جل جلاله له هغونه ممانعت کړیدی.

یواصحابي پوښتنه وکړه یارسول الله ﷺ کبیره ګناهونه څو دي ؟

رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : ۹ ګناهونه کبیره دي. په دی ټولو کی لویه ګناه له الله سره شریک پیداکول دي، په ناحقه دمؤمن وژل ، دجنګ له میدان نه تیښته کول، په پاک لمنه ښځې باندې تومت لګول، سحر کول. دیتیم مال خوړل، دمسلمان مور اوپلار نافرماني کول اودبیت الحرام سپکاوی ل.

ابن المبارک په کتاب الجهاد کې له ابی هریره رضي الله عنه نه روایت کړیدی هغه رضي الله عنه وایي : هر هغه سړی بهادر دی چې کله دښمن حاضر شي نو وتښتي. اوبی زړه سړی هغه دی چې کله دښمن حاضر شي . هغه حمله وکړي تردی چې الله څه وغواړي هغه وشي .

خلکوپوښتنه وکړه ای ابوهریره داڅنګه کیدای شي ؟ حضرت ابوهریره رضي الله عنه ورته وفرمایل : هغه سړی چې دجنګ له سنګر نه تښتي هغه په دې خاطر تښتي چې دالله تعالی په مقابل کې، خپل جرئت ښکاره کوي اوکوم سړی چې بې زړه وي نه تښتي هغه له الله تعالی نه ویریږي اوله دښمن سره کلکه مقابله کوي.

(یادونه ) داچې تښتیدونکې سړي ته بهادر ویل شویدي دایوقسم په هغه باندی طنز دی.

# فصل

## ددښمن د حاضریدو په وخت کی جهاد فرض عین دی

ای مسلمانه వروره ! په دی خبره ځان پوه کړه چې په عمومي توګه جهاد کفايي فرض دی. خوکله چې د مسلمانانو اوکافرانو لښکرې یوبل ته مخامخ شي نو په دی وخت کی په هر مسلمان باندې فرض عین ګرځي.

که چیرته ددښمن تعداد له مسلمانانو نه دوه برابر زيات نه وي نوله میدان نه تښتیدل حرام دي خوکه دښمن ته د دوکې ورکولو لپاره وروسته کیږي ترڅوله وروسته نه پردښمن یرغل وکړي نو بیا روادی. یاداچې له خپل مورچل نه وروسته کیږي او ځای بدلوي ترڅو دښمن هغه پسې وګرځي او هغه پردښمن ناڅاپي یرغل وکړي. یاداچې دجنګ ځای تنګ وي اودی شاته کیږي ترڅو په فراخ ځای کی ورته کیني او چې کله دښمن هغه پسې هلته ورشي نو هغه ورباندې برید وکړي یامخې ته لمر وي اونښي کولې چې په دښمن باندې ډزې وکړي اویا مخامخ ورته سخت بادلګیږي نودی خپله مخه بدلوي نوداورته جائزدی.

یادی یواځې وي اوپه دی مقصد شاته کیږي چې لښکر ته ځان ورسوي اوله همغه ځای نه پردښمن برید وکړي. برابر خبره ده چې دالښکر لوی وي یاوړوکې لری وي یانژدې . دسختی ناروغی ، دوسلې دختمیدو تړېره وخته دجنګ دجاري ساتلو وس او توان نه لرلو له کبله هم وروسته کیدل ورته روادي. اوکه چیرته له یوسړي سره وسله ختمه شي او دی کولې شي چې دښمن په کاڼي وولي نوبیا ورته وروسته کېدل روانه دي.

کوم سړی چې دعذر په وجه تښتي نو هغه لپاره ښه داده چې په دښمن باندې د دوباره یرغل کولو په نیت وتښتي.

که چېرته دیومجاهد اس مړشي اودی پیدل جنګ نه شي کولې نو هغه ته له سنګر نه وروسته کېدل اوتښتیدل روا دی. اوکه دایقین یې وي چې که زه له دښمن سره په

جنګ کې په کلکه اوثبات سره وجنګیږم نو دښمن ته نقصان رسولی شم نو بیا ورته تښتیدل روا نه دي.

که چیرته د کفارو تعداد له مسلمانانونه له دوچندی نه زیات و نو وروسته کیدل ورته جائز دي خو ددښمن په خلاف کلک ودریدل او ورسره جنګ کول غوره دي خصوصاً چې دجنګ کولو طاقت او توان په ځان کی لري. اوکه چیرته ددښمن شمیره له دو چند نه زیات نه وي مثلاً دمجاهدینو شمیر سل تنه وي او ددښمنانو شمیره دوسوه وي نو سلو مجاهدینو ته وروسته کیدل او تښتیدل حرام دي.

نووي دابي القاسم قول نقل کړیدی چې که چېرته له مسلمانانو نه دکفارو زیادت له دوچندی نه زیات و نو دیته به کتلی شي چې که چیرته د مسلمانانو غالب ګمان داوچې که له دښمن سره په سختی اوثابت قدمي سره وجنګیږي نو کامیابیږي نو دوی لپاره همدلته کلک و[illegible]دل ښه دي. اوکه غالب ګمان یې داو چې په دی صورت کی مسلمانانو ته زیات ځاني نقص[illegible] رسیږي نو تښتیدل ورته روادي،خو غوره داده چې ونه تښتي، بلکې له دښمن سره دی ت[illegible]که مقابله وکړي اګر که ټول شهیدان شي.امام النووي ویلي دي : صحیح خبره داده چې په داسی حالت کې تیښته درباندې واجب نه دی بلکې مستحب دی.

دامام احمد بن حنبل مذهب دادی چې کله ددښمن تعداد له مسلمانانو نه ددوه برابري نه هم زیات و، او غالب ګمان داو چې دجنګ په حالت کې ټول مسلمانان وژل کیږي او دتښتي په حالت کې نجات مومي نو غوره داده چې له جنګ نه وروسته شي. خوکه ونه تښتي اوله دښمن سره خپل جنګ جاري وساتي نو دا ورته د شهادت داوچتې مرتبې دترلاسه کولو په خاطر رواده.

لیکن غوره قول دادی چې کله په داسې ځای کی له دښمن سره مقابله کوي چې هیڅ نقصان ورته نشي رسولي بلکې پخپله له نقصان سره مخامخ کیږي نوداسې کول ورته ګناه ده اوپخپل لاس[illegible] هلاکت ته ځان سپارل دي، ددی مثال داسې دی لکه چې یو ړوند سړې خالي لاس ددښمن مقابله کوي اوددښمن له لاسه وژل کیږي.

---

[1]ـــ روضة الطالبین للنووي : ۱۰/ ۲۴۹

خوکه چېرته مسلمان په خالص نیت سره دشهادت مرګ د ترلاسه کولو په خاطر له دښمن سره په پوره مېړانه او بهادري سره جنګیږي او ورسره وسله هم وي چې دښمن ته نقصان رسوي نو په دې جنګ کې که مسلمان ووژل شي هم نودالله په نزد ورته ثواب ورکول کیږي ان شاء الله تعالی.

که چېرته یو مسلمان له دوه کافرو سره مخامخ شي او هغوی ورسره جنګ شروع کړي نو دده لپاره تیښته جائزه ده خو دهغوی په مقابل کې په استقامت او ثبات سره جنګیدل ورته غوره ده. ځکه چې الله تعالی مؤمنانو ته دکفارو په وړاندې چې کله دهغوی شمېره له مسلمانانو نه دو برابره وي په استقامت او ثبات سره د ودریدو حکم کړیدی. لکه چې فرمایلی دي:

﴿يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضْ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى الْقِتَالِ إِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ عِشْرُونَ صَابِرُونَ يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ وَإِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ مِائَةٌ يَغْلِبُوا أَلْفًا مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَا يَفْقَهُونَ ٥. الْآنَ خَفَّفَ اللَّهُ عَنكُمْ وَعَلِمَ أَنَّ فِيكُمْ ضَعْفًا فَإِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ مِائَةٌ صَابِرَةٌ يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ وَإِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ أَلْفٌ يَغْلِبُوا أَلْفَيْنِ بِإِذْنِ اللَّهِ وَاللَّهُ مَعَ الصَّابِرِينَ﴾ [الانفال : ٦٥ - ٦٦ ]

ژباړه :ای پیغمبره ! مؤمنان جنګ ته وهڅه ه. که ستاسې شل صبرکوونکې وي نو پردوه سووبه برلاسی شي. او که ستاسې سل تنه وي نو په زرو کافرانو به برلاسې شي ځکه چې کافران ناپوهه قوم دی. اوس الله تعالی پرتاسې اسانتیا راوستله او معلومه یې کړه چې په تاسې کی سستي او ناتواني ده نوکه ستاسې سل تنه صبرکوونکي ډله وه نو باید پردو سوو برلاسی اوکه زر و نو باید دالله په حکم پر دوه زرو برلاسی شي . الله پاک له صبر کوونکو سره دی.

ابن عباس رضي الله عنهما فرمایلی دي چې که چیرته یو مسلمان له درې تنو کافرانو څخه وتښتید ګویا هغه نه دی تښتیدلی دا ورته رواده، اوکه له دوه کافرانو څخه وتښتید نوهغه تښتیدلی دی او داتیښته ورته روانده.

امام قرطبی ویلي دي چې که چیرته لـه مسلمانانو نه دکفارو شمیره دوبرابر نه زیات و نو مسلمانانو ته تښتیدل روا دي خوکه ونه تښتي او په استقامت او بهادري سره وجنګیږي نو د اورته غوره ده.

دموتي پـه غـزاکې د مسـلمانانو درې زره لښکـر د روم لـه درې لکـه دښمـن سـره جنګیدلی دی، او دطارق بن زیاد ۱۷۰۰ لښکر د اندلس په فتحه کې د اسپانیایې کفارو لـه نوي زره لښکر سره جنګیدلي دي. خو مسلمانانو لپاره تیښته هم جائزه ده کله چې دکفارو دلښکر شمیره د مسلمانانو لـه لښکر نه لـه دوچنده نه زیات وي ابن قاسم ویلي دي چې که چیرته دکفارو شمیره لـه مسلمانانونه دوچنده زیاته نه وه او دمسلمانانو امیرلـه جنګ نـه وتښتید نـو مسلمان لښکـر لپـاره جائز نـه دي چې لـه جنګ نـه وتښتي بلکې ورسره جنګیدل پکاردي. خوکه لـه دوچند نه زیات شمیرېي و نوبیاورته تښتیدل جائز دي.

ځینو علماو ویلي دي چې کلـه دکفارو شمیره د مسلمانانوله تعدادنـه دوچنده زیاتـه وي نـو مسلمانانو تـه تېښتـه کـول رواده،خوکه د مسلمانانو شمیر دولس زره و نوبیاکـه ددښمـن دلښکر شمیره د مسلمانانو د شمیرې له دوه برابري نه هم زیاته وه نو تیښته وُرته روانده. دغو علماو درسول الله ﷺ لـه دی حدیث نه استدلال کړیدی.

(( اَنَّ رسولَ الله ﷺ وسلم قال : لَنْ يُغلبَ اثنا عَشر الفًا من قلَّةٍ .)) [1]

ژباړه : نبي کریم صلی الله علیه وسلم ویلي دي هیڅ کله به هم دولس زره کسیزه ډله دلګ والي ( کموالي ) له امله مغلوب نشي .

علماو ویلي دي چې دغه حدیث دهغه آیت دعموم لپاره مخصص دی چې وایي : کله ددښمن شمیره لـه مسلمانانو نـه دوچنده وي نو پر مسلمانانو واجب دي چې په ثبات او استقامت سره وجنګیږي اوکه له دوه چنده نه زیات وي نو تیښته ورته رواده

[1]_ سنن ابي داود : ۳/ ۸۲ . وسنن الترمذي : ۳/ ٥٦ _ ٥٧ وسنن الدارمي : ۲/ ۲۱٥ ومستدرك الحاكم : ۲/ ۱۰۱ ، والحديث رجاله ثقات رجا ل الشيخين

علماء وايي: کله چې د مسلمانانو شمېره دولس زروته رسيږي نو تېښته ورته روانده اګرچې ددښمنانو شمېره له دوچند نه هم زيات وي.



# فصل

## دالله تعالی مرسته او نصرت له مجاهدينو سره دی

پوه شه چې دالله تعالی لـه خپلو بندګانو سره کيدل په دوه ډوله دي، يو دعلم او احاطی په لحاظ سره دی اودا عام دی ، مسلمان او کافر دواړو ته شامل دی اوله خپلو بندګانو څخه چې څوک هرڅه کوي په ټولو پوه دی اودهغه جل جلاله لـه علم نه پټ نه دی. او هغه په ټولو احاطه کړی ده دمخلوق نـه هيڅوک لـه هغه نه غائبيدی نشي لکه چې الله تعالی پخپل کتاب قرانکريم کې فرمايي:

﴿ هُوَ الَّذِي خَلَقَ السموات وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوَى عَلَى الْعَرْشِ يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِي الْأَرْضِ وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا وَمَا يَنْزِلُ مِنْ السَّمَاءِ وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا وَهُوَ مَعَكُمْ أَيْنَ مَا كُنْتُمْ ﴾[الحديد:٤ ].

الله هغه ذات دی چې اسمانونه او زمکه يې په شپږو ورځو کې پيدا اوبيايي پرعرش استواء وکړه هغه څه ورته ټول معلوم دي چې په زمکه کې ننوځي اوتری را ووځي او هغه چې لـه آسمان نـه رابښکته کيږي اودهغه په لور ورخيژي. هغه لـه تاسې سره دی تاسې چې هرچېرته ياست او الله ستاسې دکړنو ښه ليدونکې دی.

اوبل دالله تعالی داقول:

﴿أَلَـمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِي السموات وَمَا فِي الْأَرْضِ مَا يَكُونُ مِنْ نَجْوَى ثَـلَاثَةٍ إِلَّـا هُوَ رَابِعُهُمْ وَلَا خَمْسَةٍ إِلَّا هُوَ سَادِسُهُمْ وَلَا أَدْنَى مِنْ ذَلِكَ وَلَا أَكْثَرَ إِلَّا هُوَ مَعَهُمْ أَيْنَ مَا كَانُوا﴾ [المجادلة:۷].

ایاتـه نـه پوهېږې چې الله پاک د آسمانونو اوزمکې لـه هرڅه نـه خبردې؟ هیڅکله داسې نـه کېږي چې د دریو تنو پټې خبرې دی وي او څلورم دې الله نه وي اونه داسې شوي چې دپنځو کسانو پټه غونډه دې وي اوشپږم دې الله نه وي که دپټو خبرو وال لدېنه لږ یا زیات وي او هرچېرې او هر وخت وي الله ورسره دی. ( هیڅ ترې نشي پټېدلای.دویم ډول معیت خصوصي دی اوداد مرستې اوتائید معیت دی یعنی الله تعالی په ځانګړي ډول دهغو مؤمنو مسلمانانو مرسته اوتائید کوي چې صالح او عبادت ګذار وي. لکه چې دالله تعالی مبارک ارشاد دی:

﴿إِذْ يقولُ لصاحبه لاتَحْزَنْ إِنَّ الله معنا ﴾ [ التوبة ٤٠ ]

کله چې محمد ﷺ خپل ملګري تـه ویل مـه غمژن کیږه بېشکه الله تعالی لـه موږسره دی.

اوبل دالله تعالی دامبارک ارشاد:

﴿فَلَا تَهِنُوا وَتَدْعُوا إِلَى السَّلْمِ وَأَنْتُمُ الْأَعْلَوْنَ وَاللَّهُ مَعَكُمْ وَلَنْ يَتِرَكُمْ أَعْمَالَكُمْ ﴾ [محمد۳۵].

نومـه سستېږئ اودسولې پـه لور بلنه ورکړئ ځکه چې تاسې غالب یې الله لـه تاسې سره دی او هیڅکله به ستاسې کړنې بابیزه نه کړي.

خودالله تعالی دا ډول معیت اوملګرتیا خپل بنده ته هله په برخه کیږي چې کله هغه دالله تعالی دبندګۍ صحیح حق اداکړي، اودهغـه پـه بندګۍ کې دسرغړونې هیڅ شائبه ونه لیندلی شي. کوم مسلمان مجاهد چې دا ډول بندګي وکړي نوبیاپرهغه هیڅوک نشي بریالی کیدلی ځکه چې الله دهغـه ملګري دی اودهغه مدد اومرسته کوي لکه چې الله تعالی فرمایلی دي:

﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ مَوْلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَأَنَّ الْكَافِرِينَ لَا مَوْلَىٰ لَهُمْ﴾ [محمد :۱۱ ].

داځکه چې الله تعالی دمومنانو دوست اوکار جوړوونکی دي، اوکافران هیڅ دوست اوکار جوړونکي نه لري.

کله چې مجاهد دعبودیت اوبندګي له اوصافونه په یو صفت کې له تقصیر او سستي څخه کار واخلي اویاد ایمان په غوښتنو کې له کومې یوې غوښتنې څخه خالي او مجرد شو اویایې د کافرانوکوم یو صفت خپل کړ نو دده اود کافر ترمنځ دمشابهت دډولونو څخه په یو ډول ورته والی پېداکېږي اوتیاره یې په زړه کی ځای نیسي زنګن کیږي. دویرې ، بزدلي ، ذلت ، رسوایي اوبې غیرتي په ډندکې لویږي. له دنیا اوخپل ژوندسره یې مینه پیدا کیږي. اوله شهادت نه تېښته کوي. له الله تعالی نه سر غړونه چې څومره ډېره وي همغومره به یې اثرهم ډیر وي چې پدې حالت کې بیا خدایي نصرت او امداد ډیر کم وي اوکه لږ وي نو داثربه یې هم لږه وي.

اياتاسې کله دحنین په کیسه غورکړیدې ، کله چې له مسلمانانو نه څه اشخاصو وویل : نن ورځ به هیڅوک پرموږ غلبه ونه مومي ځکه چې زموږ دلښکر شمیره ډیره ده، په دی ورځ د مسلمانانوشمیر دولس زره و خوالله تعالی هغوی ته دکبر او ددی عقیدی دنه شهود او حضور په وجه چې بری دالله په نصرت سره ترلاسه کیږي ماته ورکړه. دغه دواړه صفتونه دکافرانو له صفاتو څخه دي. کله چې په مسلمانانو کی هم همدغه اوصاف پیداشول نو الله تعالی دهغوی په زړونو کې هم وېره واچوله اوله دښمن نه وتښتیدل .

لکه چې الله تعالی فرمایي :

﴿وَيَوْمَ حُنَيْنٍ إِذْ أَعْجَبَتْكُمْ كَثْرَتُكُمْ فَلَمْ تُغْنِ عَنكُمْ شَيْئًا وَضَاقَتْ عَلَيْكُمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ ثُمَّ وَلَّيْتُم مُّدْبِرِينَ﴾ التوبة : ۲۵.

اودحنین په ورځ هم کله چې تاسې خپل ډېروالې وغولولئ خوڅه ګټه یې درته ونه رسوله اوپراخه زمکه دربانديې تنګه اوبالاخر مو په تېښته مخ په شا منډه واخسته .

اوالله تعالی داحد دپیښې په ورځ دلاسته راوړنې په اړه فرمایي:

﴿إِنَّ الَّذِينَ تَوَلَّوْا مِنكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ إِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ الشَّيْطَانُ بِبَعْضِ مَا كَسَبُوا﴾ ال عمران ۱۵۵.

کومو کسانو چې د دوه ډلو دمخامخ کېدلو په ورځ تاسې ته شاه اړولې وه بیشکه چې شیطان دخپلو عملونو له مخې ښویولي وو.

څرنګه چې محمد ﷺ له دغو اوصافو څخه معصوم اوپاک و اودا دهغه له مقام سره مناسب هم دی نوالله پاک هغه ﷺ اوله هغه سره څه نور مسلمانان یې وساتل. الله تعالی پرهغوی سکینه او ډاډ راښکته کړه اودښمن هغوی ته درسیدو لاره پېدانکړه ، الله تعالی له هغوی سره مرسته وکړه دښمن یې رسوا اوماته یې ورکړه. زموږ ددی خبرې تائید دالله تعالی دافرمان کوي :

﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قَاتِلُوا الَّذِينَ يَلُونَكُمْ مِنْ الْكُفَّارِ وَلْيَجِدُوا فِيكُمْ غِلْظَةً وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُتَّقِينَ ﴾[ التوبة: ۱۲۳]

ای مؤمنانو له هغوکافرانو سره وجنګیږئ چې تاسې ته نژدې دي هغوی باید له تاسې سختوالی ووینې. اوپوه شئ چې الله پاک دپرهیزګارانو مل دی.الله پاک آیت شریف په دی جمله ختم کړچې پوه شئ الله پاک دپرهیزګارانو مل دی.

ترڅو دعقل خاوندان په دی پوه شي چې دالله تائید او مرسته پرهیزګارانو لپاره مخصوصه ده.

ددې خبرې په تائید باندې دالله تعالی داقول هم دلالت کوي:

﴿ وَاصْبِرْ وَمَا صَبْرُكَ إِلَّا بِاللَّهِ وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَلَا تَكُ فِي ضَيْقٍ مِمَّا يَمْكُرُونَ۝. إِنَّ اللَّهَ مَعَ الَّذِينَ اتَّقَوْا وَالَّذِينَ هُمْ مُحْسِنُونَ ﴾ [ النحل ۱۲۷-۱۲۸]

او ای محمده ! صبر وکړه . ستاصبر یوازې دیو الله په مرسته او کومک سره دی، اودهغوی په ناورینو مه غمژن کېږه. اوهم یې په دسیسو او چلونو مه زړه تنګی کیږه بې شکه چې الله دهغو مل دی چې له بدی نه خانونه ژغوري او غوره چارې سرته رسوي.

نبی کریم ﷺ هم خپل امت ته په .ی اړه لارښونه کړېدې ترڅو زده یې کړي او عمل ورباندې وکړي.

(( روی الترمذی عن ابن عباس رضي الله عنه قال : کنت خلف النبی ﷺ یوماً،فقال : یا غلام : إِنِّي أُعَلِّمُكَ کلمات: احفظ الله يحفظك ، احفظ الله تجدْ ه تجاهك ، إذا سألتَ فأسأل الله ، وإذا استعنتَ فاستعن بالله ، واعلم أن الأمة لو اجتمعت على أن ينفعوك بشي ء ، لم ينفعوك إلا بشی ء قد کتبه الله لك ، وإن اجتمعوا على أن یضروك بشی ء لم یضروك إلا بشیء قد کتبه الله علیك رفعت الأقلام ، وجفت الصحف .[1]))

له ابن عباس رضي الله عنه نه روایت دی هغه وایي چې زه یوه ورځ دنبی کریم شاته روان وم. هغه ﷺ راته وفرمایل : ای ځوانه ! زه تاته څوخبرې درښایم. دالله جل جلاله دحدودو حفاظت وکړه الله به ستا حفاظت وکړي ، دالله داحکامو حفاظت وکړه ته به خپل عزت او مقام ترلاسه کړې ، کله چې ته څه غوارې نو له الله نه وغواړه. کله چې مرسته غوارې نو له الله نه مرسته وغواړه. پوه شه چې که چیرته ټول امت تاته دګټې رسولو لپاره سره راغونډ شي نو هغوی تاته هیڅ ګټه نه شي رسولی مګر هغه چې الله درته لیکلي ، اوکه چیرته ټول امت تاته دنقصان رسولو لپاره پخپلو کې سره راغونډشي نو هغوی تاته هیڅ نقصان نه شي رسولی مګر هغه چې الله درته لیکلي دي. قلمونه پورته کړی شویدی او صحیفې وچې شویدي. مخکیني مجاهدین له ګناهونو نه ډیر سخت ویریدل ځکه هغوی په جهاد باندې ددی له بدو اغیزو څخه خبر و اوپه دی هم پوهیدل چې داکله کله دهزیمت او ماتې سبب ګرځي.

حافظ ابن کثیر رحمه الله پخپل تاریخ کې لیکلي دي چې دسلطان ظاهر بیبرس په زمانه کې یو مسلمان مجاهد به دالله په لاره کې پخپل آس باندې غزا کوله، دهغه داس عادت وچې میدان ته به یې په منډه اوتیزي سره حرکت کاو. یوه ورځ هغه خپل

---

[1] ــ سنن الترمذي : ٤/ ٧٦ والحديث صحيح .

آس وزغلولو خوآس میدان ته ونه زغلید او وروسته شو څومره یې چې وواهه هیڅ اثر وربانديې ونه شو اودډښمن په لوري ګام اوچت نکړ. هغه داس په دې کار باندې ډېر حیران شو. کله چې هغه په دې باره کې ژور غور وکړ نو هغه پوه شو چې خپل اس ته په یوه کوټه او بیکاره روپۍ باندې ګیاه آخستی وه یعنی آس ته یې حرامه ګیاه ورکړې وه. اودې ګیاه دهغه په اس باندې اثر کړی و اود جهاد له لارې نه یې وروسته کړی و.

یوچاداحکایت او کیسه کړې ده چې ځینې مسلمان عسکرو دکفارودکلاګانو څخه یوه کلا محاصره کړه اوپر کفاروباندې دغلبې اوفتحې ترلاسه کولو کې وروسته والی راغی. دهغوی امیر ورته وویل : له تاسونه دافتح او برې دیوسبب په وجه وروسته شویدی تاسې پخپلو عملونو نظر واچوئ چې کوم بدعت مو کړیدی اوکه یاکوم سنت موپریښی دی؟ هغوی چې غور وکړ نو ورته معلوم شو چې دمسواک وهلو سنت یې پریښې دې.

تاسې وګورئ چې دغه تاثیردیوسنت دپریښودلو په وجه و اوپه دی باندی نور حرام کارونه هم قیاس کړئ. لکه حرامه ډوډۍ خوړل او حرام لباس په تن کول اوداسې نور ګناهونه چې شیطان له همدی لارې نه یو مسلمان ښویوي اوپه ګناه اوتیښته کې واقع کوي.

اې مجاهده وروره! دالله له شریعت نه دسرغړاوې نه ځان په کلکه وساته ، ترڅوستا همت عزم او نیت کمزورې نکړي. خپل زړه دالله ددین مخالفت له خیرې نه پاک کړه د وسوسو په تیارو کې دیقین اوتوکل ډیوې بلې کړه. دهغه چاپه شان اقدام وکړه چې یقین ولري له مرګ نه په هیڅ حالت کی خلاصون نشته. او تیښته له مرګ نه څوک نه شي خلاصولې. اګرچې ستا دامنډه دغرونو لوړو څوکوته ولې نه وي. که ستا نیتیه پوره شوې وي نو هملته به دربسې راشي او مړبه شې. دانسانانو هیڅ قسم حیله او چل ول له مرګ دخلاصون لپاره په کار نه راځي لکه چې الله تعالی فرمایلی دي:

﴿أَيْنَمَا تَكُونُوا يُدْرِكُّمُ الْمَوْتُ وَلَوْ كُنتُمْ فِي بُرُوجٍ مُشَيَّدَةٍ ﴾ ( النساء : ۷۸).

تاسې چې هرچیرته یاست مرګ درته همغلته درځي اګرکه په کلکو برجونوکې واست الله تعالی چې دچالپاره مرګ لیکلې وي هغه لدینه دخلاصیدو لپاره هیڅ لاره نه شي موندلې. لکه چې الله تعالی فرمایلی دي:

﴿قُلْ لَوْ كُنْتُمْ فِى بيوتكم لبرزالَّذِينَ كتِبَ عليهِمْ الْقتْلُ إِلَى مَضاجِعِهِمْ ﴾
[ آل عمران : ١٥٤ ]

ورته ووایه که واست تاسې په کورونو ستاسې کې نوچالپاره چې وژل لیکل شوې و هغه به خامخا د وژلو ځای ته وروتلو.

اوالله تعالی فرمایلی دي:

﴿وَلَيَنْصُرَنَ الله مَنْ يَنْصرهُ إِنَّ الله لقويٌ عزيزٌ ﴾[ الحج : ٤٠ ].

اوالله به خامخا دهغوخلکو ملاوتړي چې دهغه ددین ملاتړي وي، بی له شکه الله ډېر توانا اوپرهرڅه برلاسی دی.

ای تښتیدونکیه ! که ددی لپاره تښتی چې عمر دی زیات شي نوپوه شه چې په تښتیدو سره دی عمرنه زیاتیږي اوددښمن په مقابله کې په کلکه ودریدو سره عمر دی نه کمیږي. په دی ځان پوه کړه چې دمرګ نیټه نه مخکې کیږي او نه وروسته کیږي.

پوه شه چې تاپه تېښته کولو سره دالله نافرماني کړیدی اودجبار ذات قهرته راغلی یې د ذلت اوبی غیرتی جامی دې په تن کړیدي اود مسلمانانو او کفارو په نظر کی سپک شوې یې.که چیرته ته له دی ویریږي چې دښمن به دې ونیسي اوبندي به دی کړي نو ته خپل آخرت خرابوې. په دې کې هیڅ شک نشته چې دهر عقلمند سړي په نزد کله چې دمرګ وخت رانژدی شي له هغه نه دتښتیدو پرځای هرکلی کول ورته پکار دي.

په دې باره کې متنبی څومره ښه ویلي دي:

واذالم يكن من الموتِ بُدٌّ – فَمَنْ العجزانِ تموت جباناً.

کله چې لـه مرګ نـه خلاصی نه وي.نودا ډیر د ذلت خبره ده چې په بې غیرتي سره مړشي .

یزید ابن الحکم ابن ابی العاص ویلي دي .

وعش ملکا اومت کریما فان تمت　　　وسیفك مشهور بکفك تعذر

یعني دپاچا په شان باعزته او ازاد ژوند تیروه اویادعزت په مرګ سره مړشه او که تاته مرګ په داسې حال کې راغې چې لغړه توره ( یعنې لـه پوښ ایستل شوې ) ساپه لاس کې وي نو ته معذور یې.( یعنې دادعزت مرګ ده .)

دزړه ورونه یو زړه ور دا اشعار ویلي دي :

اقول لها وقد طارت شعاعا　　　من الابطال ویحك لا تراع

زه خپـل نفس تـه په داسې حال کې داوایم چې دپهلوانانو بهادرانو نه دویرې لـه امله یې وانې تښتیدلې تالره دی هلاکت وي مه ویریږه !

فانك لوسالت بقاء یوم　　　علی الاجل الذی لك لن تطاع

ځکه کـه تـه پـه خپـل اجل باندی دیوې زیاتی ورځـې سوال وکړ نو هیڅ کله به هم ستاداسوال قبول نشي .

فصبرا فی مجال الموت صبرا　　　فمانیل الخلود بمستطاع

نـو دمرګ پـه جولانګـاه ( دګرځیدو ځای ) کې صبر وکـړه ځکه همیش ژوندی پاتې کیدل دهیڅ چا په وس کې نشته .

ولا ثوب البقاء یثوب عز　　　فیطوی عن اخ الخنع الیراع

دبقاء او زیات عمر جامه ذلیـل او ډارن سړي تـه کوم عزت او شرافت نه ورپه برخه کوي ترڅو ترینه ونغښتل شي .

سبیل الموت منهج کل حی　　　وداعیه لاهل الارض داع

هر ژوندی شی دمرګ دلارې لاروی دی او دمرګ داعيْ او دابلوونکي دځمکې دټول اهل داعی دی

ومن لم يعتبط يسأم ويهرم وتسلمه المنون الى انقطاع

څوک که په ځوانۍ کې مړنشي نو هر مرو به سپين ګيرې ( بوډا ) شي اوله ژوند نه به په تنګ شي او بلا خر به يې مرګونه پناه کړي.

لموت المرء خير من حياة اذا ماعدمن سقط المتاع

بې له شکه په هغه وخت کې سړي ته مرګ له ژوند نه خورا غوره او بهترده کله چې " هيڅ شې " وبللی شي

بهلول ابن بشر چې دعربو يو شجاع او زړه ورشاعر و هغه ويلي دي .

من كان يكره ان يلقى منيته فالموت اشبهى الى نفسي من العسل

څوک چې دخپل مرګ سره ملاقات او يوځای کيدل بدګڼي ( نو دادی هغه ته ورمبارک وي ) زما نفس ته خو مرګ له شهدو ( ګبينو ) نه هم زيات خوږ دی .

فلا التقدم فى الهيجاء يعجلنى ولا الحفرار نيجيني من الا جل

خکه په سخته نښته کې پرمختګ کول زما مرګ نشي رامخکې کولې . اونه تيښته ماته له اجل ( مرګ ) نه نجات راکولې شي .

دتاريخي آثارو ديوې چاړې په موټی داشعر ليکل شوی و.

فى الجبن عار وفى الاقدام مكرمة غمن قعز فلا ينجومن القدر

ډارنتوب عار او عيب ده اوپه پرمختګ کې عزت ده نوکه کوم سړې له جنګ نه تيښته هم وکړي له تقدير نه خونشي خلاصيدلې .

دابيت ديوې جنګي خولۍ نه ترلاسه شوې .

والحرب ان لاقيتها فلايكن منك الفشل اصبر على اهوالها لاموت الابالاجل

که دجنګ سره دی مخه شوه نو بزدلي او ډارنتوب مه ښکاره کوه دجنګ په سختيو صبر وکړه ( اوله مرګ نه مه ويريږه ) خکه له اجل نه پرته مرګ نشي راتللای .

يوشاعر ويلي دي :

لئن كانت الارزاق قسما مقدرا　　　فقلة حرص المرء فى الرزق اجمل

کچېره درزقو نو تقسيم په تقدير کې ليکل شوې وي نو ديوسړي له رزق سره زيات حرص زيبا نه دی .

وان كانت الاموال للترك جمعها　　　فما بال متروك به المرءيبخل

اوکه دمال اودوست راټولو نه دپرېښودو لپاره وي نو په خلکو څه شوي چې په پاتې کيدونکي څيز باندې بخل کوي .

وان كانت الدنيا تعدنفيسة　　　فقدر ثواب الله اعلى وانبل

اوکه دنيا ته هم څوک دعزت په سترګه ګوري ( يعنې قيمتي يې ګڼي )
نو دالله تعالى دثواب اندازه ډيره اوچته او خورا غوره ده .

وان كانت الابدان للموت ا نشئت　　　فقتل امرء فى الله بالسيف اجمل

او کچېرته انساني جسمونه يواځې دمرګ لپاره پيداشوي وي نو دخدای جل جلاله درضا په خاطر په تورې سره ديوې سړي وژل کيدل ډير زيبا دی.

پوه شه له جنګ نه تښتنه کول دمرګ له سفرونو څخه يوسفراوپه هغه څه باندې حرص کول دي چې هيڅ بقانه لري. ډېر څلي ژوند مرګ ته د وړاندې کيدوپه سبب حاصليږي اوډير څلی مرګ له ژوند نه دتيښتيدو په سبب ترلاسه کيږي. جنګيدونکي سړي ته له مرګ نه دټيدو لپاره ځای نشته چې خپل اجل وروسته کړي ترڅوپورې چې اجل يې وروسته نه وي ليکل شوې .

چاچې دالله په لاره کې خپل ځان مرګ ته وسپاره نو الله تعالى هغه ته ژوند هم ورکوي اودنيک عمل کولو توفيق هم.

له جنګ نه تښتيدونکی خپل ځان مرګ ته حواله کوي او جنګيدونکی دخپل نفس دفاع کوي. کله چې دمرګ دنيتې فيصله وشي نولدينه بياخلاصی نشته . ای تښتيدونکيه ! ته له دينه نه ويريږې چې تاته به مرګ راشي نوته دجهنم د اور خاشاک وګرځې. اياته لدينه نه ويريږي چې پرتابه داسې وخت کی غشي ولګيږي چې ته تښتيدونکی يې اوشا دې ورته اړولی وي اوتابه په جهنم کی وسوځې.

دهغو خلکو کیسې هغوی دخپل دین په باره کې په امتحان کې آچول شویدي څکه هغوی تبنتیدل او ونیول شول او یادڅه شهوت په بناء له خپل دین نه ګرځیدلي او نصرانیان شویدي ډیر دي چې یوه دوه کیسې یې په لاندې ډول دي:

ابوالقاسم قشیري پخپل ( رساله القشیریه ) کې لـه منصور بن خلف المغربی نه روایت کړیدی هغه وایي چې دوه عابدان او زاهدان لـه ډیروخت راهیسې یوله بل سره ملګري ول. یوه وخت یو ترینه په سفر لاړ او بل پخپل ځای کی پاتی شو او دواړه یو د بل له حال نه خبرنه وو.

صالح سړی د روم جهاد تـه لاړ. کله چې مسلمانان درومي عسکرو سره دجنګ میدان تـه حاضر شول . نـو یوسړي چې مخ یې پټ کړی و دروم دلښکر لـه منځ نه راووت او لـه مسلمانانونه یې د مقابلې غوښتنه وکړه. له مسلمانانو څخه یوه بهادر دهغـه د مقابلې لپاره میدان تـه ودانګل خو هغـه یې شهید کړ. هغه پسې دوه نور مسلمان سپاهیان ووتـل خو هغوی یې هم شهیدان کړل له هغوی نه وروسته دهغه دمقابلې لپاره دغـه صالح او زاهد شخص میدان تـه راغې. له هغـه سره یې مقابله وکړه په دی وخت هغـه رومي لـه خپل مخ نه پرده لری کړه. ګوري چې همغه مَلګری یې دی چې لـه دی سره په مجاهده او عبادت کې څوکاله یوځای تیر کړي وو.

مجاهد چې هغـه ولیـد نو حیران شو او داتوقع یې نه درلوده چې ګنې دهغه ملګري بـه لـه رومیانو سره یوځای شوې وي اولـه مسلمانانو سره به جنګیږي ، هغه ته یې وویـل څه چـل دربانـدی شویدې ؟ ځواب یې ورکړ چې زه مرتد اونصراني شوی یم له رومیـانو سره می مـلګرتیا کړیده. زمـا اولادونـه هم شته اوډیر زیات مال او حال می پیداکړیدی. مجـاهد ورتـه وویـل : تاخوقـران کـریم هـم ډیرښه لوست او وربـاندې ښـه پوهیدلی هم ، هغـه څـه شو ؟ هغه ځواب ورکړ چې دقران کریم یوحرف می هم اوس نـه دی یاد ټول می لـه یاده ویستلی دی. مجاهد ورتـه وویل بیرتـه اسلام تـه راوګرځه او مسلمان شـه الله تعـالی ستاتوبه قبلوي. هغه وویل زه داکارنشم کولی که داکار می وکړ نـو زمـا مـال او اولاد بـه رانـه پاتی شي. ددواړو ترمنځ مقابله ګرمه شوه او مجاهد هغـه مرتد نصراني مـردار کړ ، پـه دې دنیا اوهغه دنیادواړوکې لـه تاوان سره مخامخ شو او دا ډیر لوی تاوان دی.

بیهقي له عبده بن عبدالرحیم نه روایت کوي هغه وایي چې یوځل موږ دجهاد لپاره روم ته لاړو. له موږ سره یوداسې دقرآن قاري ملګری شو چې دهغه په شان بل څوک زیات دقران تلاوت کوونکي موږ نه ولیدلی او نه هم څوک دهغه په شان په دین باندې ښه پوهېدل. هغه به دورځې روژې نیولې اودشپې به د تهجد لمونځونه کول. موږ درومیانو دیو کلا له څنګ نه تیرشوو. موږ ته دا امر نه و چې ددې کلا په خواکې ودریږو خودقرآنکریم قاري ددغه کلا په طرف لاړ. موږ فکر وکړ چې متیازې به کوي. هغه د نصاراو یوه ښځه ولیدله او ورباندې عاشق شو. په رومي ژبه کې یې ورته وویل چې زه تاځنګه ترلاسه کړم ؟ هغې ورته وویل داخو اسان کار دی. نصراني شه زه به تاته دروازه خلاصه کړم اوزه به ستاشم. هغه بدبخت نصراني شو . هغې ورته دروازه خلاصه کړه .

موږ خپل سفر جاري و... اته اودهغه په دې کار ډیر سخت خفه او غمژن وو، ځکه چې هغه زموږ دټولو دزوی پشان و. بیاکله چې له جهاد نه واپس راغلو نو په همدغه کلا باندې بیا ورتیرشو. ګورو چې هغه دکلا په برج کې ناست اوله نورو نصاراو سره یوځای دکلا حفاظت کوي. موږ ترینه پوښتنه وکړه چې ای ځوانه ستا قرآن او علم څه شو؟ لمونځ او روژې دې څه کړې ؟ هغه وویل ماقرآنکریم ټول له یاده ویستلی دی یواځې دغه آیت مې په یاد دی:

﴿رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ كَانُوا مُسْلِمِينَ ذَرْهُمْ يَأْكُلُوا وَيَتَمَتَّعُوا وَيُلْهِهِمُ الْأَمَلُ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴾[ الحجر: ۲- ۳]

ترجمه : کافران به یو وخت آرزو وکړي چې کاش ! دوی مسلمان وای. دوی پخپل حالت کې پرېږده چې خوړل څکل کوي او ګټه ترلاسه کوي. او ناوزګاره کړېدي دوی امیدونو خپلو ژرده چې پوه به شي.

کله چې یو مؤمن په صدق سره جهاد کوي اوددښمن په لاس کې بندي شي. دهغه دین په باره کې ازمېښت اوابتلاء سره مخامخ کړی شي نوالله تعالی دهغه ساتنه اوحفاظت کوي اوپخپل دین باندې قائم اوکلک ساتي.

په دې لړ کې یوه بله کیسه دعبدالله بن خذافه السهمي ﷺ ده.

ابن الاثیرلمه ابن عباس رضی الله عنه نه روایت کوي چې رومیانو عبدالله بن حذافه السهمی رضی الله عنه بندي کړ. دهغوی پاچا لـه هغه نه وغوښتل چې نصرانیت قبول کړي ، لیکن هغه انکار وکړ اوپخپل دین باندی کلک ودرید. پاچا تهدید وکړ چې که لـه خپل دین نه وانه وړې نو په خوټیدلو اوبو کې به یې واچوي. هغه د مسلمانانو لـه بندیانو څخه یوبندي راوغوښت اوپه خوټیدلو اوبو کې یې واچاو. او فوراً دهغه غوښې لـه هډوکي نه جلا شوې. ابن حذافه تـه یې ژویل که چیرته نصراني نه شوې نوتابه هم ددی پشان په اوبوکې واچوم او ددی پشان به ته هم مړشې .

هغه انکار وکړ اونصرانیت یې مسترد کړ. پاچا امر وکړ چې دی هم په دی خوټیدلو اوبو کې واچوئ. عبدالله بن حذافه رضی الله عنه په ژړاشو.

پاچا فکر وکړ چې وویرید نو دواپس راوستو حکم یې وکړ. کله چې دهغه په وړاندی ودرید نو هغه رضی الله عنه وویل : تاسې دافکر مه کوئ چې لـه ویرې نه ژاړم بلکې لـه دی کبله ژاړم چې زماخوصرف یوساه ده چې دالله په لاره کې یې قربانوم. زه داخوښوم چې کاش زما دسر دویښتانو په اندازه ساګانې وای اوهرځل می دالله په لاره کی داسې قربان کړی وای. پاچا دابن حذافه په دی خبره حیران شو. هغه کوشش وکړ چې ابن حذافه دوکه کړي او تیرېې باسي ورته یې وویل نصراني شه زه به تاته خپله لور درواده کړم او خپله پاچاهي به درسره نیمه کړم، ابن حذافه ورته وویل زه داسې هرګز نه شم کولې پاچا ورته وویل بیانو زماسر ښکل کړه نوزه به تا خوشې کړم ابن حذافه ورته وویل په دی شرط یې ښکلوم چې لـه ماسره به نور بندي ملګري هم خوشې کوي ، حضرت ابن حذافه دپاچا سرښکل کړنوهغه دی هم خوشی کړ اونورمسلمانان بندیان یې هم ورسره خوشی کړل . حضرت ابن حذافه رضی الله عنه حضرت عمر رضی الله عنه ته راغی نو هغه رضی‌الله ودرید او دحضرت عبدالله بن حذافه رضی الله عنه سر یې ښکل کړ. او نورو ته یې هم وویل چې په تاسو هریو باندې دحذافه رضی الله عنه داحق دی چې تاسې ټول دهغه سرښکل کړئ. عمر رضی الله عنه هم دهغه رضی الله عنه سرښکل کړ او نورو هم.

مسلمان لپاره جائز نـه دي چې دجنګ لـه میدان نـه دمرګېدو لـه وېرې وتښتي. کـه چیرته دالله په لاره کې په وژل کیدوکې دمرګ لـه تکلیف نه دنجات موندلو نه علاوه

بل څه نه وای نوبیابه هم په قتال کې ثبات واجب و، پس کله چې لـه مړکیدونه وروسته هم لویه کامیابي اودجنت نعمتونه دي نو څنګه به په جنګ کې ثبات نه ښودل کیږي.؟

علي بن ابی طالب رضی الله عنه به مسلمانان جنګ ته وهڅول او فرمایل به یې: که شهیدان نشې نو مړه به شئ. قسم دی په هغه لوی ذات چې زما روح دهغه په اختیار کې دي چې دالله په لاره کې دتورې سل ګوزارونه په بستره باندی دمړکېدو لـه تکلیف نه زیات آسان دي.

شداد بن اوس رضی الله عنه فرمایلی دي چې موٴمن لپاره مرګ ددنیا آو اخرت لـه ټولو ویرونه زیات ویروونکی او خطرناک دی. داپه اری سره د اره کیدو، په قینچي سره دشکولو، اوپه دیګ کې لـه ایشدلو نه زیات سخت دی.

ای وروره ! ته خپل ځانته وګوره چې ته څه شی ځان ته خوښوې او ورته منډه وهې؟ لـه دغو دواړو نه کوم یو ستا لپاره غوره دی؟ دالله په لاره کې وژل کېدل اوکه لدېنه تښتیدل؟

کوم خلک چې پخپلـه بستره کې مړکیږي هغوی دمرګ سختي او ویره پخپلو سترګو ویني. اوله مرګ نه وروسته چې کوم حالت راځي هغه هم احساسوي چې هغه لدېنه هم زیات ویرونکی او بوږ نوونکی وي لکه دقبر تنګېدل، ویره، دنکیر او منکر امتحان، دهغوی پوښتنې. دقیامت چیغه، بیرته ژوندي کېدل، دحشر میدان، دقیامت دورځې سختیانې او تکلیفونه. د اعمال نامو تقسیمیدل، په پل صراط باندی تېریدل، حساب اوکتاب اوپه تله کې دخیراوشر تلل کېدل

دغو ټولو خبروته الله تعالی پخپل کلام کې اشاره کړیده:

﴿يَاأَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمْ إِنَّ زَلْزَلَةَ السَّاعَةِ شَيْءٌ عَظِيمٌ ۝ يَوْمَ تَرَوْنَهَا تَذْهَلُ كُلُّ مُرْضِعَةٍ عَمَّا أَرْضَعَتْ وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا وَتَرَى النَّاسَ سُكَارَى وَمَا هُمْ بِسُكَارَى وَلَكِنَّ عَذَابَ اللَّهِ شَدِيدٌ﴾ [ الحج : ۱-۲ ]

ای خلکو! لـه خپل رب نـه وډارشئ اوپوه شئ چې دقیـامت زلزله خورا درنه ده. په کومه ورځ چې ورسره مخ شی نو وبه ګوری چې هره تي ورکوونکي له خپل تي خورنه بې پروا، اوهره بلاربه ښځه به په خیټه کې خپل ماشوم ګوزار او خلک به درته نیشه ښکاره شي، هغوی لـه مستی نه نیشه نه وي بلکې دالله عذاب خورا ډیر سخت دی.

او الله تعالی پخپل کلام کی دشهیدانو د ژوند په باره کې فرمایلی دي:

﴿ وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ٥ فَرِحِينَ بِمَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ وَيَسْتَبْشِرُونَ بِالَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُوا بِهِمْ مِنْ خَلْفِهِمْ أَلَّا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ﴾.آل عمران[ ۱۶۹ - ۱۷۰ ]

ژباړه :اوهغـه کسـان چې دالله پـه لاره کې شـهیدان شویدي مړه يې مه ګڼئ. هغوی ژوندي دي اودرب پـه وړاندې روزي ورکول کيږي. په هغه څه خوښ دي چې الله پاک دخپلې لورینې لـه مخې ورکړیدي. اودهغو کسانو په هکله زیرې آخلي چې لـه دوی وروسته پاتی اوتراوسه ورسره نه دي یوځای شوي چې نـه بـه پرې ډار وي او نه به غمژن کیږي.

داهغـه شـهیدان دي چې دالله پـه لاره کې وژل شـویدي. دوی دقیـامت لـه سختو مشکلاتو او تکالیفو نه په امن کی پاتی شوي دي. دجنت په ډیرو ښکلو ښکلو بنګلو کې اوسېږي. دجنت د خوږو اوبونـه ډکې پیالې ورتـه ورکـول کیـږي. دجنت ښکلې لباس ورتـه آچـول کیـږي د فـردوس جنت لـه ډول ډول نعمتونو څخه خوند اخلي او خوري يي. لـه ښکلو او پی مخو همځولو حورونه چې سینې به يې د انارو پشان وي ګټه اوچتوي. روحونـه بـه يې دشنو مرغانو په ججورو کې وي او په اووه واړو جنتونو کې بـه چکـر وهـي . خـوراک څښـاک بـه ترینه کـوي اوبیـرته بـه هغـو قندیـلونو تـه داستراحت لپاره راځي چې درحمن ذات عـرش لاندی ځوړند دي. دغې دنیـا تـه بـه دواړنسي راتلو امیدکـوي تـرڅوداالله جل جلاله په لاره کې بیابیا ووژل شي دهغه ثواب په وجه چې الله تعالی ورته ورکړیدی.

څومره دشرم خبره ده چې دالله په لاره کې دجهاد لپاره له دې فرصت نه ګټه نه اخلو.
او ډیرافسوس دی چې مونږ جهادته دشاکولو لـه وجې نـه ددومره کړاوونوزغملوته ځان اماده کوو.

هغه څوک بـه سباته الله سره پـه کومـو سترګو مخامخ کیږي چې نـن یـې دهغه لـه دښمنانو نه تیښته کړی.

اوله الله جل جلاله سره دسودا ترپوره کیدو وروسته یې دخپل ځان په نه ورکولو سره یې سودا ماتله کړه.

الله جل جلالـه دی خپـل جنت ته رابللی و خو ده ترې منډه کړه او دالله له ملاقات نه دی ځان مستغني کړ.

الله تـه بـه څـه عـذر وړاندی کـوې چې دهغـه لار دی پریښي وه او هغـه چې دکومې ستری کامیابۍ خواته ترغیب درکړی و هغی نه تارغبت کړی و.

ای الله ! دټولو زړونو واګی خو ستاپه لاس کې دي ته زمونږ زړونـه ثـابت کـړی ای علام الغیوب ذاته ! ته زمونږ قصدونه او نیتونه خالص کړی.



# شپږ ویشتم باب

# له صحیح نیت نه پرته دجهاد اجر نه ترلاسه کیږي

د الله تعالی فرمان دی :

﴿ أَلَا لِلَّهِ الدِّينُ الْخَالِصُ ﴾ [ الزمر : ۳ ].

خبردار! سوچه اطاعت یواځې یو الله لپاره دی .

همدغه راز دالله تعالی فرمان دي :

﴿وَمَا أُمِرُوْا اِلاَّ لَيَعْبُدُوْا الله مُخْلِصِيْنَ له الدِّيْنَ ﴾[ البينة : ٥ ].

اودوی ته صرف داحکم شوی و چې دالله عبادت په اخلاص سره کوئ.

(( عَـنْ عمر بن الخطاب ﷺ قال : سمعتُ رسول الله ﷺ يقول :إِنَّمَا الاعمل بالـنيات ، وإِنَّمَـا لِكُـلِّ امرىءٍ مانوى، فمنْ كانت هجرته إِلَى اللهِ ورسوله ، فهجـرته إِلى الله ورسوله، وَمَنْ كانت هجرته لدنيا يصيبهُمَا او امرأةٍ ينكحها ، فهجرته الى ماهاجر اليه .[1]))

لـه عمـربن الخطـاب ﷺ نـه روايـت دی چی مالـه رسـول الله ﷺ نـه آوريـدلی دي : داعمـالو دار او مدار په نیتونو پورې دي او هر سړي ته هغه څه رسيږي چې د څه نیت یې کړی وي. پس دچاهجرت چې دالله اودهغه درسول درضالپاره وي نودهغه هجرت دالله اودهغـه درسـول لپـاره ( يعنې الله جـل جلالـه اودهغـه رسـول تـه مقبـول دی) دی. اودچاهجـرت چـې ددنیـا دترلاسـه کولـو لپـاره وي نـو هغـه بـه ورتـه پـه لاس ورشي،

[1] - اخرجه البخاري فى بدء الوحی :۱/ ۲ / ومسلم فى الامارة ۳/ ۱۵۱۵.

یادښتي لپاره وي چې ورسره واده وکړي نو هجرت یې دهغه څه لپاره دی دڅه څیز یې چې نیت کړیدی :

(( عَنْ جابربن عبدالله ﷺ: كُنَّا مَعَ النبى ﷺ فى غزوةٍ ، فقال : " اِنَّ بالمدينةِ لرجالاً، ماسرتُمْ مَسِيْراً، ولا قطعْتُمْ وادياً اِلاَّ كانوا معكم حَبَسَهُمَ المرضُ ". [1]))

له جابربن عبدالله ﷺ نه روایت دی هغه وایي چې موږ په یوه غزا کې له رسول الله ﷺ سره وو.. هغه ﷺ وفرمایل : په مدینه کې داسې خلک شته چې هغوی نه لاره کړیده اونه په درو کې ننوتی دي مګر هغوی په ثواب کی له تاسو سره شریک دي ځکه چې ناروغی هغوی غزاته له ورتللو نه منع کړیدي.

((وروى البخاري عن أنسٍ رضي الله عنه قال : لما رجع رسول ﷺ من غزوة تبوك ، ودنا من المدينة قال: إنَّ با لمدينة اقواماً ماسرتُمْ مسيراً ولاقطعتم وادياً إلاَّ كانوا معكم !

قالوا : وهم بالمدينة يارسول الله ؟

قال : وهم بالمدينة ، حبسهم العذر ))[2].

له انس ﷺ نه روایت دی هغه وایي : کله چې رسول الله ﷺ دتبوک له غزا نه واپس تشریف راوړ او مدینې ته نژدی شو نو ویې فرمایل : په مدینه کې داسې خلک شته چې نه یې له تاسی سره لاره وهلی ده او نه په درو کې دننه شویدي مګر هغوی له تاسو سره وو .

---

[1] - اخرجه مسلم فى الامارة : ۳/ ۱۵۱۸ .

[2] - أخرجه البخاري في المغازي : ٥/ ١٣٦ .

اصحابو وویل : یارسول الله ! هغوی خو په مدینه کې دي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل هو هغوی په مدینه کې دي عذر هغوی غزاته لـه ورتلو نه ایسار کړیدي.قرطبی رحمه الله ویلي دي چې داحدیث په دی دلالت کوي چې معذرو خلکو ته لـه غازي سره برابر ثواب ورکول کیږي. دالله فضل د هر پراخ دی اوثواب دهغه جل جلاله لـه لوری یوفـضل دي نه استحقـاق ، کله په نیت سره الله دومره اجر ورکوي چې په عمل سره یې نه ورکوي.

(( وروى البخاري ومسلم عن أبي موسى الأشعري رضي الله عنه ، أنَّ أعرابيًا أتى النبي ﷺ فقال : يارسول الله : الرجل يقاتل للمغنم ، والرجل يقاتل ليذكر، والرجل يقاتل لِيُرى مكانه ، فمن في سبيل الله ؟ [1]

فقال رسول الله ﷺ : (( مَنْ قاتلَ لتكونَ كلمةُ الله هي العليا ،فهوفي سبيل الله )). [2]

بخاري او مسلم لـه ابی موسی اشعري رضي الله عنه نه روایت کړیدی چی یو بانډه چی محمد ﷺ ته راغی او ویې ویل یارسول الله ! یوسړی ددې لپاره جهاد کوي چې دغنیمت مال ترلاسه کړي بل سړی دی لپاره جهاد کوي چی خلک دهغه جهاد یادکړي او مشهور شي اوبل سړی په دی خاطر جهاد کوي چی خپل حیثیت خلکوته ښکاره کړي ، په دی کې کوم یوسړی دالله په لاره کی جهاد کړیدی ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: څوک چې دی لپاره جهاد کوي چی دالله دین سرلوړی شي همغه دالله دلارې مجاهد دی .

دابوموسی اشعري په یوبل روایت کې دا الفاظ راغلی دي چې لـه رسول الله ﷺ نه دهغه سړي په باره کې پوښتنه وشوه چې دخپل بهادري د ښودلو لپاره جهاد کوي، بل دخپل تربګینت لپاره جهاد کوي. اوبل دځان ریا لپاره جهاد کوي په دې کې کوم

---

[1]ـ اخرجه البخاري في الجهاد : ۳/ ۲۰٦ ومسلم في الامارة : ۳/ ۱۵۱۲ .

[2]ـ سنن ابي داود : ۳/ ۳۱ . والحديث صحيح .

يو دالله دلارې دى ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چې په دى خاطر جهاد وکړي چې دالله تعالى دين سرلوړې شي همغه دالله تعالى دلارې مجاهد دى.

(( و روى أبـو داود و الـبيهقي والحـاكم عَنْ عبدالله بن عمرو ؓ عنهما انه قال يارسول الله : أخبرني عن الجهادِ والغزو؟

فقـال ﷺ : ياعـبدالله بـن عمـرو: إن قاتـلْتَ صابراً محتسباً بعثَكَ الله صابراً محتسبـاً ، وإنْ قاتـلتَ مـرائياً مُكاثـراً بعـثَك الله مرائياً مكاثراً! ياعبدالله بن عمرو: على أيِّ حالٍ قاتلْتَ أو قُتلْتَ بعثكَ الله على تيكَ الحال. [1]))

لـه عبدالله بن عمرو ؓ عنهما نه روايت دى هغه وايي چې مارسول الله ﷺ ته وويل : ماته د جهاد اوغزا په باره کې معلومات راکړئ .؟

هغـه ﷺ وفـرمايل : اى عـبدالله بن عمرو! کـه چېرته تـا پـه صبرسره د ثـواب پـه نيت جهـاد وکـړ نـو الله تعـالى بـه تـاصابرپاڅوي او ثـواب بـه درکـړي اوکـه چيرته تا جهاد دځان ښودنې اودمال د ډيرولو لپاره وکړ نو الله تعالى به تاپه همدغسې حالت کې پورتـه کوي. اى عبدالله بن عمرو! تاچې په کوم حالت کى قتال وکړ اوياقتل شوې الله تعالى به تاپه همغه حالت کې پاڅوي..

(( و روى ابـو داود وابـن حـبان والحاكم : عن أبي هريرة رضي الله عنه أنَّ رجـــلاً قــال : يارسـول الله رجـلٌ يـريدُ الجهـاد وهو يبتغي عرضاً من عرض الدنيا ؟

فقال النبي ﷺ : لا أجرله.

[1] ـسنن ابي داود : ۳/ ۳۲ . واسنن البيهقي : ۹/ ۱٦۸ ومستدرك الحاكم : ۲/ ۸۵ والحديث حسن.

فأعظمَ ذلك الناس، وقالوا للرجل : عُدْ لرسول الله ﷺ فلعلّكَ لم تُفْهِمْهُ السؤال!

فقال : يا رسول الله : رجلٌ يبتغي الجهاد في سبيل الله ، وهويبتغى عرضاً من عرضِ الدنيا ؟فقال النبي ﷺ لاأجرله!

فأعادَ الرجل سؤاله ، وأعا د الرسول ﷺ جوابه! [1]))

له ابی هريره رضي الله عنه نه روايت دی چی يوسړي محمد ﷺ ته وويل : يارسول الله ! يوسړی جهاد کوي خو ورسره ددنيا مال اومتاع هم غواړي؟ نبی ﷺ ورته وفرمايل هغه لپاره هيڅ اجر اوثواب نشته.

داخبره په خلکو گرانه تمامه شوه اوهغه سړي ته يې وويل چی يوځل بياخپل سوال رسول الله ﷺ ته تکرار کړه کيدی شي هغه ستاپه سوال نه وي پوه شوې! هغه وويل : يارسول الله ! يوسړی دالله په لاره کې دجهاد اراده کوي خوهغه ورسره ددنيا مال او متاع هم غواړي. ؟

نبی کريم ﷺ ورته وفرمايل چی هغه لپاره هيڅ اجر نشته.

سړي خپل سوال يوځل بياتکرار کړ، رسول الله ﷺ هم دهغه ځواب تکرار کړ.

عمربن عبيدالله له عبدالله بن عمر ﷺ عنهما نه پوښتنه وکړه او ورته يې وويل : الله دی تاصالح کړي. زه غزاته ځم اودالله درضا لپاره مال خرچوم اوپه همدی نيت سره اوځم ، خو چې کله جنگ شروع شي نوزه غواړم چی خلک زما جنگ او زما موجودگي ووينې. هغه ورته وويل: بياخو ته رياکار سړی يې.

څه خلکو دعبدالله بن مسعود ﷺ په وړاندې دهغو خلکو يادونه وکړه چې دالله په لاره کی وژل شوي وو.

---

[1]ـ سنن ابي داود : ۳/ ۳۰ ومستدرك الحاكم : ۲/ ۸۵ وموارد الظمآن ص ۳۸٦ والحديث صيح لشواهده

ابن مسعود ﷺ وویل : اصل خبره داسې نده څنګه چې تاسې خیال کوئ بلکې خبره داده چې کله دوه لښکرې یوبل ته مخامخ شي نو ملائکې زمکې ته راځي چې دجنګیدونکو خلکو خپله خپله مرتبه ولیکي، ملایکې وایي. فلانکی سړی دپیسو لپاره فلانکې سړی د اقتدار اوپاچاهی لپاره فلانکی سړی دشهرت لپاره اوفلانکې سړی دالله تعالی درضا دترلاسه کولو لپاره جهاد کوي. څوک چې په داسی حالت کی ووژل شو چې دهغه نیت صرف دالله تعالی رضا اوخوښی وي نو خاص دهمده لپاره جنت دی.

په مسجد نبوي کې عمربن الخطاب ﷺ په هغه مجلس باندی تیرشو چې هغوی دهغې سړیې په اړه خبرې اترې کولې چی څه اصحابان دالله تعالی په لاره کې شهیدان شوي وو.

ځینو ویل چې هغوی دالله تعالی دکار لپاره وتلي وو اودهغه په لاره کی وژل شویدي اوپه الله تعالی باندې دهغوی اجر واجب شویدی. اوځینو خلکو ویل چې الله تعالی له هغوی نه ښه خبردی. هغوی لپاره هغه څه دي چې دڅه نیت یې کړی و، عمر ﷺ ورته وویل:تاسو دڅه په اړه خبرې کولې؟ هغوی وویل موږه ددغی سړیې په اړه خبرې کولې چاداسې ویل اوچاداسی. یعنی له ټولو خبرونه یې خبرکړ.

حضرت عمر ﷺ وویل : په الله تعالی قسم ، په خلکو کی داسی خلک هم شته چې ددنیاپه خاطر قتال کوي. اوڅه خلک داسی هم شته چې دځان ښودنې لپاره قتال کوي. اوڅه خلک داسی هم شته چې یواځې دالله تعالی درضا لپاره قتال کوي، همدغه کسان شهیدان دي په کوم نیت سره چی مړشویدي په همغه نیت به پاڅول کیږي.

ابوا العجفاء السلمي وایي : ماله عمر ﷺ نه اوریدلي دي چی ویل یي:

له تاسو نه څه خلک دهغه چاپه اړه چی په جهاد کې وژل شویدي وایاست چې فلان سړی وژل شویدی اوهغه شهید دی او یافلان سړی مړشوی دی اوهغه شهید دی. کیدی شي له هغونه دخپل څاروي په آخری حصه باندی سره زر اوسپین زر بار کړي راوړي وي او دتجارت

کولو په مقصد وتلی وي تاسې داسې مه واياست بلکی درسول الله ﷺ پشان وواياست هغه داسی چی څوک دالله په لاره کې ووژل شو اويا دالله په لاره کی مړشو هغه په جنت کې دی.

(( روى أبوداود والبيهقي والحاكم عن يعلى بن منية رضي الله عنه ، قال: أَذَّن رسول الله ﷺ بالغزو، وأنا شيخٌ كبير ليس لي خادم، فالتمستُ أجيراًيكفيني ، وأجري له سهمه!

فوجدت رجلاً، ولما دنا الرحيل أتاني، فقال: ما أدري ما السهمان! فسمِّ لي شيئاً محدداً، سواء كان السهم أم لم يكن. فسميت له ثلاثة دنانيرأجرة. فلماحضرت غنيمته ، أردت أن أجري له سهمه ، فذكرت الدنانير.فجئتُ النبيَّ ﷺ، فذكرت له أمره

فقال ﷺ : ما أجدُله في غزوته هذه في الدنيا والآخرة إلا دنانيره التي سَمَّى . [1]))

له يعلى بن منيه ﷺ نه روايت دی هغه وايي چې زه ډير بوډاوم. رسول الله ﷺ جهاد ته دتلو لپاره عمومي حکم وکړ. ماخادم نه درلود ما يومزدور پيداکړ چې له ماسره مرسته وکړي اوزه دغنيمت له خپلې برخې نه څه حصه ورته ورکړم. کله چی لښکر روانيدو نو هغه ماته راغی او ويې ويل : څه پته ده؟ تاته به څومره حصه په لاس درځي اوبياپه هغی کې به زماڅه حصه وي؟ مالپاره يوخاص مزدوري وټاکه ، که ستالاس ته دغنيمت څه حصه رسيږي يانه .ماهغه لپاره دری دنانيره مزدوري وټاکله. کله چی ماته دغنيمت مال په لاس راغی نوما وغوښت چی هغه ته څه برخه

[1]ـ سنن ابي داود : ۳/ ۳۷. وسنن البيهقي : ۹/ ۲۹ . ومستدرك الحاكم : ۲/ ۱۱۲ والحديث صحيح .

جداکړم نوماته دهغه دنانیر په یادښول اونیغ رسول الله ته ورغلم اوټوله کیسه مې ورته بیان کړه. رسول الله ﷺ وفرمایل هغه چې دځان لپاره کوم دری دنانیره مخصوص کړیدي له هغونه علاوه دهغه لپاره په دی غزا کې په دنیا او آخرت کی بل هیڅ څیز نشته.

((وروى أبوداود والحاكم عن أبي هريرة رضي الله عنه: أنَّ عمروبن أقيش كان له رباً في الجاهلية ، فكره أن يسلم حتى يأخذه . فجاء يوم أحد فقال : أين بنوعمي ؟

قالوا: مشتركون في معركة أُحُد.

قال: أين فلان؟ قالوا: بأُحُد.قل : أين فلان ؟ قالوا: بأحُد.

فلبس لأمته ، وركبَ فرسه ،ثم توجَّه إ لى أُحد.فلما رآه المسلمون قالوا: إليكَ عنَّا ياعمرو.

قال: أني قد آمنت.

فقاتل حتى جُرح ، فحُملَ إلى أهله جريحاً. فقال سعدُبن معاذ رضي الله عنه لأُخته : سليه ، هل قاتل حميةً لقومه ؟ أم غضباً لهم ؟ أم غضباً لله ورسوله ؟

قال:بل قاتلتُ غضباً لله ورسوله.فمات، فدخل الجنة، وماصلى لله صلاة .[1]))

له حضرت ابوهريره ﷺ روایت دی چی عمروبن اقیش ته دجاهلیت دزمانې څه سود پاتی وو هغه ددغه سود د ترلاسه کولو نه مخکی اسلام راوړل نه غوښت. تردی چی داحدجنګ راغی. هغه له خلکونه پوښتنه وکړه چی زماتره زامن چیرته دي ؟

---

[1] ـ سنن ابي داود : ۳/ ۴۳ . ومستدرك : الحاكم : ۲/ ۱۱۳ ، والحديث حسن.

خلکو ورته وویل : هغه داحد په جنګ کې شریک شویدی. بیایي وویل فلانکی سرړي چیرته دی خلکو ورته وویل هغه داحد جنګ ته تللی دی. هغه بیاپوښتنه وکړه چې فلان سړي چیرته وي ؟

خلکو ورته وویل داحد جنګ ته تللی دی. هغه هم خپل زره واغوسته اوپخپل اس باندې سورشو اوداحد په طرف وخوځید. کله چې مسلمانانو هغه ولید نو ورته یې وویل ای عمره! له موږ نه لرې شه. هغه وویل ما ایمان راوړی دی. هغه له کفارو سره جنګ وکړ تردې چې زخمي شو او خپل کور ته زخمي راوستی شو. سعدبن معاذ ﷺ دهغې خورته وویل: ته ترینه پوښتنه وکړه چې ایادقومي غیرت اوتریزینت په وجه یې جنګ کړیدی اوکه دالله اورسول ددین لپاره دغیرت په خاطر یې جنګ کړیدی.؟ هغه وویل ماډالله تعالی اودهغه درسول په دین باندې دغیرت په وجه جنګ کړیدی. بیامړشو اوجنت ته لاړ حال داچې یولمونځ یې هم نه و اداکړی.

(( وروی أبو داود والنسائي عن معا ذ بن جبل رضي الله عنه، عن رسول الله ﷺ قال : (( الغزوُ غزوان : فأمَّا من ابتغى وجهَ الله ، وأطاعَ الإمام ، وأنفقَ الكريمة ، وياسَرَ الشريك ، واجتنب الفسا د و فإنَّ نومه وانتباهه اجرٌ كلُّه.

وأمَّا من غزا فخراً ورياءً وسمعة ، وعصى الإمام ، وأفسدَ في الأرض ، فإنه لايرجعُ بالكفاف . [1] ))

له معاذبن جبل ﷺ نه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل :غزاګانې دوه قسمه دي. هرچاچې دالله رضا ولټوله اودامام اطاعت یې وکړ. خپل ګران مال یې خرچ کړ، له خپل ملګري سره یې ښه سلوک وکړ. له فساد نه یې ځان وژغوره نودهغه خوب اوبیداري ټوله په ثواب کې حسابیږي .

---

[1]ـ سنن ابي داود :۳ ۳۰ وسنن النسائي ٦ ٤٩ ، والحديث حسن.

اوهرچاچې دفخر ريا اوځان ښودنې لپاره جهاد وکړ ، لـه امير نه يې سر غړونه وکړه اوپه زمکه کې فساد وکړنو هغه ته به برابرحساب نه ورکول کيږي.

(( وروى مسـلم عـن أبـي هريـرة رضي الله عنه قال : سمعت رسول الله ﷺ يقول:

(( إنَّ أولَ الـناس يقضـى عليه يوم القيامة : رجلٌ استشهد ، فأُتِيَ به فعرَّفه نعمه فعرفها ، قال: فما عملْتَ فيها ؟

قال: قاتلْتُ فيك حتى استُشهد تُ!

قال : كذبْتَ. ولكنك قاتلْتَ ليُقال: هو جرى ء . فقدْ قيل. ثم أُمِرَبه فَسُحِبَ على وجهه حتى أُلقيَ فى النار.

ورجـلٌ تعلمَ العلمَ وعلَّمَهُ ، وقرأ القران. فأُتِيَ به فَعَرَّفَهُ نِعَمَهُ فَعَرَفَهَا ، قل: فَمَا عملْت فيها ؟

قال : تعلمتُ العلمَ وعلَّمْتهُ ، وقرأتُ فيك القرآن!

قـال : كذبْـتَ . ولكـنك تعلَّمْت ليقال : هو عالم. وقرأتَ القران ليقل: هو قارى ء. فقد قيل . ثم أُمِرَ به فسحبَ على وجهه حتى أُلقىَ في النار .

ورجـلٌ وَسَّـعَ الله عـليه ، وأعطـاه مـن أصـنافِ المـال ، فأتِيَ به فعَرَفَّهُ نِعمهُ فعرفَهَا ، قل :

فما عملْتَ فيها؟

قال: ماتركتُ من سبيلٍ تُحبُ أن ينفقَ فيها إلاَّ أنفقْتُ فيهالك

قـال: كذبْـتَ. ولكنك فعلْتَ ليُقال: هو جواد . فقد قيل . ثم أُمِرَبه فَسُحِبَ على وجهه ، حتى أُلقي في النار . [١] ))

**له ابي هريره رضي الله عنه نه روايت دى چې ماله رسول الله ﷺ نه آوريدلي دي چې فرمايل يې :**

دقيامت پـه ورځ چې لـه ټولو نه وړاندې دكوم سړي فيصله كيږي نو هغه به هغه سړى وي چې شهيد شوې وي. هغه به راوستلى شي. او ورته به هغه نعمتونه وښودل شي چې الله ورتـه وركړې وې هغـه به دالله نعمتونه وپيژني او اقرار به يې وكړي. الله تعـالى بـه ورتـه ووايـي تـاددغو نعمـتونو پـه بـدل كـې څـه وكـړل؟ هغـه بـه ووايـي : ماستادخوښۍ لپاره جهاد وكړ آن چې شهيدشوم الله تعـالى بـه ورتـه وايـي تـا دروغ وويـل، تـا خو ددې لپاره قـتال كړى و چې تاته بهادر وويل شي دا درته په دنيا كې وويـل شو. بيابه ورباندى امر وكړى شي چې پرمخې راكش كړئ اوپـه اور كې يې واچوئ. بـل هغـه سړى چې علم يې ياد كړى وي او.خلكو ته يې هم ښودلى وي، قرآن كريم يې هم ويلى وي. هغـه به راحاضر كړى شي. هغه ته به الله تعالى خپل نعمتونه مخې ته كيږدي چې په دنيا كې ورته وركړي وو. هغه به ددغو نعمتونو اقرار وكړي چې هو دا تاماتـه راكړي وو. الله تعـالى بـه ورتـه ووايي . تاپه دى څه عمل وكړ.؟ هغه بـه وايي مـا علـم حاصـل كړ او بـل چاتـه مى هم وښود او ستا درضا لپاره مې قران كـريم هم ولوست. الله تعالى به ورته ووايي دروغ دى وويل . لكن تاپه دى خاطر علم حاصـل كړى و چې تاتـه عـالم وويـل شي او قران كريم دې دې لپاره ويلو چې خلك درتـه قـاري ووايـي تـه پـه دنيـاكې پـه دى نومونو يادكړى شوې. بيابه ملايكو ته امر وكړى شي ، پرمخې راكش كړي او په جهنم كې به واچوي.

بل هغه سړى چې الله ورتـه ښه مختلف مال او دولت وركړى وي. هغه به حاضر كړى شي. ټول نعمـتونه بـه مخـې تـه كيښـودل شي اوهغـه بـه وپيژني او اقرار به وكړي الله تعـالى بـه ورتـه ووايي تاڅه عمل وكړ. هغـه بـه وايي ماداسې لاره نده پريښې چې په

---

[١] ــ اخرجه مسلم في الامارة : ۳/ ۱۵۱۳

هغه کې خرچه کول ستاخوښیده بلکې په هغه لاره کې مې ستادرضا لپاره خرچه کړېده. الله تعالی ورته وایي تا دروغ وویل. لکن تا داکار ددې لپاره کړی و چې تاته سخي وویل شي. دا درته وویل شو. بیابه دهغه لپاره امر کولې شي اوپړمخې به راکشولې شي اوپه جهنم کې به واچولې شي.



# فصل

## په جهاد کې د مختلفو نیتونو بیان

په جهاد کې داواجب دي چې نیت خالص دالله درضا لپاره وساتلی شي. ځکه چې الله تعالی دمجاهد جهاد ترهغه نه قبلوي ترڅوپورې چې نیت یې خالص او سوچه دالله لپاره نه وي. څرنګه چې الله تعالی همداسې امرکړیدی نو مجاهد ته دخالص او صفانیت له خپلولواو استحضارنه پرته بله چاره نشته. ځکه چې کله مجاهد په جنګ کې وژل کیږي نوکه هغه مخلص وي نو ددی اجر اوثواب به خامخا ترلاسه کوي.

دمجاهدینو نیتونه دهغوی دمختلفو مقصدونو له کبله مختلف وي، ځکه مجاهدین په خپلو نیتونو کې په څوډوله دي اود هریوه لپاره جلا جلا حکم دی.
لومړی هغه مجاهدین دي چې دهغوی قصد اونیت صرف دالله تعالی خوښي ترلاسه کول وي ځکه چې یواځې یوالله دهمدغه عبادت مستحق دی. او همغه جل جلاله ددی امرکړیدی اوپخپلو بندګانو باندی فرض ګرځولی دی ، دایې ورته خوښ کړیدی اوپه دی سره ثواب او اجر ورته ورکوي. نومجاهد صرف دالله تعالی دخوښی لپاره جهادکوي او د آخرت ثواب ته نه ګوري. داډول مجاهدین ډیرلږدي بلکې په ډیر ګرانه پیداکیږي.

ابوالمظفربن الجوزي ديومجاهد کيسه بيان کړيده چې هغه دجنت اودهغه دنعمتونو لپاره نه بلکې يواځې اويواځې دالله تعالى دخوښى اورضا لپاره سهـ کړيدى .

ميسرة الخادم ويلي دي چې موږ په يوغزا کې وو ، زموږله منځ نه يوځوان چى په سرېې داوسپنې تو‌پى وه راووت اوددښمن په ښي اړخ حمله وکړه او هغوى يې ميده ميده کړل بيا ددښمن په چپ اړخ باندى بريد وکړ هغه يې ميده ميده کړل بيايې ددښمن په قلب ( دلښکر په منيځ ) باندى بريد وکړ او هغوى يې په څټونو ووهل په دى وخت دهغه بدن زغره وه او په خوله يې دا اشعار جاري وو.

احسـن بمـولاك سـعيد ظـناً　　هـذا الـذي كـنت لـه تمـنى

تـنحَّ يـا حـور الجـنان عـنا　　لافيـك قاتلـنا ولا قتلـنا

اى سعيده ! ( ظاهره داده چې سعيد دده ځوان نوم و) ته پخپل رب باندې ښه ګمان کوه داهغه څيز دى چى تا يې هيله کوله ( يعنې ددى جنګ ارزو اوتمنا تاکوله ) اى دجنت حورو! له موږ نه لرى شئ موږ ستاسو لپاره نه څوک وژلي دى اونه وژل شوي يو.

موږ خويواځې دخپل مالک عاشقان يو چې زموږ په ظاهر اوباطن باندى پوهيږي هغه بيا پردشمن بريد وکړ اوپه ژبه يې د اشعار جاري وو.

قـد كـنت ارجـو ورجـائي لم يخب　　ان لايضيع اليوم كدي والتعب

يـامن ملاتـلك القصـور بالـلعب　　لـولاك ماطـابت ولا طاب الطرب

زه اميد لرم اوزما اميد ناکام نه دى چى دنن ورځې داخواري اوستړيا به ضائع نه شي اى هغه خدايه چې دجنت قصرونه او مانى دې په ښايسته حورو ډک کړيدى.له تانه پرته نه خوداڅيزونه دمينې دي اونه هم دعيش په شيانو کې څه مزه شته.

هـغه ځوان بيا بريد وکړ او ګڼ شمير دشمنان يې ووژل، او هغه دا اشعار ويل:

يالعبتي الخلد قفي ثم اسمعي   لافيك قاتلنا فكفي وارجعي

ثم ارجعي الى الجنان واسرعي   لاتطمعي لاتطمعي لاتطمعي

اى زما دجنت حورې ! ودرېږه او واوره. موږ ستا لپاره جهاد نه دی کړی نودراتللو نه منع شه او واپس لاړه شه، ته ډېر ژر جنت ته واپس لاړه شه ، ته تمه مه کوه ، ته تمه مه کوه، ته تمه مه کوه.

دويم ډول مجاهدين هغه دي چی په اسلام باندی دغيرت اوداسلام دبري په خاطر جهادکوي او غواړي چې کفري کلمه او کافران ذليل او خوارشي.ددغو دواړو نيتونو په خالص والي کی هيڅ شک نشي کيدای او خاوندان يې دالله په نزد کامياب دي. خومجاهد ته پکار دي چې خپل عمل او جهاد پټ وساتي او فخر دی ورباندې نه کوي خپل کوم يو عمل اه جهاد دی نه يادوي. هغه دی دا آرزو او هيله نه کوي چې خلک دهغه صفت او تعريف وکړي بلکې له الله نه د ثواب اميددی وساتي. ځکه داکارونه په دی دواړو نيتونو کې داخلاص په زياتوالي باندی دلالت کوي.

دريم : ډول مجاهدين هغه دي چې دجنت اوپه هغه کې چې څه نعمتونه دي دهغوی دترلاسه کولو لپاره جهاد کوي او غواړي چې د دوزخ له اور اودهغه له عذاب نه نجات بياومومي.

اودداسې مجاهدينو شمير زيات دی.

ځينې علماء وايي : يواځې دانيت دشهادت دمرتبې دترلاسه کولو لپاره کافي نه دی ليکن راجح اوصحيح قول همدادی چی همدغه نيت دشهادت دمرتبې دترلاسه کولو اودجهاد دثمرې او اجر دموندلو لپاره کافي دی. ځکه چې په دی باندی نصوص او داصحابو افعال دلالت کوي.

الله تعالی مجاهدينو ته دجنت اودهغه د نعمتونو ترغيب ورکړيدی او فرمايلی يي دي.

﴿ان الله اشترى من المؤمنين انفسهم واموالهم بان لهم الجنة﴾ [التوبة: ١١١]

بیشکه الله تعالی لـه مؤمنانو دهغوی ځانونـه اومالونه دجنت په بدله کې آخستی دي بـل داچې الله تعـالی فرمایلی دي چـې جهـاد ګټـور تجـارت دی اوپـه دی سـره مسلمان د جهنم له اورنه ساتل کیږي.

﴿ يَاأَيُّهَـا الَّذِيـنَ آمَـنُوا هَـلْ أَدُلُّكُمْ عَلَى تِجَارَةٍ تُنجِيكُمْ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ ۝. تُؤْمِـنُونَ بِاللَّـهِ وَرَسُولِهِ وَتُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ ذَلِكُمْ خَيْـرٌ لَكُـمْ إِنْ كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ۝. يَغْفِرْ لَـكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَيُدْخِلْكُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَـحْـتِهَا الْأَنْهَارُ وَمَسَـاكِـنَ طَيِّبَةً فِـي جَنَّاتِ عَـدْنٍ ذَلِكَ الْـفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴾ [ الصف: ۱۰-۱۲ ].

ای مؤمنانو! ایاداسې یوتجارت درتـه وښایم چې تاسې لـه دردنـاک عـذاب څخـه وژغـوري. پـه الله اورسول يي پوخ ایمـان راوړئ، پـه مال اوسر دالله په لیار کې جهاد وکړئ کـه پوهیږئ نـو دا درته خورا غوره ده. الله پاک به ستاسې ګناهونه وبخښي او هغو باغونو کې بـه موداخل کړي چې لاندی لـه ونو او ماڼیو یي ویالې بهیږي. اوپه تل پاتی باغونو کې به ډیر غوره اوښه کورنه درکړي همدغه ډیر لوی بری دی.

(( روى مسـلمٌ عن أنس بن مالك رضي الله عنه أن النبي ﷺ قل يوم بد ر: قومـوا إلى جنـةٍ عرضُها السموات والأرض.فقل عُميْرُبن الحمام : يا ر سول الله : جنةٍ عرضُها السموات والأرض ؟

قل نعم.

قل عمير: بخٍ بخٍ.

قل ﷺ : مايَحملُكَ علىقولك بخ بخ ؟

قل : لا والله يارسول الله إلاَّ رجاءَ أنْ أكونَ منْ أهلِهَا!

قل ﷺ : فإنك من أهلها.

فأخرج تمراتٍ من قرنه ، فجعل يأكلُ منهن، ثم قل: إنْ أنا حييتُ حتى آكلَ تمراتي هذه، إنها لحياةً طويلة!!

فرمى بماكان معه من التمر، ثم قاتلهم حتىقُتِل [۱])).

له انس بن مالک ﷺ نه روايت دی چې نبی ﷺ دبدر په ورځ وويل :
جنت لپاره ودريږئ چې پراخوالی يې دآسمانونو او زمکې هومره دی.
عمير بن الحمام ﷺ وويل :

يارسول الله! داسې جنت چی پراخوالی د آسمانونو اوزمکې هومره دی؟ محمد ﷺ وفرمايل هو.

عمير ﷺ وويل واه واه.

رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وويل په څه خبره دی واه واه وکړه؟

هغه وويل : يارسول الله ﷺ په دی اميد می واه واه وکړه چې زه دجنت اوسيدونکی شم. رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وويل ته دجنت لـه اوسيدونکو څخه يې لدينه وروسته يې لـه خپلې دچانتې نه کجورې راوويستلې اوپه خوړلو يې شروع وکړه. بيايې وويل ترڅوپورې چې زه داکجورې خورم نودا ډير ژوند دی. کجوری يې وغورځولې اولـه کفارو سره يې قتال شروع کړ او تـرهغه وجنګيد تـرڅوچې شهيد شوی نه و.

(( وروى النسايي عن شداد بن الهاد رضي الله عنه أنَّ رجلاً من الأعراب جاء إلى النبي ﷺ فآمن به واتَّبعه ، ثم قال لـه : أهاجرُمعك. فأوصى به النبى ﷺ بعض أصحابه.

---

[۱] ـ رواه مسلم : ۳/ ۱۵۱۰

فـلما كـانت غـزوة خيبر ، غنم النبي ﷺ غنيمة ، فقسَّم منها لذلك الرجل ، وكان يرعى ظهرهم. فلما جاء دفع أصحابه له نصيبه . فقال: ماهذا؟

قالوا : قسمٌ قسمه لك رسول الله ﷺ .

فأخذه فجا به إلى النبي ﷺ فقال : ماهذا ؟

قال ﷺ : قسمٌ قسمته لك !

قـال : مـا عـلى هذا اتبعتك ! ولكن اتبعتك على أن أرمى هاهنا- وأشار إلى حلقه- بسهم ، فأموت فأ دخل الجنة !

قـال ﷺ : إنْ تصـدُقِ الله يَصْـدُقْكَ فلبـثوا قليلاً ، ثم نهضوا في قتال العدو، فأتي بالرجل محمولاً إلى النبي ﷺ ، قد أصابه سهم حيث أشار!

فقـال النبي ﷺ صَدَقَ الله فصدقهُ.ثم كفَّنه ﷺ في جُبَّتِهُ ، ثم قدَّمه فصلى عليه ، ودعـا الله لـه قائلاً: اللهم هذا عبدك خرج مهاجراً في سبيلك فقُتِلَ شهيداً وأنا شهيدٌ على ذلك [١])).

لـه شداد بن الهاد ؓ نه روایت دی چی یوبانده چی رسول الله ﷺ ته راغی پرهغه ﷺ یې ایمان راوړ اودهغه تابعداري یې وکړ. بیایي وویل: زه به لـه تاسې سره هجرت هم کوم. رسول الله ﷺ اصحابوته لـه هغه سره دښه سلوک کولو وصیت وکړ کله چې دخیبر دغزا ورځ راغله نو نبی ﷺ د غنیمت مال ونیو هغه یې داصحابو ترمنځ وویشلو اولدینه یې دهغه بانډیچي لپاره هم برخه وویستله هغه په دی وخت اوښان څرولو ته بیولي وو. دهغه برخه دهغه ملګروته ورکړه. کله چې هغه واپس راغی نو

---

[١]ـ سنن النسائي : ٤/ ٦١ ، والحديث صحيح .

پوښتنه يې وکړه چې داڅه دي ؟ ملګرو ورته وويل رسول الله ﷺ تاته د غنيمت له مال نه حصه درکړيده . هغه دغه مال را واخست اوسيده د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضرشو او عرض يې وکړه داڅه دي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل داستاحصه ده . هغه وويل : ماستا تابعداري دی لپاره نه دی کړې بلکې ددی لپاره مې کړيدی چې زه په غشي سره په دی ځای کی وويشتلې شم ( اود خپلی مری په طرف يې اشاره وکړه.) مړشم او جنت کې داخل شم. محمد ﷺ وفرمايل : که ته رښتياوايې نو الله تعالی به تارښتونی کړي. لږ وخت يې تيرکړ اوبياله دښمن سره دقتال لپاره ووت او شهيد شو. هغه يې محمد ﷺ ته راوړ، هغه ته په همغه ځای کې غشي لګيدلې و دکوم په طرف يې چې اشاره کړې وه يعنې په مری کې . نبی کريم ﷺ وفرمايل : دی رښتيا ويلي وو نو الله دی رښتونی کړ. دهغه خپل چفنه ور ته کفن کړه او دجنازی لمونځ يې ورباندې اداکړ. هغه لپاره يې داسی دعا وکړه : ای الله ستادابنده ستاپه لاره کې مهاجر شوی و. او اوس شهيد کړی شو اوزه په دی باندی ګواه يم.

الله تعالی دی درباندی رحم وکړي ته وګوره چې نبی کريم ﷺ څنګه دهغه په شهادت باندې ګواهي ورکړه حال داچې هغه له جنت نه علاوه دبل څه اراده نه لرله. که چېرته دانيت او اراده صحيح نه وای نو نبی کريم ﷺ به هغه ته خامخا لارښونه کړې وه چې داسی نيت مه ساته.

امام ابن دقيق العيد په عمدة الاحکام ٤/ ٢٤٨ کې ويلي دي چې کوم مجاهد دالله تعالی دثواب د ترلاسه کولو اودجنت دائمي نعمتونو دګټلو په خاطر جهاد کوي هغه دالله دلارې صحيح مجاهد دي او داصحابو فعل او عمل په دی باندی ګواهي ورکوي.

شريعت په دی طرف اشاره کوي چې دجنت دترلاسه کولو په خاطر دصالحو اعمالو ترسره کول صحيح کاردی. ځکه چې الله تعالی دجنت اودهغه د نعمتونو يادونه په دی خاطر کړيده چې دخلکو په زړونو کې دهغوی ترغيب اومينه پيداشي اونيک عملونه وکړي ، الله تعالی دجنت اوثواب ترغيب ددې لپاره ورکړې دی چې خلک نيک عملونه وکړي نوبياڅنګه کيدی شي چې دجنت نيت کول صحيح نه شي.

پورتني دريٍ واړه نيتونه چې او س اوس دهغوی يادونه وشوه مقصد تـه درسيدو لپاره كافي دي او پـه دی سرد بـه مجاهد هميشني اوتل پاتې جنت تـه لاړشي. هوداخبره ده چې ددريم نيت نسبت اول او دويم نيت تـه داسې ده لكـه دپوستكي نسبت مغزته .

څلورم : ځيني مجاهدين داسی دي چې كله جنګ تـه ننوځي نـو مخامخ ورسره جنګيږي اوشاورته نه آړوي، دهغه نيت صرف دخپل ځان دفاع وي او بس.

دا ډول مجاهدين د دريم ډول نيت لروونكی مجاهد ته نژدی خو دي ليكن دهغه په شان نـه دي كه داسې مجاهد هم په همدی جهاد كې ووژل شي نو شهيد دی ، ځكه چې چا لـه لار شكوونكو سره دخپل دفاع لپاره جنګ وكړ او ووژل شو نو هغه شهيد دی بيابه هغه سړی څنګه نه شهيد كيږي چې داسلام ددښمنانو په تورو باندی مړشي.

كله چې يومجاهد لـه جنګ نـه داسي وتښتي اوشا واړوي چی ورته حرام دې اوپه دې حالت كې ووژل شي نـو هغـه شـهيد نـه دی . اګركه پـه دنيـاكې دشـهيدحكم وربانديې جاري كيږي.

(( روى مسلم عن أبي قتادة الأنصاري رضي الله عنه أنَّ رسول الله ﷺ قام في المسلمين خطيبًا ، فذكر أنَّ الجهاد في سبيل الله والإيمان به أفضل الأعمال.

فقام رجلٌ فقال : يارسول الله : أرأيت إن قتلتُ في سبيل الله أتكفَّرُ عني خطاياى ؟

فقال رسول الله ﷺ : نعم ، إن قتلْتَ في سبيل الله وأنتَ صابرٌ محتسب، مقبلٌ غيرمدبر .

ثم قل رسول الله ﷺ كيف قلت:

قل : أرأيت إن قتلت في سبيل الله أتكفَّرُ عني خطايا ي ؟

قـال ﷺ : نعـم ، وأنـت صـابرٌ محتسـب ، مقـبلٌ غيرمدبر، إلاَّ الدَّينَ... فإنَّ جبريلَ قال لي ذلك! )).

لـه ابي قتادة الانصاري څخه روايت دى چى رسـول الله ﷺ دمسلمانانو په منځ کې ودريـد او خطـاب يـې ورتـه وکـړ. هغـه ﷺ وفـرمايل : دالله پـه لاره کې جهـاد کـول اوپرهغه ايمان لرل لـه غورو عملونو څخه دى. يوسړى پاڅيد او ويې ويل: يارسول الله ! ماتـه خبر راکړئ چى کـه چيرته زه دالله پـه لاره کى ووژل شم نـو ايـا زمـا ګناهونه بخښـل کيـږي؟ رسول الله ﷺ وفـرمايل هو هله چې ته دالله په لاره کې ووژل شې او ته پـه دى بـاندى صبر کوونـکى اوثـواب اميدلروونکى يـې او مخـامخ جنګيدونکې اوشاه نه اړوونکى يې.

بيارسول الله ﷺ وفرمايل : څنګه دى ويلي وو؟

هغـه وويـل : ماتـه ددې خبر راکړى چى که چيرته زه دالله په لاره کې ووژل شم نو ايا زماګناهونه بخښـل کيـږي ؟ رسـول الله ﷺ وفـرمايل هـو. پـه دى شرط چـې تـه صبر کوونکى دثواب اميدلروونکى، مخامخ جنګيدونکى اوشاه نه آړوونکې وې. مګر په تاچې دچاقرض وي هغه درته نه بخښل کيږي ځکه چې جبريل آمين ماته همداسې ويلي دي.

لـه دى حديث نـه دامعلوميږي چى کوم سړى لـه دښمن نه تېښته کړې وي او داسې شـايې ورتـه آړولى وي چى ورتـه حـرام دى. نوداشـهيد نـه دى بـلکې دالله تعـالى پـه غضب او قهر کى اخته دى.

په دى باندې دالله تعالى داقول دليل دى :

﴿ وَمَنْ يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُ إِلَّا مُتَحَرِّفًا لِقِتَالٍ أَوْ مُتَحَيِّزًا إِلَى فِئَةٍ فَقَدْ بَاءَ بِغَضَبٍ مِنَ اللَّهِ وَمَأْوَاهُ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴾ [ الأنفال :١٦.]

اوهرڅوک چې پـه داسې ورځ تيښته وکړي پرته لـه دې چې دجنګ تاکتيک يې غوښتنه کوي اويا يوې بلې جنګيالى ډلې سره يوځاى شي نوپه تحقيق سره چى دالله

غضب يې په برخه اوجهنم يې د ورتګ ځای دی او هغه دورتګ لپاره ډير بدځای دی .

(( وروی النسائي عن ابی اليسر ﷺ اَنَّ رسول الله صلیﷲ ليه وسلم كان يقولُ في دعائه "و اعوذبك اَنْ اُقْتَلَ فی سبيلك مدْبراً [1] )).

له ابی يسر ﷺ نه روايت دی چې بيشکه رسول الله ﷺ به پخپل دعا کې داسی ويل : ( اوزه له تانه پناه غواړم لدينه چې ستاپه لاره کې دشاه له طرف نه ووژلی شم ).امام نووي رحمه الله ويلي دي چې شهيدان په دری ډوله دي. يو ددنيا او آخرت شهيد دی اوداهغه څوک دی چی دالله په لاره کې ووژل شي. بل د آخرت شهيد دی اوپه دنيا کې پر هغه دشهيد احکام نه جاري کيږي. داهغه شهيد دی چی دګيډې له روانيدو د طاعون له ناروغی اوپه اوبو کې د ډوبيدو په وجه مړشي. اودی ته ورته نور. بل ددنيا شهيد دې اوپه آخرت کې شهيد نه حسابيږي، داهغه سړی دی چې په غنيمت کی خيانت وکړي او ياله دښمن نه دتښتې په حالت کې دشاله طرف نه ووژل شي . [2]

پنځم: له مجاهدينو نه څه خلک داسې هم شته چې جهاد ته صرف په دی خاطر ځي چې دمجاهدينو لښکر زيات شي او نيت يې دانه وي چی کافران ووژني اويا پخپله دالله په لاره کې ووژلی شي. داسې خلک چې ووژل شي نوپه شهيدانو کې حسابيږي ځکه هرچا چې دقوم تعداد اونفوس زيات کړ داهم له همغوڅخه دی.

شپږم : له مجاهدينونه ځينې داسې کسان دي چې له جهاد نه مقصد او نيت يې دالله رضا او ورسره د غنيمت دمال ترلاسه کول هم وي. يعنې په نيت کې يې دالله تعالی له رضا سره ددنيا مال ترلاسه کول هم شريک کړې وي.

ددغسې نيت اودی ته ورته نيتونو په اړه دعلماو ترمنځ اختلاف دی.

---

[1] ـ رواه النسائي في الاستعاذة : ۸/ ۲۸۲ ، والحديث صحيح .

[2] ـ صحيح مسلم بشرح النووي : ۱۳/ ۶۳

ځینې علما وایي چې دانیت فاسد دی او داسې نیت درلودونکي ته هیڅ اجر نه ورکول کیږي بلکې ورته عذاب ورکولی شي ځکه چې ددنیا نیت یې دآخرت له عمل سره ګډ کړې دی، خو جمهور علماء وایي چې دانیت صحیح دی اوداسې نیت درلودونکي ته ثواب ورکول کیږي .

دجمهور علماو دا وینا صحیح ده اوداصحابو له فعل سره موافقه ده.

امام قرطبي رحمه الله وایي چې دنبی کریم ﷺ دابي سفیان په قافله باندې برید کول چې له شام نه را روان و په دې خبره دلالت کوي چې دغنیمت ترلاسه کول حلال کار دې. اوداحدیث دامام مالک په دې خبره رد دی چې وایي : داددنیا دترلاسه کولو لپاره قتال دی.

په کوم حدیث کې چې دا راغلي دي چې دالله دلارې مجاهد یواځې هغه څوک ګڼل کیږي چې یواځې او یواځې دالله تعالی دکلمې دسرلوړي لپاره جنګېدلی وي نه د غنیمت لپاره ، نو ددی مطلب دادی چې هغه یواځې د غنیمت لپاره جنګیدلې وي او ددین سرلوړي لپاره یې نیت نه وي کړې .[1] مصنف وائي چې قرطبي په کوم دلیل استدلال قائم کړی ډیر ښه دی .

همدغه راز رسول الله ﷺ زید بن حارثه ﷺ ولیږه چې دقریشو په قافله باندی حمله وکړي . په دی قافله کې صفوان بن امیه اودقریشو نور مشران هم موجود وو په قافله کې ډیر زیات مال اودسپینو زرو لوښي اوداسې نور قیمتي سامان و. حضرت زید ابن حارثه رضی الله عنه دسلو مجاهدینوپه ملګرتیا په دی داقافله باندی په نجد کې د ( القرده ) نومې ځای کی برید وکړ له هغوی نه یې ټول مال ونیو مشرکان وتښتیدل. بیازید بن حارثه داټول مال درسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر کړ .[2]

ددی نیت په صحت ، اوپه دی نیت باندی شهادت ته رسیدو باندی داخبردلالت کوي چې الله جل جلاله مومنو مجاهدین دغنیمت په ترلاسه کولو باندی جهاد ته هڅولي دي لکه چې فرمایي :

---

[1]_ تفسیر القرطبي : ٤/ ١٨١٢

[2]_ طبقات ابن سعد ٢/ ٣٦.

﴿ وَعَدَكُمُ اللَّهُ مَغَانِمَ كَثِيرَةً تَأْخُذُونَهَا فَعَجَّلَ لَكُمْ هَذِهِ وَكَفَّ أَيْدِيَ النَّاسِ عَنْكُمْ ﴾. [ الفتح : ٢٠]

الله لـه تاسو سره د ډیرو غنیمتونو د ترلاسه کولو وعده کړې وه نودغه غنیمت یې ژر درکړ اودخلکو لاسونه یي له تاسې نه بند کړل.

دابه معقوله نه وي چې الله یوطرف ته خپلو بندګانو ته دغنیمت ترغیب ورکوي اودا ورباندې خپل احسان ګڼي وعده ورسره کوي مګربل طرف ته دهغه له نیت او قصد کولو نه منع وکړي.

همدغه راز ددغه نیت په صحت باندې داهم دلیل دی چې رسول الله ﷺ به سریه ددې مقصد لپاره لیږله چې دکافرو په ښارویو، مالونو او دمشرکانوپه اهل وعیال باندی حمله وکړي او ترینه وایی خلي. کله به چې له مشرکانو سره مخامخ شول نو دخپلومالونو او ځانونو دفاع اودکلمة الله دسرلوړی لپاره به ورسره جنګیدل هم ډیر خلی به مجاهدینو د غنیمت مال ترلاسه کړ او مقصد به یې دالله تعالی دکلمې اوچتول و. ډیرځلې به مجاهدین بریالی شول اوډیرځلي به خالي لاس پاتی شول اوډیرمجاهدین به شهیدان کیدل. کله به چې کفارو ماته وخوړه او وبه تښتیدل نو مجاهدینو به دهغوی تعاقب نه کاو بلکې له هغوی نه پاتی شوی مال به یې راټول کړ او له ځان سره به یې راوړ.

همدا ډول ددغه راز نیت دصحت د جواز لپاره د محمد ﷺ څرګندوضاحت دی چې په لاندیني حدیث کی مخې ته راغي .

(( روى أبوداود عن عبدالله بن حوالة رضي الله عنه ، قال : بَعَثَنَا رسولُ الله ﷺ لِنَغْنَمَ على أقدامنا. فرجعْنا فلم نغنَمْ شيئًا ، وعرف الجهدَ في وجوهِنا ،

فقامَ فينا فقال اللهمَّ لاتكلهم إليَّ فأضعف ،ولا تكلهم إلى أنفسهم فيعجزوا عنها ، ولا تكلهم إلى الناس فيستأثروا عليهم [1])).

له عبدالله بن حواله ﷺ نه روايت دى هغه وايي چې موږ رسول الله ﷺ دى لپاره پياده وليږلو چې دغنيمت مال ونيسو. موږ بيرته دغنيمت دمال له ترلاسه كولو نه پرته خالي لاس راغلو. دهلو ځلو او مشقت نښې زموږ له مخ نه ښكاره كېدلې هغه صلى الله عليه وسلم زموږ په منځ كې ودريد او ويې فرمايل:

اى الله! دوى ماته مه متكي كوه ځكه زه ضعيب يم ددوى كفايت به ونكړلى شم او مه يې خپلونفسونوته سپاره چې ترينه عاجز به شي اونه خلكوته متكي كوه ځكه هغوى به نه په دوى باندى خپلو نفسونوته ترجيح وركوي.

پس داحديث په دې باندى صريح دليل دى چې دغنيمت دترلاسه كولو په خاطر غزاته تلل جائز دي اوثواب ورته هم وركول كيږي. ځكه چې ابن حواله ويلي دي چې مونږ رسول الله ﷺ دى لپاره ليږلي وو چې د غنيمت مال ترلاسه كړو. لدينه مخكې دجابربن عبدالله ﷺ هغه حديث هم تيرشويدى چې په هغه كې نوموړي ويلي دي :

موږ رسول الله ﷺ دى لپاره وليږلو چې دقريشو قافله وڅارو او وربانډى حمله وكړو زموږ دسريي مشرعبيده بن الجراح و او موږ دسمندر په غاړه كې اوسيدلو.

ددې سره سره مجاهد ته داجائزدي چې له جهاد سره دغنيمت د مال نيت هم وكړي خو سره له دى چې دچانيت داسې وي له هغه چاسره برابر نه دى چې نيت يې خالص دجهاد كول وي غنيمت ته يې بالكل التفات نه وي ځكه چې له جهاد سره د غنيمت دمال ترلاسه كيدل په اجر كې دكمي باعث ګرځي. اګركه دغنيمت نيت يې هم نه وي كړى لكه نبي اكرم صلى الله عليه وسلم پدې خبره تصريح فرمايلې ده .

[1] ـ رواه ابو داود في الجهاد : ٣/ ٤١ والحديث صحيح .

(( روى مسلم عن عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما ، أنَّ رسول الله ﷺ قال : (( مامن غزيةٍ اوسريةٍ تخفقُ وتخوَّفُ وتُصاب إلاَّ تَمَّ أجرُهم .)) [1]

له عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما نه روايت دی چی رسول الله ﷺ فرمايلی دي : داسې کومه غزوه اوسريه نشته چې هغه د غنيمت دمال له ترلاسه کولونه پرته خالي لاس راشي ياوويرول شي اوياورته تکليف ورسيږي مگرهغوی ته پوره اجر ورکول کيږي.

په دويم روايت کی دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل : کومه غزاکووونکې ډله او سريه چې دالله په لاره کې جهاد کوي اود غنيمت مال ترلاسه کوي هغوی د آخرت دوه ياپه نورو الفاظوداچې دوه برخې اجر لپاره عجلت وکړ او ثلث ورته پاتې شو. اوکه چيرته دغنيمت مال ترلاسه نکړ نوپوره اجر ورته ورکول کيږي .

په همدې خاطر دمخکينيومجاهدينو يوه ډله به لدې ويری نه چې د غنيمت مال ترلاسه کول اجر کموي دهغه له آخستلونه به يې ډډه کوله ترڅو د آخرت له پاره ثواب يي کم نه شي.

ابراهيم بن ادهم رحمه الله به چې کله د غزاو او جهاد لپاره تللو نو دغنيمت له مال نه به يې هيڅ څيز نه آخست. خلکو به هغه ته ويل ايا ددی په حلت باندې شک کوې ؟

هغه رحمه الله به ويل : زه داشک نه کوم بلکې زه په حلالوکې زهدکوم .

ځينو ددې ځای په مناسبت دشاعر داقول راوړيدی:

هـلاً سألـت الخيل يا ابنـة مـالكٍ

ان كنـــت جاهـلة بمالم تعلمی

---

[1] ــ رواه مسلم في الامارة : ٣/ ١٥١٥ .

يخبرك من شهد الوقيعة انني

اغشى الوغى واعف عندالمغنم

داشعاراو ژباړه يو شاعر خپلې ميرمنې ته خطاب کوي او ورته وايي . اى دمالک لورى ! که ته جاهله او ناخبره يې نو ولې اس سوارانونه زما پوښتنه نه کوې ؟

دمعرکې عينى شاهدان به تاته داخبردرکړي چې زه دجنګ په وخت کې ګوزارونه کوم اوله غنيمت نه ځان ساتم .

کله چې مجاهد غنيمت نه آخلي نو هغه ته غوره داده چې دايثار له کبله يې وانخلي. په دې معنى چې خپلو نورو ورونو ته يې ورکړي. اوکه چيرته غنيمت دزهد په خاطر نه آخلي نو دا ورته ښه ده.

اوکه غنيمت دى لپاره نه آخلي چې ددى له نفس نه سره د غنيمت دترلاسه کولو ماده ختمه شي نوداډيرښه کاردى. ځکه چې کله نفس ته دغنيمت دترلاسه کولو تمه اوتوقع پيداکيږي نو داد هغه په اخلاص کې نقصان راولي.

اووم : له مجاهدينو نه ځينې خلک داسى دي چې نيت يې صرف ددنيا مال او متاع ترلاسه کول وي. جهاد نه عبادت ګڼي اونه هم الله ته دنژدى کيدو ذريعه ، کله چې هغوى ته دکافرو له داسى طائفې سره دجهاد کولو بلنه ورکول کيږي چې هلته غنيمت نه ترلاسه کيږي نو هلته نه ځي. همدغه راز که هغه ته معلوم شي چې له غنيمت نه منع کولى شي نوبياهم جهاد ته نه ځي.

بياکه داسى سړى دغزا په حالت کې ووژل شي نوداپه حقيقت کې شهيد نه دې اګرکه په ظاهره دشهيد حکم ورباندې جاري کيږي. ده ته هيڅ ثواب نه ورکول کيږي ځکه چې دهغه نيت پاک اوصفانه دى.

اتم :له مجاهدينو نه څه کسان داسى دي چې دځان ښودنې اوفخر لپاره جهادکوي چې خلک دهغه صفت اوتعريف وکړي غازي يا بهادر ورته ووايي. دا داسې کاردى چې هغه په غزا کې دالله تعالى درضا نيت نه دى کړې. که داسړې ووژل شي نو شهيد نه دى او نه دشهيد ثواب ورته ورکول کيږي. داپخپله بيه کې تاواني شويدې

اوپه آخرت کې ددی ورڅی چی خوار او ذلیل شي. داد هغو خلکو لـه جملې څخه دی چی لومړی بـه پـه هغوی باندی د جهنم اوربل کړی شي لکه چې پـه مخکیني حدیث کی تیرشو. داداللہ تعالی دلوی قهر او غضب مستحق دی اوپـه دردوونکی عذاب کی به اخته کیږي ځکه چې پـه عبادت کې دهغـه څه تقرب ترلاسه کړیدی چی پـه شریعت کی ورتـه روا نـه و او هغـه دعبادت مستحق نـه و. نوځکـه ریاکـار انسـان مشرک دی کـه چیرته پـه جهاد کې پـه دی نیت شریک شو چی ثواب هم وګټي او خلک یې صفت او تعریف هم وکړي نو داسې سړی هم شهید نه دی. او اجر ورته نه ورکول کیږي. اګرکه پـه ظاهره شـهید دی او دشـهید حکم وربـاندی جـاري کیـږي نصوص پـه دې باندې دلالت کوي چی که چیرته همداسی نیت یې وي نو دهغه لپاره نه ثواب شته او نه عذاب بلکی دهغه جهاد او عمل ضائع کیږي، بلکې پـه عقوبت او عذاب کی دا ورتـه کـافی ده چې عمـل او جهـاد بـه یې بابیزه شي او اجر اوثواب یې ختمیږي اوپه دنیاکې یې خساره داشوه چې خپل ګران او خوږ نفس یې بې ځایه لاړ، لـه دی سره چی پـه جهاد کی دیته دقتال او وژل کیدو تکلیف رسیږي خوداله هغه نه داللہ پـه لاره کی دوژل کیدو تکلیف نه شي کمولې لکه چی لِـه مخلص سړي نـه دقتال او وژل کیدو تکلیف لرې کوي .

(( عـن ابـی هریـره ﷺ عـن رسول اللہ ﷺ: قال : قال اللہ عزوجل : " انا اغنی الشرکاء عن الشرك فمن عـمل عملاً نْ ، اشرك فيه غيري ، فانا منه بری ءٌ ، وهو للذی اشرك " .[1] ))

لـه ابی هریـره ﷺ نـه روایـت دی هغـه رسـول اللہ ﷺ نـه روایت کـوي چی هغـه ﷺ وفرمایل اللہ تعالی فرمایلی دي : زه لـه شرک نـه بی نیازه اوبې پروا یم. څوک چې زمـا لپاره کوم عمل کوي او پـه هغه کی بل څوک هم شریکوي ، نوزه لـه هغه نه بیزاره یم هغه دهغه چالپاره دی چی لـه ماسره یې شرک کړیدی .

---

[1]ــ رواه مسلم في الزهد والرقائق : ۲/ ۱۴۰۵.

((عـن ابـی سـعید بـن ابي فضاله ﷺ قال : سمعت رسول الله ﷺ یقولُ :
اذاجمع الله الاولـین والاخـرین یـوم القیامة لیوم لاریب فیه ، نادی منا دٍ من
کـان اشـرك فی عمله احداً فلیطلبُ ثوابه من عنده ، فان الله اغنی الشرکاء
عن الشرك [1] )).

له ابی سعید بن ابی فضاله ﷺ نه روایت دی هغه وایي چې ماله نبی کریم ﷺ نه آوریدلي دي چی فـرمایل یې: کله چې الله تعالی ټول مخکیني او روستني خلک دقیامت په ورځ چی هیڅ شک په کې نشته راجمع کړي نو یو آواز کوونکی به آواز وکړي: چاچی پخپل عمل کې بل څوک شریک کړې وي نودهغه ثواب دی لـه همغه نه وغواړي. بیشکه الله تعالی لـه هر ډول شرک څخه غني اوبی پروا دی.

نهم : له مجاهدینونه څه ـ ان داسی دي چې جهاد او غزاته په دی خاطر ځي چې ووژل شي او لـه هغه څه نه په آرام شي چې په دنیاکې یې هغه پریشان کړیدي لکه دبل چاقرضدار وي یاډیر غریب او محتاج وي یا ناروغ وي اویاپه بل کوم مصیبت کی اخته وي ، او دده په زړه کی دثواب ګټلو اودالله تعالی ددین دسرلوړي کولو هیڅ آرمان نه وي.دداسې سړي په باره کی دا احتمال دی چی دادالله په نزد شهید نه وي ځکه چې دهغه په زړه کې چیرته داخبره نه ده راغلی چی په دې سره به دالله تعالی تقرب اویادالله دین سرلوړی کړي لکه څنګه چې ددی احتمال هم دی چې داشهیدَ وي ځکه چې هغه دځان د وژلو لپاره دجهاد لاره غوره کړېده نـه بلـه لاره .لکـه خودکشي اوداسی نور. او دده په زړه کې لـه مخکې نـه ایمان موجود وي او همدا ایمان دشهید کیدو لپاره بس دی خوداسی سړي تـه دمخلصو مجاهدینو مقام او مرتبه نه ورکول کیږي .

***

[1]ـ رواه الترمذي في التفسير ٥/ ٣١٤ وابن ماجه في الزهد : ٢/ ١٤٠٦ . واحمد : ٣ : ٤٦٦
والحديث حسن .

# فصـــل

# دهغه چاپه باره کـې چــې پـــــه مزدوري ســـــره جهاد کوي

پوه شئ چې ائمـه و رضـي‌الله عنهم پـه جهـاد باندې د اجرت آخستلو په مسئله کې اختلاف کړېدی ، ځينو علماو ممانعت کړيدی او ځينو اجازه ورکړيده.

څـوک چـې د مـزدوري داخسـتلو دجـواز پـه حق کې دي هغـوی وايـي چـې اجـوره آخستونکي تـه دا روانـدی چې کله مزدوري ورتـه نه ورکول کيږي نو جهاد تـه نه ځي يعنې خپـل جهاد لـه مزدوري سره موقـوف نکړي پـه دې معنی چې کله اجوره ورتـه ورکـول کيږي نـو جهـاد تـه ځي او چې کلـه نه ورکول کيږي نو نه ځي. که څوک داسې جهاد کـوي نـو هغـه لپـاره اجر اوثواب نشته. او کله چې ووژل شي نو ظاهره داده چې داشهيدنه دی .

لکه چې يـو مجاهد پـه مزدوري سره دجهاد ميدان ته حاضر شي اوبيا الله پاک هغه ته پاک نيت ورپـه برخه کړي، لـه دښمـن سره مخامخ وجنګيږي اوشا ورته وانه ړوي دجنګ پـه حـالت کې ددښمـن لـه لاسه ووژل شي نـو اميد دی چې دابـه شـهيد وي خودهغو عملونوثواب ورتـه نه ورکـول کيږي چې داستحضـار دنيت نـه يې مخکې کړی لکه سهاريابيګا دالله جل جلالـه پـه لاره کې وتل ، دالله دلارې ګرد ، دالله جل جلالـه پـه لاره کې دخوف اوډارسره مخ کيـدل اودی تـه ورتـه نـور عملونه ، ځکه چې دهغـه نيت لـه وړانـدې نه صحيح نه و که مزدوري ورتـه نه وای ورکول شوې نو جهاد ته نه راتلو.

اوکـه چيرتـه محتـاج وي او دومره څه نـه لري چې جهاد لپـاره يې پخپـل ځان ولګوي دخپـل ځـان د مجهز کولـو او تيارولو لپاره څه مزدوري واخلي نوهغه ته دهغه جهاد پـه وجه ثـواب ورکـول کيږي اوکومـه مزدوري يې چې آخستې دي هغه دهغه پـه جهاد کې څه نقصان نه پيداکوي.

((عن عبدالله بن عمرو ﷺ عنهما ان رسول الله ﷺ قال: للغازي اجرهٔ، وللجاعل اجرهُ و اجر الغازی.[1]))

له عبدالله بن عمرو ﷺ نه روایت دی چی رسول الله ﷺ وفرمایل:

غازي لپاره ثواب دی او څوک چې غازي مجهز کوي هغه لپاره خپل اجر هم دی او دغازي په اجر کی هم شریک دی .

چاچې په جهاد کې دخدمت په خاطر مزدوري واخیسته نه دجهاد اوقتال په عوض کې لکه دجهاد دسامان ښکتته اوپورته کولو لپاره نوددغسی سړي لپاره کله چی په جهاد کی شریک شي اجر ورته شته خوپه دی شرط چی نیت یي خاص دالله تعالی لپاره وي. همدغه شان دتجارانو او جهادلپاره دسامان جوړوونکو حکم دی کله چی هغوی په رښتوني نیت دالله پ[illegible]ه کی جهاد وکړي نو له الله سره دهغوی اجر شته اوکه په جهاد کې ووژل شي نو شهیدان دي.



# فصل

## په جهاد کې له رښتوني نیت نه وروسته دریاکاري پیداکیدل

چاچی دالله په لاره کې په خالص نیت سره غزا ته ووت بیا ورته ریاپیداشوه وروسته لدینه چې دجهاد په افعالو کې یې شروع کړی وه نو په دی مسئله کې تفصیل دی .

کوم عبادتونه او الله ته دنژدې کیدلو کارونه چې ثواب یې له قتال پورې موقوف نه وي دریاله پیداکیدونه وړاندې ترسره کړی شي لکه دالله په لاره کی مال اوسامان

[1] ــ رواه ابو داود في الجهاد : ۳/ ۳۷ والحدیث صحیح

خرڅول ، دمجاهدينو مجهز کول اودسرحدونو حفاظت کول نوپه دې سره هغه ته اجر ورکول کيږي.

ريا هغه عمل ضائع کوي چې لـه ريا نـه وروسته ترسره کړی شي خو هغه عمل نه ضائع کوي چې درياله پيداکيدو نـه وړاندې ترسره شوی وي، مومن دالله دلوی اوپراخ رحمت تمه لري اواميد کوي چې الله تعالی به ورسـ ه دمهرباني او ګذشت معامله وکړي.

کـه چېرته دريالـه پيداکيدونـه وړاندی کوم عبادت يي نـه وي کړی بلکې جهاد تـه دتللو پـه وخت کی پـه زړه کی ورتـه رياپيداشي نوپـه دی جهـاد کې ورتـه ثواب نشتـه ځکه چې ريا دهغه ټول عمل ضائع کوي. اوکه چيرته جهاد ته په صفا او خالص نيت سره دالله درضا لپاره لاړ اوبياکله چې لـه دښمن سره مخامخ شي اودجنګ صفونه وګوري نـو هغـه خالص نيت يې لـه زړه نه ووځي چې په کوم نيت سره جهاد ته راغلـ ، و خودرياکاري داسی کوم کـار ترينه صادر نه شي چې دهغه په زړه کې پيدا شويدی لکـه ځان ښودنـه اوفخر کـول. نـو لومړنی نيت يې ورتـه کافی دی اوپـه دې جهاد سره ورتـه اجر ورکول کيږي. ځکه چې دالله په لاره کې جهاد ته وتلی دی، او څوک چې په دی نيت دالله پـه لاره کی جهادکوي چې دالله دين سرلوړی شي نو هغه فی سبيل الله مجاهد دی اوثواب ورتـه ورکـول کيږي ، پـه جهاد کی دګډون کولو لپاره پـه عمومي ډول د جهاد نيت کافي دی اوداشرط نه دی چې دجهاد پـه جزئياتو کی دهريو جزلپاره نيت متحقق کړی شي. اونه په هر آن اولحظی دتګ کې نيت ته اړتيالري همداکافي دی چې داسی کوم عمل تری صادر نه شي چې دجهاد نيت باطل کړي.

کـه چېرته يوسړی دالله درضـا لپاره جهاد تـه نـه ځي بلکې دشرم او عار له وجی نه جهاد کـوي چې هسـی نـه خلک ورتـه بی غيـرت او بزدل ووايـي اوپـه همدی خاطر د جهاد لـه ميدان نـه تښتي نوداسی سړي لپاره په دی جهاد کی هيڅ قسم اجر اوثواب نشتـه ځکه چې دالله درضا لپاره يې جهاد نه دی کړی بلکې دخپل غيرت او بدنامي په خاطر يې کړيدی.

هريو مجاهد ته پکار دي چې ريا او افتخارله خپل زړه او دماغ نه بالکل وباسي او ترې‌نه لرې واوسي ، هيڅکله دې په زړه کې دې خبرې تـه ځای ورنکړي چې خلک

دهغه تعریف وکړي بهادر ورته روايي خلکوته دی نه ګوري چی هغوی به بد رد ورته
روايي او دهغوی دسپکو سپورونه دی نه ویریږي اوداسی نور
بلکی مجاهد ته پکار اولازم دي چې دجهادبابیزه کوونکو وسوسو په خلاف له
خپل نفس سره مبارزه وکړي اوخپل ځان ترینه وساتي.پخپل دماغ اوزړه کې اخلاص
اوربښتوني نیت قوي کړي او وربإندی ټینګ واوسي، له الله تعالی نه دی قوي امید
وساتي او الله تعالی ته دی دهغه غرق کیدونکي په شان متوجه شي چې ددریاب
زوره وړي څپی له ځان سره اخستی وي او هیڅ یې په وس نه وي پوره ترڅو الله
تعالی دهغه عجز او کمزوري ته وګوري اوپه خالص نیت باندې یې قائم وساتي،
دژوند تر آخرنۍ سلګیو پورې اخلاص ورته په نصیب کړي اودشهادت په مرګ یې
مړکړي. اودفقر نه وروسته دسعادت په خزانه باندی کامیاب شي او الله هغه څوک
ساتي چې ورته ارادې شي او چې چاته یې خوښه شي سمه سیده لار ورته ښايي.



# فصل

## دهغه مجاهد حکم چې خپل جهاد دخلکو په وړاندې اعلانوي

کله یومجاهد خالص دالله درضالپاره په پاک نیت جهاد ته لاړشي اودغزا ترپای ته رسیدو پورې هغه په دی نیت قائم وي . بیاکله چې جهاد ختم شي اوهغه ترېنه روغ رمټ کورته ستون شي نو دهغه په زړه کې داشوق پیداکیږي چی خپل جهاد خلکوته بیان کړي اوپه خلکو کی مشهور شي چی دی مجاهد دی .

دی مقصد لپاره هغه خلکوته دخپل جهاد کیسې کوي اودخپل جرئت او بهادرۍ واقعات بیانوي.

له احادیثو او آثارونه داسی معلومیږي چې داشان کارونه او دا ډول خبرې دهغه دمخکیني جهاد ټول ثواب ختموي اوضائع کوي یې.

((عَـنْ ابی قتادة الانصاری ﷺ ان رسول الله ﷺ قال لرجلٍ : قال:(( صُمْتُ الدهرُ یارسول الله !)) فقال : ( ماصمتَ ولا افطرتَ )) [1]

له ابي قتاده الانصاري نه روایت دی چی رسول الله ﷺ ته یوه سړي وویل یارسول الله ! ماټول عمر روژه نیولی ده. رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : نه دی روژه نیولي ده اونه دی ماته کړېده ( یعنی هیڅ ثواب دی نه دی ترلاسه کړې . هغه سړي داخبره دریا اوخان ښودنې لپاره کړی وه )

(( وسمِعَ عبدالله بن مسعود ﷺ رجلاً یقول : قرأتُ البارحة سوزة البقرة ! فقال ذالك حظُه من قراء ته! ))

---

[1] ـ رواه مسلم في الصیام : ۲/ ۸۲۸

عبدالله بن مسعود ﷺ دیوسړي لـه خولې نه واوریدل چی ویل یې ماسهار دبقری سورت تلاوت کړیدی عبدالله بن مسعود وویل دهغه له خپل قرائت نه همدا برخه ده .

په هر مسلمان باندی لازم دي چې خپل جهاد او نور ټول عملونه بی فائدې چاته بیان نه کړي ترڅودهغه نیک عملونه ضائع نه شي. اوکه چیرته دخپل جهادي کارنامو په بیانولو سره څه ګټه مرتب کیږي او خلک جهاد تـه شوق پیداکوي نوبیاپکې څه حرج نشته خوشرط دادی چی نیت یې لـه ریانه پاک وي اوصرف په دې خاطر یې بیانوي چی دخلکوپه زړونو کې دجهاد شوق اوجذبه پیداکړي، شجاعت اوقوت وربه برخه کړي. مثلاً هغه داسی ووایي: ماپه فلانکی فلانکی غزاګانو کې دومره جرئت اواستقامت وښود دالله په لاره کی مې دا دا مالونه خرچ کړل. خپل ځان مې په فلاني فلاني ځایونوکې لـه خطر سره مخامخ کړ او داسی نور. په دی سره داوریدونکي سړي زړه قوي کوي اودخپل ځان او مال دقربانولو لپاره هڅوي دهغه لـه زړه نـه بی غیرتي اوبخل ختموي ځکـه دافطري خبره ده چې نفسونه چیلنج زرقبلوي اودخپلو همځولو سره په ورته والي کې زیار باسي ؟سلف صالحینو به د همدی مقصدلپاره دجهادکیسې اوجهادي کارنامې بیانولې اوبس. که هغه ته داویره وي چی دخپل ځان دیادولو په صورت کی دریا ء احتمال پیداکیدای شي نوبیا دې خپل ځان نه یادوي بلکې داسی دی ووایي : مایوشخص ولید چې هغه په جهاد کې دادا کارنامې ترسره کړې یایوسړی زه پیژنم چی هغـه دالله په لاره کی داسی داسی قربانیاني ورکړیدي او خپل مال حال یې لګولی دی. په داډول وینا سره څوک په دی نه پوهیږي چې ددغو کارونو فاعل هغه پخپله دی اوپه دی سره هغه مقصد هم حاصلیږي چې ددی په زړه کې دی یعنی دخلکو په زړونو کې دجهاد شوق او ولوله پیداکول. زیاتره سلفو به خپل اعمال مطلقاً پټ ساتل اوچاتـه یې نه ښکاره کول، اګرچې پـه خپله به قدوه وو اوخلکو ورپسې اقتداکوله. هغوی داکار لـه دی وېری نه کاو چی هسی نه په ریاکی رانښي.

((عن عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما قل : قل رسول الله ﷺ : مَنْ سَمَّعَ النَّاس بعمله سَمَّعَ الله به سامع خلقه وصغَّره وحقَّرهُ .[1] ))

له عبدالله بن عمر رضی‌الله عنهما نه روایت دی چی رسول الله ﷺ وفرمایل:

چاچی خپل عمل ددی لپاره ښکاره کړ چی خلک ورباندی خبر کړي اوخپل ځان ورته ښکاره کړي نو الله تعالی دهغه فاسد نیت خلکوته ښکاره کوي اودخلکو په وړاندې یې سپکوي او ذلیلوي یې .

(( وروی البخاري ومسلم عن عبد الله بن عمرو رضي الله عنهما ، عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قل : " من سَمَّعَ سَمَّعَ الله به "[2] ))

عبدالله بن عمر رضی الله عنهما له رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روایت کوي چه هغه صلى الله عليه وسلم وفرمایل : چاچې خپل عمل ددې لپاره وکړ چې خلک وربانديې خبر کړي نو الله تعالې دهغه دعمل ( فاسد نیت )خلکوته دقیامت په ورځ ښکاره کوي .

کله چې نېکان خلک په دی پوه شول چې دعبادتونو اونیکو اعمالو ښکاره کول لوی خطر لري او دنفس په مختلفو ډولونودسیسو باندی احاطه نه شي کیدی نو هغوی خپل عبادتونه لدی وېری نه پټ وساتل چې هسې نه ضائع اوبرباد نه شي. هغوی په همدی باندی اکتفا وکړه چی الله تعالی زموږ له ټولو عملونو نه ښه خبردی اویواځې همغه به ددغو عبادتونو اونیکو کارونو اجر راکوي.

په عبادتونو کې له ټولونه مهم عبادت چې پټول یې ضروري دی هغه جهاد دی، ځکه چې داکه چیرته خالص دالله درضا لپاره وي نود ابدي سعادت سبب دی. اوکه په ریاء سره ضائع کړی شو نو د دائمي بدبختۍ باعث دی .

دصالحو سلفو یو څومثالونه چی خپل جهادونه به یې له خلکونه پټ ساتل په لاندی ډول دي :

---

[1] ــ رواه الهيثمي في مجمع الزوائد ، وقال رواه الطبراني في الكبير . مجمع الزوائد ١٠/ ٢٢٢ ، والحديث صحيح .

[2] ــ رواه البخاري في الرقائق : ٧/ ١٨٦ ومسلم : في الزهد : ٤/ ٢٢٨٩

ابن عساکر لـه عبدالله بن سنان نه روایت کړیدی هغه وایي چې زه لـه عبدالله بن المبارک او معتمر ابن سلیمان سره په طرطوس کی وم. خلکو جهاد ته وووځئ جهاد ته ووځئ چیغې وکړې. ابن المبارک ، معتمر او نور خلک جهاد تـه ووتـل. کلـه چې مسلمانان اودښمنان پخپلو کې سره مخامخ شول نوله رومي لښکر نه یوسړی مېدان ته ووت اویوه په یوه دمقابلې غوښتنه یې وکړه. دهغه دمقابلې لپاره یو مسلمان ووت رومي کافر په مسلمان غالب شو او ویې واژه، بل مسلمان ورته ووت، خو هغه یې هم وواژه ان تردی چې شپږ مسلمانان یې ووژل.

رومي په مېدان کی په تکبر سره چیغې وهلې دهغه دمقابلې لپاره څوک ووځي خوله مسلمانانو نه هیڅوک ونه وتلو.معتمر وایي چې ابن المبارک ماته وکتل او راته یې وویل که چېرته زه مړشوم نو ماتـه دا دا کارونه وکړه.هغه خپل آس روان کړ او درومی کافر مقابلې ته ووتلو، لـه هغه سر یې یو ساعت مقابله وکړه اوبالاخره هغه یې وواژه. بیاله نورو نه دمقابلې غوښتنه وکړه نو یوبـل رومي کافر مقابلې تـه راغی هغـه یې هم وواژه آن تردی چې شپږ رومیان یې ووژل. بیایي دمقابلې غوښتنه وکړه خو لـه وېرې نه یو رومي کافر هم ورته ونه وتلو.ابن المبارک خپل آس روان کړ دواړو صفونو تـه یې وکتل اوبیرته همغه ځای ته راغی چی لـه کوم ځـای نـه وتلی و. او زما پـه څنګ کې ودرید، ماتـه یې وویـل : ای عبدالله ترڅوپورې چې زه ژوندی یم زماداکیسه هیچاته مه کوه که نه نو..... معتمر وایي ترڅوپورې چې هغه نه ومړشوې مادهغه داکیسه هیچاته ونکړهمدغه راز ابن عساکر لـه اصمعی نه روایت کړیدی، هغه وایي چې مسلمه بن عبدالملک په روم کی دننه یوقلا محاصره کړه. ډېر زیات کوشش وشو چې کلاتـه مسلمانان ورننوځي او خلاصه یې کړي خو هیڅ لاره ورتـه پیدانه شوه.لـه لښکر نه یوسړی راغی او لـه یوی سوړی نه په قلا کې دننه داخل شو او الله پاک مسلمانانو ته فتح اوبری ورکړه کله چی جنګ دمسلمانانو په بری پای ته ورسید نو دمسلمه بن عبدالملک لـه لوري آواز کوونکي آواز وکړ چې پـه سوري کې دننه کیدونکی سړی چېرته دی ؟ هیچا ورتـه ځواب ورنکړ. دویـم ځل دریم ځل او څلورم ځل یې آواز وکړ خوهیچا ورتـه ځواب ورنکړ. لدینه وروسته یوسړي مسلمه تـه لاړ او ورتـه یې وویـل چې دسوړې لـه لارې دننه کیدونکی سړی پرتا دری شرطونه ږدي. یوداچی نوم یې په کتاب کی ونه لیکی. بل داچی څه انعام او مکافات ورتـه ورنکړې اوبـل داچی لـه خپل کارنه لرې نه کړی. مسلمه ورتـه وویل زه دهغه شرطونه منم او التزام یې کوم. هغه ورته وویل: هغه سړی زه یم چې پـه قلاکې مې سوری کړی وه او ننوتی وم. داخبره یې وکړه او ترېنه لاړبیاچېرته ونه لیدی شو. مسلمه رحمه الله به لدېنه وروسته لـه هرلمونځ نه بعد ویل : ای الله! ماله سوري کوونکي سړي سره وګرځوه.

## اووه ویشتم باب

## څوک چې دجهاد لپاره ووت اوله جنګ نه پرته مړشو هغــــه شهید دی.

﴿ وَلَئِنْ قُتِلْتُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوْ مُتُّمْ لَمَغْفِرَةٌ مِنَ اللَّهِ وَرَحْمَةٌ خَيْرٌ مِمَّا يَجْمَعُونَ ۝.وَلَئِنْ مُتُّمْ أَوْ قُتِلْتُمْ لَإِلَى اللَّهِ تُحْشَرُونَ ﴾.

[ آل عمران : ۱۵۷ – ۱۵۸ . ]

اوقسم دی که چیرته تاسې دالله په لاره کې شهیدان اویاپخپل مرګ مړه شئ نودالله له لورې ښښنه لــه هغه مال څخه ډیره غوره ده چې هغوی یې راټولوي. اوقسم دی که تاسې پخپل مرګ مړه شئ اویا ووژل شئ نو خامخا به الله ته راټول کړای شئ.

﴿ وَمَنْ يُهَاجِرْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يَجِدْ فِي الْأَرْضِ مُرَاغَمًا كَثِيرًا وَسَعَةً وَمَنْ يَخْرُجْ مِنْ بَيْتِهِ مُهَاجِرًا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ أَجْرُهُ عَلَى اللَّهِ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا ﴾ [ النساء :۱۰۰].

او هرڅوک چې دالله په لیاره کې هجرت وکړي په ځمکه کې به د آرام ډېر ځایونه او په ژوند کې به پراخي مینده کړي او هرڅوک چې له خپل کور نه دالله اودهغه درسول په لور هجرت کوونکی ووزي، بیایي مرګ راګیر کړي نوپه تحقیق سره چې اجر یې پرالله ثابت شو اوالله پاک ډېر ښښونکی او د ډېر رحم ښښتن دی .

﴿ وَالَّذِينَ هَاجَرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ ثُمَّ قُتِلُوا أَوْ مَاتُوا لَيَرْزُقَنَّهُمُ اللَّهُ رِزْقًا حَسَنًا وَإِنَّ اللَّهَ لَهُوَ خَيْرُ الرَّازِقِينَ ۝ . لَيُدْخِلَنَّهُمْ مُدْخَلًا يَرْضَوْنَهُ وَإِنَّ اللَّهَ لَعَلِيمٌ حَلِيمٌ ﴾ [الحج : ۵۸ - ۵۹ .]

اوهغو کسانو چې دالله په لیارکې هجرت کړیدی اوبیا په همدی لاره کی وژل شویدي اویاپخپل مرګ مړه شویدي الله پاک به غوره اوښه روزي ورکړي. بې شکه الله پاک ډېرښه روزي ورکوونکی دی. او اروමرو به یې دهغوی دخوښې ځای ته ننه باسي. اوبې له شکه الله پاک په هرڅه پوه او داوږد زغم والا دي.

(( روی البخاري ومسلم عن ابي هريرة رضى الله عنه ، ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال:" مثل المجاهد في سبيل الله كمثل القانتِ الصَّائمِ ، لايَفتُرُ صلاةً ولا صياماً ، حتى يُرجعَه اللهُ الى اهله بما يُرجعُه اليهم من غنيمة او اجر ، او يتوفَّاه فيدخُله الجنة "[1] ))

له ابي هريره رضی الله عنه نه روایت دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي دالله دلارې دمجاهد مثال دهغه لمونځ ګذار او روژه دار دی چه نه ستړي کیږي ترهغه چی خپل کورنی ته دغنیمت او اجر سره واپس شي او یا هغه ته مرګ راشي او جنت ته داخل شي.

(( وروى مسلم عن أبي هريرة رضي الله عنه ، أن رسول الله ﷺ قال : ماتعُدون الشهادة فيكم ؟

قالو: من قُتل في سبيل الله فهوشهيد.

قال : إنَّ شُهداء أمتي إذنْ لقليل !

قالوا : فمن هم يارسولَ الله ؟

[1] ــ رواه البخاري في الجهاد : ٣/ ٢٠١ ومسلم في الامارة : ٣/ ١٤٩٨

قـال : مَـنْ قُـتل في سبيل الله فهوشهيد ، وَمنْ ماتَ في سبيل الله فهوشهيد ، ومَنْ مات في الطاعون فهوشهيد ، ومن مات في البطن فهوشهيد ، ومن غرق فهو شهيد[1] )).

لـه ابی هریـره ﷺ نـه روایت دی چی رسول الله ﷺ وفرمایل : تاسې پخپلو کې چاته شهیدان وایاست ؟

اصحابو ورتـه وویل: څوک چې دالله په لاره کې وژل شوی وي هغه شهید دی. رسول الله ﷺ وفرمایل : بیاخو زماد امت شهیدان لیږ دي.

اصحابو وویل : یارسول الله نو شهیدان څوک دي؟

رسول الله ﷺ وفـرمایل : څـوک چې دالله په لاره کې ووژل شي هغه شهید دی. څوک چې دالله په لاره کی مړشي هغـه شهید دی ، څوک چې دطاعون لـه امله مړشو هغه شهید دی ، څوک چې په اوبو کې غرق شو هغه شهید دی.

((عـن عقـبة بـن عامـر ﷺ عـن النبي ﷺ قل: (( خمسٌ مَنْ قُبضَ في شي ء منهن فهـو شهيد: القتيل في سبيل الله شهيد ، والغريق في سبيل الله شهيد، والمطعـونُ في سـبيل الله شـهيد ، والمـبطونُ في سـبيل الله شهيد، والنفساءُ في سبيل الله شهيدةٌ[2] ))

له عقبه بن عامر ﷺ نه روایت دی چی نبی کریم ﷺ وفرمایل:

پنځه شیان داسی دي چی کـه چیرته پـه دی کی دکوم مسلمان روح قبض کړی شي نوهغه شهید دی .

[1] - رواه مسلم في الإمارة : ٣ / ١٥٢١ .

[2] - رواه البخاري في الجهاد والسير : ٣ / ٢١١ ومسلم في الإمارة ٣/ ١٥٢١.

(۱) دالله په لاره کې وژل شوی سړی شهید دی (۲) دالله په لاره کې په اوبو کې ډوب شوی سړی شهید دی. (۳) دالله په لاره کی دطاعون په مرض کی مړشوی شهید دی، (۴) دالله په لاره کی دګیډې دجاري کیدو په ناروغۍ کې مړشوی شهید دی. (۵) او هغه ښځې شهیدانې دي چې دماشوم د زیږولو په وخت کی مړی شي.

((عن عبدالله بن عمر ﷺ عنهما عن النبی ﷺ فیما یَحکی عن ربَّه عزوجل: (( أيُّما عبد من عبادي خرجَ مجاهداً في سبيل الله ، ابتغاءَ مرضاتي، ضمنتُ له إن رجعته أن أُرْجِعهُ بما أصاب مِن أجرٍ او غنيمة ، وإنْ قبضتهُ غفرت له.))[1]

له عبدالله بن عمر ﷺ عنهما نه روایت دی هغه له نبی کریم ﷺ نه روایت کوي چې الله جل جلاله ماته فرمایلی دي چې : زماله بندګانو نه چې کوم یوسړی زمادرضا لپاره جهاد ته ووځي نوزه دهغه ضامن یم چې که هغه له جهادنه واپس کړم نو په ثواب او غنیمت سره به یې واپس کړم اوکه می دهغه روح قبض کړ نو بخښنه به ورته وکړم.

(( عن سَبُرةَ بن الفاکه رضي الله عنه قال :سمعت رسول الله ﷺ یقول : (( إن الشيطان قعدلابن آدم بأطرقِهِ ، فقعدَ له بطريق الإسلام فقال : تسلمُ وتدع دينك ودين أبائك ؟ ثم قعد له بطريق الهجرة ، فقال : تهاجرُ وتدعُ مولدَك ؟ ثم قعد له بطريق الجهاد ، فقال : تجاهدُ فتقتل ، فتزوجُ امرأتك ويقسم ميراثُك ؟

---

[1] - رواه الترمذی في فضائل الجهاد : ٤ / ١٦٤ . والنسائي في الجهاد: ٦/ ١٨، والحديث صحيح.

فقـال رسول الله ﷺ : فمن فعل ذلك ضمن الله لــه الـجنة ، إن قُتل أو ما تَ غرقًا أوحرقاً أو أكله السَّبُع.[١] ))

له سبره بن الفاکـه نـه روایت دی هغـه وایـي چې ماله رسول الله ﷺ نه واورېدل چې فرمایلی یي : بېشکه شیطان د بنی آدم په لارو کی کیناست. دهغه د اسلام په لاره کی کیښناست او ورتـه یـې وویـل: تـه مسلمانېږي اود خپـل پـلار دیـن پـرېږدی ؟ بیادهغه دهجرت پـه لاره کی کیښناست او ورتـه یي وویـل : ته خپل وطن پرېږدی او هجرت کوی ؟بیادجهاد پـه لاره کی ورتـه کیښناست او ورتـه یي وویـل: که ته جهاد وکړی نـو وبـه وژل شې، ستاښځه به بـل چاتـه واده کـړی شي او مـال بـه دی پـه خلکو باندی ووېشل شي ؟.

رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چاچی دغه کارونه ترسره کړل الله پاک هغه لپاره دجنت ضمانت کړیدی. کـه ووژل شي یاپـه اوبـو کـې ډوب شي یاوسوځېږي اویایې ځناور وخوري.

ابن عـتیک د( مـات حـتف انفـه ) کلمې پـه متعلق وایـي چې دا کـلمه پـه عـربو کـې دهیچالـه خولـې نـه نـه ده اوریدلې لومړې مادرسول الله صلی الله علیه وسلم لـه خولی نـه اوریدلی ده معنـی یـې داده چې پخپـل بسترباندی مړشو ځکـه عربو داګمان کاو چې په دی وخت کې دده روح په تنفس اخستو سره دخولې او پزی له لارې ووځي :

(( روی الـبیهقي وأحـمد عـن حمیـد بـن عـبدالرحمن الحمیری أن رجلاً من أصـحاب الـنبي ﷺ یقـال لـه حممة، جاء إلی أصبهان في خلافة عمر رضي الله عـنه ، فقـا ل : الـلهُمَّ إن حَمَمَـةَ یزعمُ أنَّهُ یحبُّ لقاءك ، فإن کان حممةُ صادقاً

---

[١] - رواه النسائي في الجهاد : ٥/ ٢٩٣ . وأحـــمد : ٣/ ٤٨٣. وابن أبي شيبة . ٥ / ٢٩٣، والحديث صحيح .

فـيمايقول ، فاعـزم عـليه بصـدقه ، وإن كـان كاذبًـا فاعزم لـه عليه وإن كره.

اللهم لاتَرُدَّ حَمَمَةَ من سفرتِهِ هذه !

فأخذ ه بطنه فمات بأصبهان .

فقـام أبـو موسـى الأشـعرى رضـي الله عـنه فقـا ل : ياأيها الناس: إنا والله ماسمعـنا فـيما سمعـنا مـن نـبيك ﷺ ، ولا فـيما بلَّغ علمنا ، إلاَّ أنَّ حممة مات شهيداً[1] ))

لـه حميـد بـن عبدالرحمن نـه روايت دی چی نبی کریم ﷺ یو اصحابي چی حممه په نوم يـاديدو دحضرت عمر ﷺ دخلافت په زمانه کې اصبهان ته راغی. هغه وويل: ای الله ! بيشـکه حممـه دافکرکوي چې ستا ملاقات ډېر خوښوي. که چېرته حممه پخپله وېنا کې رښتونی وي نـو تـه دده ګمـان رښتونی کړه اوکـه دروغژن وي نو هم ورته دا ورکړه اګرکه يې نـه خوښوي. ای زمـا پالونکيه ! حممه لدی سفر نه مه واپس کوه.له دی دعانـه پس دهغـه پـه ګيـډه کـې درد پېداشـو اوپـه اصـفهان کـې مړشـو. حضرت ابوموسی دخلکوپه وړاندې ودرېد او ويې فرمايل : ای خلکو! موږ چې دالله له رسول نـه څـه آوريدلي دي او څـه چې دالله لـه نبی نـه مـوږ تـه رارسيدلي دي دهغـه مطابق حممه ﷺ دشهادت په مرګ مړشويدی.

څيـنو ويـلي دي چې دالله پـه لاره کـې قـتل شوې او مړشـوې خلک پـه شهادت ، اجر اوثواب کی برابر دي. لېکـن غـوره قول دادی چی د ادواړه برابر نه دي. بلکې ددواړو ترمنځ فـرق دی، اوپـه دی کی هيـڅ شـک نشـته چې دالله پـه لارو کـې وژل شوي لـه هغه چانـه افضـل دي چی دالله پـه لاره کـې پخپـل مرګ مړشوې وي. څکه ددی دواړو ترمنځ ډيرفـرقونه دي چې څينې يې دادي : لومړې : مقتول فی سبيل الله لـه ميت فی سبيل

---

[1] - أسد الغابة لابن الأثير : ۲ / ۵۸ . ومجمع الزوائد للهيثمی : ۹/ ۴۰۰.

الله نه غوره او بهتره ده ځکه چې وژل شوي او وینې یې بهیدلې دي په دی باندې دجابر رضی الله عنه روایت دلالت کوي .

(( عـن جابـر بن عبدالله رضی‌الله عنهما: أنه سُئِلَ رسول الله ﷺ ایُّ الجهاد افضل ؟ قال : اَنْ یُعْقَر جوادُكَ ویُراقَ دمُكَ.[1] ))

لـه جابر ﷺ نـه روایت دی چی لـه رسول الله ﷺ نـه پوښتنه وشوه چې کوم یو جهاد افضل دی ؟

هغه ﷺ وفرمایل : چې اس دې زخمي شي او وینه دې تویه شي.

۲. دالله پـه لاره کی وژل شوی لـه هغـه چانـه غوره دی چی‌پخپـل مـرګ مړشوې وي اګرګه دالله په لاره کی وتلی وي. ځکه چې چادیوعمل نیت وکړ او وربانـدی عمل وکړ دالـه هغـه چانـه افضل او غـوره دې چی دعمـل نیت خو وکړي مګر ددغه کار په کولو بریالی نـه شي. پس مقتول چی کوم نیت کړی و په هغه باندی یې عمل هم وکړ او په خپل مرګ مړ دهغه عمل په کولو بر لاسی نه شو چې د هغه نیت یې کړی و.

۳. پخپـل مـرګ کې مړشوي سړې دمړپه نـوم یادیږي اګرکه هغـه تـه دشهید داجر پشان اجر ورکول کیږي. خودالله په لاره وژل شوی ته څوک مړ نه وایي بلکې شهید ورتـه وایـي او الله تعـالی لدینـه منع کړیـده چی شـهید تـه مـړ وویـل شي.لکـه چې فرمایي.

﴿وَلاَ تَقُوْلُوْا لِمَنْ یقتل فی سبیل الله امواتٌ بل احْیا ءٌ ولاکن لا تشعرون﴾

[ البقرة : ١٥٤ ].

دالله پـه لاره کـې چی څـوک وژل شـویدي هغـوی تـه مـړه مـه وایاست بـلکې هغـوی ژوندي دي لکن تاسې دهغوی په ژوند نه پوهیږئ.

۴. دالله پـه لاره کـې وژل شوی شـخص تـه هغـه ثـواب ورکـول کیـږي چی تپونـه ورتـه رسیدلي دي کله چی دقیامت په ورځ راوستل کیږي نو دهغه لـه بدن نه تازه تازه وینه

[1] - مـوارد الـظـمآن ص : ۳۸۷ ، والـحـدیـث صحیحٌ.

بهیږي. رنګ به یې دوینې رنګ وي اوبوی به یې بوی دمشکو وي. په خپل مرګ مړشوي سړي لپاره دافضیلت او اعزاز نشته.

۵. دالله تعالی په لاره کې وژل شوی شخص هیله کوي چې ببرته دنیاته ولیږل شي ترڅو دالله په لاره کې بیاقتال وکړي داهیله به دقتل دثواب دلیدو په وجه وکړي.

مګر پخپل مرګ مړشوی انسان داهیله نه کوي.

(( عَنْ انسٍ بن مالك ﷺ، عن رسول الله ﷺ قال : مامِنْ نفسٍ تموتُ لها عندالله خير، يسرُّها ان ترجعَ اِلىَ الدنيا ، وان لها الدنيا ومافيها اِلاَّ الشهيد. يتمنَّى ان يرجع، فيُقْتَل في الدُنيا لمايرى من فضل الشهادة [1] )).

له انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دی هغه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دي :

څوک چې مړشي او هغه لپاره له الله سره خیر اوښیګڼه وي، مګر هغه دانه خوښوي چې بیرته دنیا ته راشي او هغه لپاره دنیا اوددنیا هرڅه ورته ورکړی شي. مګر شهید دنیا ته په دی آرزو راتلل غواړي چې په دنیا کې ووژل شي داپه دی خاطر چې هغه دشهادت لوی فضیلت او مرتبه لیدلی وي .

(۶) دالله په لاره کې چې وژل کیدلو سره ټول ګناهونه معاف کیږي مګر دالله په لاره کې پخپل مرګ مړکیدلو سره ټول ګناهونه نه بخښل کیږي.

(۷) دالله په لاره کی پخپل مرګ دمړشوي سړي باندی دجنازې لمونځ لوستل کیږي خودالله په لاره کې په وژل شوي سړي باندی نه دجنازی لمونځ ( دامام شافعي په مذهب ) لوستل کیږي اونه ورته غسل ورکول کیږي. ځکه چې په مړي باندی دجنازی لمونځ په دی خاطر لوستل کیږي چې هغه لپاره دبخښنې دعاوغوښتل شي. مګر دشهید سړي ګناهونه الله تعالی دهغه له وژل کیدو سره سم بخښلي وي. نوځکه پرهغه دجنازی لمونځ نه لوستل کیږي .

---

[1] - رواه مسلم فی الامارة : ۳ / ۱۴۹۸ .

(۸) دالله په لاره کی د وژل شوي سړي روح په جنت کی دشنو مرغانو په ججورو کې وي (چې هغه دده لپاره دطياري پشان وي هر چېرته يې وړي راوړي) مګر دالله په لاره کی پخپل مرګ مړشوي سړي لپاره نشته .

(۹) دالله په لاره کی وژل شوي سړي دخپلې وينې لـه وچيدونـه مخکې دجـنت حورعين ويني. مګرپخپل مرګ مړشوی حورې نشي ليدلی.

(۱۰) مقتول فی سبيل الله به دقبر لـه عذاب نه په امن وي او دميت فی سبيل الله لپاره داضمانت نشته .

(۱۱) : مقتول فی سبيل الله شفاعت دوروستنيو خلکو په اړوند قبليږي او ميت فی سبيل الله داسې نه ده .

هودالله په لاره کې مړشوي سړی لـه هغـه خلکونه جدا او ممتاز دی چی دطاعون دګيـډې دجاري کيـدو، پـه اوبـو کې د ډوبيـدو، پـه اور کې دسوځيد او داسی نـورو ناروغيو پـه وجـه چی رسـول الله ﷺ دهغـو يادونـه کړېده مړشي، اوداپه دی خاطر چې هغوی جهاد تـه دتللو پـه وجـه داجر مستحق ګرځيدلي دي. په جهاد کې يې ورځې شپې تيری کړيدي، وجوديې په دوړو کې ککړشوې لوږه اوتنده يې زغملی ده، دالله پـه لاره کی خپـل مالونـه خـرچ کړيـدي اوداسې نـور عـبادتونه اوطاعـتونه يې کړيدي. چې دهغو ثواب ورته دجهاد فی سبيل الله په برکت په څو چنده ورکول کيږي .

کله چې دالله پـه لاره جهـاد تـه وتلي سړي نـاروغ شي يادسر درديي پـه ناروغي کی اخته شي اوياهم دجسم کومه برخه يې په دردشي، الله تعالی ددی په عوض کې دهغه ټول مخکيني ګناهونه بخښي.



# اتـه و يشتم باب

## د شهادت دمرگ لپاره دسوال کولو ترغيب اوحرص کول

الله تعالی په مسلمانانو باندی دافرض کړيدی چی په هرلمونځ کی لـه الله جل جلالـه نه دهغې دنيغې لاری دښودلو سوال وکړي لاردهغه کسانو چی الله ورباندی انعام کړيدي.

﴿اهْدِنَـا الصِّـرَاطَ الْمُسْـتَقِيمَ ۝ صِـرَاطَ الَّذِيـنَ أَنْعَمْـتَ عَـلَيْهِمْ غَيْـرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ . ﴾ [الفاتحة : ٦ -٧.]

ترجمه: موږ تـه سمه لیاره وښایه دهغو خلکو لپاره چې تاپرې لورينه کړېده، رټل شوي نه دي اوليياره يې نده ورـه کړې.

په کومو کسانو چې الله تعالی انعام کړی دی دهغوی يادونه دالله تعالی په دی قول کې شوېده.

﴿ وَمَــنْ يُطِـعْ الـلَّهَ وَالرَّسُـولَ فَأُوْلَـئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ مِنْ النَّبِيِّـينَ وَالـصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَـدَاءِ وَالصَّالِحِينَ وَحَسُـنَ أُوْلَئِكَ رَفِيقًا ﴾ [النساء : ٦٩ .]

اوهغـه څوک چې دالله اودرسول مننه وکړي نوله هغو کسانو سره به وي چی الله پرې لورېنه کړېده چی عبارت دي لـه پيغمبرانو، صديقانو، شهيدانو او نيکو کـارانو څخه او دوی خورا ډېر ښه ملګري دي.

((عـن سـهل بـن حـنيف ﷺ ان رسـول الله ﷺ قــال : مَـنْ سأل الله تعالى الشَّهادةَ بصدق بلَّغه اللهُ منازِلَ الشهداءَ وإنْ مَاتَ على فراشهِ[1] .))

---

[1] -رواه مسلم في الإمارة: ۳ / ۱۵۱۷ .

له سهل بن حنيف ﷺ نه روايت دی چی رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چې له الله تعالى نه دشهادت سوال وکړي، الله تعالى هغه دشهيدانو مرتبې ته رسوي اګرکه په خپل بستره کې مړشي.

((عن انس بن مالكٍ رضى الله عنها قل : قل رسول الله ﷺ مَنْ طلب الشهادة صادقاً اعْطيها ولولم تصبهُ.[1] ))

له انس بن مالک ﷺ نه روايت دی چی رسول الله ﷺ فرمايلی دي: چاچی په رښتوني زړه دشهادت مرګ وغوښت نو هغه ته به دشهادت درجه ورکول کيږي اګرچې شهيد نه شي.

(( وروى أبوداود والترمذى والنسائي عن معاذ بن جبل رضي الله عنه ، أنه سمع رسول الله ﷺ يقول : (( مَنْ قاتلَ في سبيل الله فُواقَ ناقة فقد وجبتْ له الجنة ، وَمنْ سألَ الله القتل من نفسه صادقاً ثم مات أوقتل فإن له أجر شهيد )).[2]

له معاذ بن جبل ﷺ نه روايت دی هغه وايي چې ماله رسول الله ﷺ اوريدلي دي چی فرمايلی يی : څوک چې دالله په لاره کې داوښې دفواقې هومره جهاد وکړ په تحقيق سره هغه لپاره جنت واجب شو.اوچاچی په رښتوني زړه له الله تعالى نه دالله په لاره کې دشهادت قتل کيدو سوال وکړ اوبيامړشو ياووژل شو نو هغه لپاره دشهيد اجر دی.

( يادونه ) فواقه داوښې دلوشلو هغه وقفې ته ويل کيږي چی کله اوښه لړغوندې ولوشلی شي نو هغه خپلې شيدی بندوي نوبيادهغې جونګې ورته خوشې کوي چې

---

[1] - رواه مسلم فى الامارة : ۳/ ۱۵۱۷ .

[2] - رواه ابوداود في الجهاد : ۳/ ٤٦. والترمذي: ٤/ ۱۸۵ . ولنسائي :٦/ ۲۵ والحديث صحيح.

دهغې تي وروي اوپتې شيدى بيرته لاندى راښكته كړي. چى كله شيدى بيرته لاندى راښكته كړي نو بيرته دهغې دشيدى دلوشلو لپاره ورځي. دغه لړغوندى وقفې ته فواقه ناقه وېل كيږي.

((عن ابى هريرة ﷺ قال : قال رسول الله ﷺ : (( تضمَّنَ الله لمن خرجَ في سبيله ، لايخرجه إلا جهاد في سبيلي، و إيمانٌ بي، وتصديقٌ برسلي، فهو عليَّ ضامن أن أُدخله الجنة ، أو أرجعه إلى مسكنه الذى خرج منه نائلاً مانال من أجرٍ أو غنيمة. والذي نفس محمدٍ بيده ، ماكلمٌ يكلمُ في سبيل الله إلاَّ جاء يوم القيامة كهيئته يوم كُلم ، لونه لونُ دم. وريحه ريحُ مسك. والذى نفس محمد بيده لولا أن أشقَّ على المسلمين ماقعدتُ خلافَ سريةٍ تغزو في سبيل الله ، ولكن لا أجدُ سعةً فأحملهم، ولا يجدونَ سعةً ، ويشقُّ عليهم أن يتخلَّفوا عني.

والذى نفسُ محمد بيده لوددتُ أني أغزو في سبيل الله فأُقْتل، ثم أغزو فأقتل، ثم أغزو فأقتل )).[1]

له ابى هريره ﷺ نه روايت دى هغه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل الله تعالى دهغه چا ضمانت كړيدى چى يواځې زماپه لاره كى دجهاد لپاره ووځي، او ددى لپاره ووځي چې په مابادى ايمان لري اوزما درسولانو تصديق كوي. زه دهغه ضامن يم چى په جنت كى يې داخل كړم. اويا هغه ځاى ته بيرته واستوم چې ترېنه وتلى وي په اجر او غنيمت سره، په هغه ذات قسم چې زما روح دهغه په لاس كى دى كوم زخم چى دالله په لاره كى چاته ولګيږي مګر دقيامت په ورځ به دهمغې ورځې په شكل كى راځي چې زخمي شوې و. رنګ به يې دوينې درنګ په شان وي اوبوى به يې دمشكو پشان وي.

---

[1] –رواه البخاري في الجهاد : ٤/ ١١ . ومسلم في الإمارة : ٣/ ١٤٩٥ .

زما دی په هغه ذات قسم وي چې دمحمد ﷺ روح دهغه په لاس کی دی که چیرته په مسلمانانو باندی داګران نه تمامیدای .په هغوی داګران تمامیږي چې زما نه وروسته پاتې شي ( یعنې زه غزاته لاړشم او هغوی وروسته پاتې شي ) نو زه به دیوې سریې نه هم چې دالله په لاره کې غزاکوي وروسته نه پاتې کیدم خونه زما دومره وس شته چې هغوی هم لـه ځان سره بوځم . اونه هغوی دومره وس لري چې لاړ شي زمادی قسم وي په هغه ذات چې دمحمد صلی الله علیه وسلم روح دهغه په قبضې کې ده زه دی زړه لـه کومې نه داخوښوم چې دالله په لاره کې غزاوکړم او ووژل شم بیا غزا وکړم بیا ووژل شم بیا غزا وکړم بیا ووژل شم .

(( و روى الحاكم عن سعدبن أبي وقاص رضي الله عنه ، أن عبدالله بن جحش رضي الله عنه قل لـه يوم أحد: ألا تأتي ندعو الله.

فدعا سعد ربَّهُ قائلاً : يا رب: إذا لقينا القوم غداً، فلقَّني رجلاً، شديداً بأسهُ، شديداً حرْدُ هُ، فأقاتله فيك ويقاتلُني ، ثم ارزقني عليه الظفَر حتى أقتله !.

ودعا عبدالله بن جحش رضي الله عنه ربَّـهُ قائلا: اللهمَّ ارزقني رجلاً، شديداً حرده شديداً بأسُهُ، أقاتله فيك ويقاتلني ، ثم يأخذني، فيجدعُ أنفي وأذني، فإذا لقيتُكَ غداً، قلت لي: يا عبدالله : فيم جدع انفك واذناك ؟

فاقول : فيك وفي رسولك. فتقول : صدقت .

وقد استشهد عبدالله بن جحش رضى الله عنه في المعركة .

وقال سعد لابنه اسحاق : يابني : كانت دعوة عبدالله خيراً من دعوتي ، لقيته آخر النهار ، وهو قد جدع انفه واذناه ! ))

حاکم لـه سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه نه روایت کړیدی چی عبدالله بن جحش ﷺ د احد دغزا په ورځ راتـه وویـل: ایازماخواتـه نـه راځي چې دواړه لـه الله نـه دعـا وغواړو؟

لومړې سعد ﷺ له خپل رب نه داسی دعا وغوښتله :

ای ربـه ! کله چې سباتـه لـه دښمن سره مخامخ شو نو ماله داسې سړي سره مخامخ کړې چې ډیر سخت جنګیالی اوغصـه نـاک وي. ستا درضا لپاره زه لـه هغـه سره وجنګیږم او هغـه لـه ماسره وجنګیږي. بیاماتـه پرهغه غلبه په نصیب کړې ترڅو هغه ووژنم.

بیاعبدالله بن جحش له الله نه داسې دعاوغوښت :

ای الله ماتـه پـه جنګ کې داسی سړی په لاس راکړه چې ډیر غصه ناک او جنګیالی وي ستا درضا لپاره زه لـه هغه سره وجنګیږم او هغه لـه ماسره وجنګیږي. بیاهغوی ماونیسي اوزماپوزه او غوږونه غوڅ کړي کله چې سباته لـه تاسره وینم نو ته به راته ووایي : ای عبدالله ! ستا داپوزه اوغوږ په څه کی پری شوی دي ؟

زه به ځواب درکړم ستا اوستا درسول په لاره کې. ته به راته وایې: رښتیا دی وویل : عبدالله بن جحش په دی جنګ کی شهید شو.

سعد خپـل زوی اسحاق تـه وویـل : ای زویـه د عـبدالله دعـا زمـا لـه دعـا نـه ښـه وه. ماهغـه د ورځې پـه آخري حصـه کې ولیـد چې پوزه او غوږونـه یې پری شوي وو ابن اسحاق روایت کړیدی کله چی د موتی جنګ ته دلښکرو ورتلو وخت رانژدی شو نو خلکو لښکر سره خدای پاماني وکړه. کله چی لـه عـبدالله بن رواحه سره یې خدای پاماني وکړه نو هغه په ژړاشو. هغوی ورته وویل : ای ابن رواحه ! ته ولې ژاړې ؟ هغه ورته په ځواب کی وویل :

نه مې له دنیاسره مینـه ده اونه عشق. لېکن ماله رسول الله ﷺ نه آوریدلي دي چې یو ایت یې له قرآنکریم نه لوست اوپه هغه کې یې د اور یادونه یې کوله . .

﴿ وَإِنْ مِنْكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا كَانَ عَلَى رَبِّكَ حَتْمًا مَقْضِيًّا ۝ ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِينَ اتَّقَوْا وَنَذَرُ الظَّالِمِينَ فِيهَا جِثِيًّا ﴾ [ مریم ۷۱-۷۲]

ستاسي هريوبه يوځل په جهنم ورځي. دا آخري خبره ده پوره کول يې ستا د رب په غاړه ده. بيابه پرهيزګاران ترينه خلاص او ظالمان به په ګونډو پريږدو.زه نه پوهيږم چې له ورتلو نه وروسته به زه څنګه ترينه ووځم .مسلمانانو ورته دعا وکړه چې الله دې ستاملګرې شي له تانه دې دښمنان دفع کړي اوموږ ته دې بيرته روغ رمټ راوګرځوي.

حضرت عبدالله بن رواحه ﷛ دهغو په وړاندې داشعرونه وويل : او رد يې ورباندې وکړ.

لکننی اسأل الرحمن مغفرةً ، وضربةً ذات فرغٍ تقذف الزبدا

اوطعنة بيا و حرّان مجهزة. بحربةٍ تنفذ الاحشاء والکبدا

حتی يقال اذا امرّوا علی جدثی يا ارشد الله من غازوقد رشد ا.

دشعرونو ژباړه : لاکن زه خولله رحمن خدای نه مغفرت غواړم ، اوپه خپل بدن کې دتوری داسې ژور زخم او ګوزار غواړم چې له څک نه ډکه وينه ترې بهيږي يادحرّانی زړه ور سړې له لاسونه دنيزې داسې کوذار غواړم چې زما په کُلمو او څيګر هغی خواته ووځي . تردې چې کله خلک زما په قبر تيريږي . نو ووايي . واه واه څنګه غازي و او څنګه صحيح مقام ته ورسيد.

په موته کې مسلمانانو له روميانو سره جهاد وکړ او عبدالله بن رواحه د مسلمانانو دريم اميرو اولدينه مخکې دوه اميران زيد بن حارثه او جعفربن ابي طالب شهيدان شوي وو او دادريم اميرهم شهيد شو.رضی الله عنهم اجمعين .

له زيد بن اسلم نه روايت دی چی عمربن الخطاب رضی الله عنه به ويل : ای الله زه له تانه ستا په لاره کی شهادت غواړم او ستا درسول په ښارکې مرګبدل غواړم. الله تعالی دهغه ﷛ دعاقبوله کړه اوپه مدينه منوره کې ورته دشهادت مرګ په نصيب کړ ذهبي له سليم بن عامر ﷛ نه روايت کوي هغه وايي چې زه دعبدالله الحکمي زوی جراح باندی داخل شوم . هغه دواړه لاسونه ددعا لپاره پورته کړل ورسره نورو اميرانو هم لاسونه پورته کړل. بياله دعانه وروسته جراح ماته وويل : يا ابايحيی ! ايا

ته پوهیږی چې موږ په دعا کې څه وویل : ماورته وویل نه . بلکې ماتاسې ددعاپه حالت کې ولیدلئ نو ماهم له تاسو سره لاسونه پورته کړل. هغه راته وویل : موږ الله ته سوال وکړ چې موږ ته شهادت په نصیب کړی. سلیم بن عامر وایي : په الله قسم چې په دی غزوه کې ټول شهیدان شول اویو پکې هم پاتی نه شو.

ابن المبارک لـه حمید بـن هلال نه روایت کړیدی هغه وایي چې اسود بـن کلثوم جهاد تـه ووت او الله نـه یې دا دعـاوغوښت . ای الله! زما دانفس خیـال کوي چې لـه تاسره مینه لري. که چیرته زمادانفس رښتونی وي نوخپل دیدار او ملاقات ورته په نصیب کړه اوکه رښتونې نه وي نو بیاهم خپل دیدار ورته وښایه اګرکه نه یې خوښوي اوما ستا په لاره کی شهید کړه اوزما غوښه دمرغانو اودرندو خوراک وګرځوه. پس کله چې اسود جهاد ته لاړ اوله دښمن سره قتال یې وکړ نو دالله په لاره کې ووژل او شهید شو.

حضرت عمر بن العاص ﷺ وایي چې زه او ورور مې هشام دیرموک په جهاد کې شریک شوو. نو موږ ټوله شپه لـه الله تعالی نه دعا وغوښتله چې موږ ته دشهادت مرګ په را نصیب کړې ، کله چې سهار شو نو الله هغه ته دشهادت مرګ په نصیب کړ خو زه یې محروم کړم.

(( وروى مسلم عـن أنـس بن مالك رضي الله عنه قال : انطلق رسول الله ﷺ وأصـحابه ، حـتى سبقوا المشـركين إلى بـدر، وجاء المشركون بعد ذلك . وحثّ رسـول الله ﷺ المسلمين على الجهاد ، وقال : (( قوموا إلى جنة عرضها السموات ولأرض ))

قل عمير بن الحمام : يارسول الله : جنةٌ عرضها السموات والارض ؟

قل نعم :

قل ابن الحمام ، بخ ، بخٍ

فقال رسول الله ﷺ : مايحملك على قولك بخٍ بخ؟

قال : لا والله إلا رجاء أن أكون من أهلها.

قال ﷺ : فإنك من أهلها !

فأخرج تمراتٍ من قرنه، فجعل يأكل منهن. ثم قال: إنْ أنا حييتُ حتى آكَلَ تمراتي هذه إنها لحياةٌ طويلة !

فرمى بما كان معه من تمر، ثم قاتلهم حتى قتل. رضى الله عنه.[١] ))

حضرت انس بن مالک ﷺ نه روايت دى هغه وايي: رسول الله ﷺ اودهغه اصحاب رضوان الله عليهم دبدر غزاته روان شول او هلته له مشركانو نه وړاندې ورسيدل او مشركان له هغوى نه وروسته راورسېدل رسول الله صلى الله عليه وسلم مسلمانان دجهاد لپاره چمتو كړل او ورته يې وويل : تاسې هغه جنت لپاره جهاد وكړئ چې پراخ والى يې دآسمان او زمكى هومره دى.

عميربن الحمام وويل : اى دالله رسوله ! داسى جنت چې پراخ والى يې دآسمان اوزمكې هومره دى ؟

رسول الله ﷺ وفرمايل هو .

ابن حمام وويل : واه واه .

رسول الله ﷺ ورته وويل په څه خبره دى واه واه وكړه؟ هغه وويل په دى اميد مى واه واه وكړ چې زه ددغه جنت اوسيدونكى وګرځم. رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ته دهغه اوسيدونكى يې بيايې له خپلې ځانتې نه كجورې راوويستلې او خوراک يې ترېنه شروع كړ، بيايې وويل ترڅو پورې چې زه دا خورم په دى باندى خو اوږد ژوند

---

[١] - رواه مسلم في الإمارة : ٣/ ١٥٠٩ .

تیریږي. په لاس کی چی څومره کجورې وي هغه ټول یې وغورځولې اوله کفارو سره جنګ شروع کړ او بالاخر شهیدشو.

ابن المبارک له انس بن مالک ﷺ نه روایت کوي هغه ﷺ وايي چې دیمامې دجنګ په ورځ زه دثابت بن قیس ﷺ له څنګ نه تیرشوم ګورم چی هغه خوشبوي لګوله . ما ورته وویل : ای تره ! ایاته نه وینې چی په مسلمانانو څه تیریږي او ته لا دلته ناست یې ؟

هغه په مسکاشو او ویې ویل : ای وراه دغه ده در روان یم. هغه خپله وسله واخسته اوپخپل اس باندی سور شو ان چې دجنګ ډګر ته راغې. له کفارو سره یې جنګ شروع کړ او ترهغه وجنګیدچې ترڅوشهید شوې نه و. یادونه : حنوط هغی خوشبوی ته وایې چې په مړي اچول کیږي .

هغوی شاید خوشبوي یې ځکه لګوله چی خپل ځان دالله په لاره کې مرګ ته اماده کړي.

(( و روى النسائى وأبو عوانة والحاكم عن أنس بن مالك رضي الله قل :

قال رسول الله ﷺ : (( يُوتي بالرجل من أهلِ الجنة ، فيقولُ اللهُ له : يا ابنَ آدم .كيف وجدت منزلَك؟

فيقول : يارب :خيرُ منزل .

فيقول الله : سل وتمنَّ

فيقول : أسألُكَ أنْ تَردَّني إلى الدنيا، فأُقتلَ في سبيلك عشر مرات!

وذلك لما يرى من فضل الشهادة.[1] )).

---

[1] – رواه النسائي : ٦/ ٣٦ وأبو عوانة في مسنده : ٥/ ٣٣، والحديث صحيح.

له انس بن مالک ﷺ نه روایت دی هغه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل : دجنت یوسړی به راحاضر کړی شي. الله تعالی به ترینه پوښتنه وکړي چی ای دآدم زویه ! تاخپل کور اوځای څنګه وموند ؟

هغه به ووایي ای ربه ! له ټولونه ښه کور دی.

الله ورته وایي له مانه نور وغواړه ؟

هغه وایي : ای الله زه لـه تانـه داسول کوم چې مادنیا ته واپس ولېږه چی ستاپه لاره کی لس کرته ووژلی شم. اوداسوال ځکه کوي چی دشهادت فضیلت یي لیدلې وي .

کله چې دجنت اوسیدونکي دشهادت آرزو کوي حال داچې هغوی لوی کامیابي ته رسیدلي دي او همیشني نعمتونه ورته ورکول شویدي نو ددی دنیاخلک چی په امتحان اوسختي کې اوسیږي څنګه دشهادت دمرګ سوال ونکړي.

ابن اسحاق پخپل سیرت کې لـه محمود بن لبید ﷺ نه روایت کوي هغه وایي چې کله رسول الله صلی الله علیه وسلم داحد غزاته تشریف ویوړه. نو حسیل بن جابر ( دایماني و دحذیفه ابن الیمان پلار و ) اوثابت بن وقش دکلا په یو اوچت ځای کی له ښځو اوماشومانو سره ناست وو.

دغو دواړو یوبل ته وویل موږ ښه بوډاګان یو. په الله قسم چې زموږ عمر دخر دتندې پشان پاتی دی موږ نن یا سبا مړکیدونکی یو. موږ باید خپلې تورې راواخلو اوله رسول الله ﷺ سره یوځای شو. ښایي الله تعالی موږ ته دشهادت مرګ راپه نصیب کړي. هغوی خپلې تورې را واخستلې او دجنګ ډګر ته ورننوتل او مسلمانان دهغوی په راتلو پوه نه شول ثابت بن وقش مشرکانو ووژه اوشهید یې کړ خو حسیل بن جابر دمسلمانانو د تورو لاندی په غلطي کې ووژل شو مسلمانانو هغه نه و پیژندلي اوګمان یې ورباندی کړی چی دابه لـه مشرکانو نه کوم سړې وي.

حذیفه ﷺ خپل پلار ولید چې ووژل شویدي. نو اوازیې وکړ په الله قسم چې دا زما پلار دی. مسلمانانو وویل والله چی موږ نـه وپیژندلـې او موږ فکر وکړ چې داد مشرکانو کوم سړی دی.

حذيفه ﷺ وويل : الله دی تاسې وبښي هغه ډير رحم کوونکی دی. لدینه وروسته رسول الله ﷺ دهغه رضی الله عنه ددیت ورکولو اراده وکړه څکه چې په خطاسره وژل شویدی.

حذیفه ﷺ دهغه دیت پر مسلمانانو صدقه کړه اودابښیګنه یې دمحمد ﷺ په وړاندې زیاته کړه.ابونعیم له عبدالله بن عمر ﷺ عنهما نه روایت کوي چې عمربن الخطاب ﷺ داحدپه ورځ خپل ورور زید ﷺ ته وویل : زما زغره در واخله. زید ورته وویل : زه هم ستاپشان شهادت غواړم، دواړو زغره له شهادت سره دمینې په وجه پرېښودله. اوزید بن الخطاب دیمامې په جنګ کی شهید شو په هغه وخت کې چی عمر په محراب کی شهیدکړی شو رضی الله عنهما .ابن اثیر په اسدالغابه کی‌له سعد بن ابي وقاص ﷺ نه روایت کوي هغه وایي چې ماخپل ورور عمیر بن ابي وقاص لدینه مخکې چی رسول الله ﷺ مونږ بدر جنګ ته ولیږي ولید چې پټ پټ ګرځي. ماورته وویل ای وروره ! ولې پټ پټ ګرځې ؟ راته یې وویل : زه وېرېږم چی هسې نه رسول الله ﷺ ماووینې او راته ووایي چی ته لاورکوټې یې اوزه له الله سره یوځای کېدل غواړم. رسول الله ﷺ ته چې ورووړاندې شو نو هغه ﷺ ورته وویل چې ته وکورټې یې بیرته خپل کور ته لاړشه . عمیر ﷺ په ژړاشو او رسول الله ﷺ ورته اجازه ورکړه.

څرنګه چې دهغه قد ورکوټې و نو ما دهغه دتورې پټې ته غوټه ورکوله چې په زمکه ترینه ونه لګیږي. دبدر په جنګ کې هغه عمروبن عبدود له لاسه ووژل شو. په دی وخت دهغه عمر سپاړلس کاله و.

ابن مبارک دجهاد په باب کی روایت کړیدی چې دصله بن اشیم العدوي ﷺ له قوم نه یوسړي صله ته وویل:

ای دصهباء پلاره ! ما په خوب کی ولیدل چې ماته دشاتو یوګبین اوتاته دشاتو دو ګبینونه درکړل شول. صله ابن اشیم ورته وویل ښه خوب دی لیدلی دی ته به ډیر ژر به دالله په لاره کی دشهادت مرګ ترلاسه کړې او ډیر ژربه زه اوزما زوی هم دشهادت مرتبه ترلاسه کړو.

صله بن اشیم جهاد ته لاړ په دی وخت دهغه عمر ۱۳۰ کاله و، له هغه سره دهغه زوی هم جهاد ته لاړ. اوپه افغانستان کی دسجستان نومی ځای کی له ترکانو سره وجنګیدل.

کله چې جنګ ډیر سخت شو نو صله خپل زوی ته وویل چی بیرته خپل مور ته لاړشه. زوی ورته وویل : پلاره ته دخپل ځان لپاره خیر خوښوې اوماته بیرته راتلو امر کوي ؟ په الله قسم چې مور ته مې له مانه ته زیات ښه یې. پلار یې ورته وویل: بیانو جنګ ته مخامخ شه. هغه ډکر ته ووت اوله دښمن سره له سختې جګړې نه وروسته شهیدشو. بیا صله بن اشیم جګړې ته مخامخ شو ترهغه یې جنګ وکړ چی ترڅوشهید شوی نه و.

دصله اودهغې دزوی دشهادت دمرګ خبردهغه دښځې معاذي ته ورسید. هغې نورو ښځوته وویل : که چیرته تاسې ماته چی الله پاک کوم عزت راکړیدی دهغه دمبارکی لپاره راغلی یاست نو ډیر ښه که نه نواپس لاړې شئ.

ابن ابی شیبه له سعد بن ابراهیم نه روایت کړیدی چی هغوی دقادسیه په ورځ په یوسړي باندی تیرشول دهغه لاسونه اوپښې غوځې کړی شوی وی اوپه وینو کې لت پت وو اوپه خوله یې دا آیت شریف جاري و:

﴿ وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَأُولَٰئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ وَحَسُنَ أُولَٰئِكَ رَفِيقًا ﴾ [ النساء : ٦٩ ].

اوهغه څوک چې دالله او رسول مننه وکړي نوله هغوکسانو سره به وي چې الله پرې لورېنه کړېده چی عبارت دي له پیغمبرانو، شهیدانو اونیکوکارانو څخه اودوی خوراډېر ښه ملګري وي خلکو ترېنه پوښتنه وکړه چې ای دالله بنده! ته څوک یې ؟

هغه وویل . زه دانصارو دقوم یوسړی یم.



# نهه ویشتم باب

# دالله په لاره کې د وژل شوي شهید فضیلت

پوه شه چې شهادت لویه مرتبه اوغټ مقام لري، دادهغه چاپه برخه کیږي چې دلوی عزت خاوند وي په تقدیر کې ورته همیشني برى لیکل شوي، شهیدان په جنت کې له انبیاو سره یوځای اوسیږي. الله تعالی فرمایي :

﴿ وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَأُوْلَئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم مِنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ وَحَسُنَ أُوْلَئِكَ رَفِيقًا ﴾

اوهغه څوک چې دالله اودرسول مننه وکړي نوله هغو کسانو سره به وي چې الله پرې لورېنه کړیده چې عبارت دي له پیغمبرانو صدیقانو، شهیدانو اونیکو کارانو څخه او ددی خورا ډېر ښه ملګري دي.

علماو دشهید دتسمیې په وجه بیلابیلې خبرې کړي دي.

چاویلي دي چې په دی نوم سره ځکه یادیږي چی په دی ګواهي ورکول شویدي چې داجنتي دی.

چاویلي دي په دی خاطر ورته شهید ویل کېږي چی دهغوی روحونه جنت او دارالسلام ته حاضریږي اوهغوی دخپل رب په نزد ژوندي دي. شهید دشاهدپه معنی دی، اودشاهد مطلب دی په جنت کی حاضریدونکي.

امام قرطبي ویلي دي چې همدا صحیح خبره ده.

ابن فارس په ( مقیاس اللغة ) کی ویلي دي شهید دالله په لاره کی وژل شوي ته وېل کیږي اوشهید ورته ځکه وېل کیږي چې پرښتې ورته حاضریږي یاداچې الله پاک دهغه ځان دجنت په بدله کې آخستی دی اوپرهغه یې لازم کړی و چی په عهد باندی

به ودریږي نو شهید دالله په لاره کې دځان په قربانولو ګواهي کوي چې دادی خپل کړی عهد مې ترسره کړ او ګواهي یې دالله جل جلاله له ګواهي سره موافق شو. دالله تعالی په وړاندی دخپل ځان دشهادت په وجه هغه ته شهید ویلی شي، لکه چې په آیت شریف کی راځي .

﴿ إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيَقْتُلُونَ وَيُقْتَلُونَ ﴾ [ التوبة :۱۱۱ ].

بیشکه الله تعالی لـه مؤمنانو نـه دهغـوی ځانونـه او مالونـه دجنت پـه بـدل کـې آخستی دي. هغوی بـه دالله پـه لاره کې قتال کوي دالله دښمنان به هم وژني اوپخپله به هم وژل کیږي.

انباري رحمه الله علیه وایي چې شهید تـه ځکه شهید ویـل کیږي چی الله تعالی اودهغه پرښتې دهغه لپاره دجنت ګواهي ورکوي.

داهم ویـل شویدي چی شهید تـه ځکه شهید ویل کیږي چی کله دهغه روح اوځي نوپـه دی وخـت الله پـاک چی هغـه لپـاره کـوم ثوابونـه او عـزت تیـار کـړیدی هغـه تـه وړاندی کولې شي او هغه یې ګوري.

اوداهم ویـل شویدي چی شهید ته ځکه شهید ویل کیږي چې لـه هغه سره ګواه وي چې دهغـه پـه شـهادت ګواهي ورکوي اوهغـه دده وینه ده چی کله دقیامت پـه ورځ شهید پاڅیږي نو لـه رګونونه به یې تازه وینه بهیږي.

الله تعالی په شهیدانو ډېر لوی انعامونه کړیدی او ځانګړی مرتبې او مقامونه یې ورته ورکړیدي.

دالله تعالی لـه دغـو لوړینو اوپیرزونو څخه یودادی چی هغوی تـه یې پخپـل نـزد ژوند ورکړي او دجنت کومې میوې یې چی خوښي وي ورته ورکوي یې .

الله تعالی دشهیدانو په باره کې فرمایي :

﴿ وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتٌ بَلْ أَحْيَاءٌ وَلَكِن لَّا تَشْعُرُونَ ﴾ [ البقرة : ۱۵٤ ].

کوم خلک چې دالله په لاره کې شهیدان شویدي هغوی ته مړه يې مه وایاست بلکې هغوی ژوندي دي خوتاسې پرې نه پوهېږئ.

همدغه راز الله تعالی فرمایي:

﴿وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ۝ فَرِحِينَ بِمَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ وَيَسْتَبْشِرُونَ بِالَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُوا بِهِمْ مِنْ خَلْفِهِمْ أَلَّا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ۝ يَسْتَبْشِرُونَ بِنِعْمَةٍ مِنَ اللَّهِ وَفَضْلٍ وَأَنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ [ال عمران: ۱٦۹-۱۷۱]

اوهغه کسان چې دالله په لیار کې شهیدان شویدي مړه يې مه ګڼئ، هغوی ژوندي دي اودرب په وړاندی روزي ورکول کیږي. په هغه څه خوښ دي چې الله پاک دخپلې لورینې له مخې ورکړیدي

اودهغوکسانو په هکله زیرې آخلي چې له دوی وروسته پاتی اوتراوسه ورسره ندي یوځای شوي. نه به پرې ډار وي اونه به غمژن کیږي. دالله پاک په نعمت اومهربانۍ خوشاله اوېدې خبره به هم خوښ وي چې الله پاک دمومنانو اجر نه ضائع کوي.

((عن ابن عباس رضی الله عنهما، قل: قل رسول الله صلی الله علیه وسلم الشهداء علی بارق نهرٍ بباب الجنَّةِ فی قبة خضراء یخرج علیهم رزقهم من الجنة بکرةً وعشیًّا))[1]

له ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دی هغه ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ فرمایلی دي شهیدان دجنت د دروازی خواکی دویالې په غاړه په شین محل کی وي اوهغوی ته له جنت نه سهار اوبیګاه رزق راوړل کیږي.

[1] - رواه احمد: ۱/ ۲٦٦. والحاکم ۲/ ۷٤، وابن شیبه ٥/ ۲۹۰، والحدیث.

(( وروى الترمذى والحاكم عن جابربن عبدالله رضي الله عنهما قال: نظرَ إليَّ رسول الله صلى الله عليه وسلم ذات يوم، فقال: ياجابر: مالي أراك مهْتَمَّاً؟

قُلتُ: يارسول الله : استشهد أبى ، وترك عليه ديناً وعيالاً.

قال: ألا أخبرُك ؟ ماكلَّمَ الله أحداً إلاَّ من وراء حجاب، وإنه كَلَّمَ أباك كفاحاً. [ والكفاح : المواجهة ] فقال: سَلْني أُعطك ؟

قال: أسألُكَ أن أُردَّ إلى الدنيا، فأقتل ثانية!

فقال الرب : إنه سبق مني أنهم إليها لايرجعون.[1] )).

له جابربن عبدالله رضي الله عنهما نه روايت دی هغه وايي چې يوه ورځ ماته رسول الله ﷺ وکتل اوراته يې وويل: ای جابره زه تاولی خفه وينم؟

ماوويل : يارسول الله ﷺ . زماپلار شهيد شِويدی او هغه قرض اوعيال راته پريښی دی.

هغه ﷺ راته وفرمايل : ايا زه تا خبر نکړم چی نن ورځې پورې الله تعالی چې چاسره خبرې کړې دي نو دپردې ترشايې کړيدي اوالله تعالی ستاله پلار سره بی له پردی نه مخامخ خبرې کړيدي؟ الله تعالی ورته وفرمايل له مانه وغواړه چې درېې کړم؟ هغه رضی الله عنه وويل له تانه سوال کوم چی مابيا دنيا ته واپس وليږئ چی دويم ځل بيا ستاپه لاره کې ووژل شم.

الله تعالی ورته وفرمايل : دازما مخکينی فيصله ده چی له مرګ نه وروسته څوک دنيا ته نشي تللې.

---

[1] - رواه الترمذى فى التفسير : ٥/ ٢٣٠ . والحاكم في معرفة الصحابة :٣/ ٢٠٣ واسناده حسن.

علماو دشهيد دژونددمانا په باره کې اختلاف کړيدی قرطبی رحمه الله وايي چې دشهيدانو ژوند ثابت او حقيقي ژوند دی لکه چی الله تعالی دهغوی د ژوند په باره کې مونږ ته خبر راکړيدی. دزياترو علماو دارايه ده چې هغوی په جنت کې ژوندي دي او دجنت روزي ورته ورکول کيږي.

لکن هغوی ته په ټولو خلکو باندې په جنت کې په رزق سره فضيلت ورکول شويدی ګويا هغوی دايمي ژوندي دي. ځينو علماو ويلي دي چې دهغوی روحونه په قبرونو کې دهغوی جسدونو ته واپس کول شي اوهغوی په باقاعده ډول په قبرونو کې ګټه اوچتوي.

حضرت مجاهد رحمه الله ويلي دي چې شهداوته دجنت له ميوو نه رزق ورکول کيږي او دهغه بوی محسوسوي ددی سره سره چې په جنت کی نه دي.

خوصحيح اوراجح: خبره داده چې دشهيدانو روحونه دشنومارغانو په ججورو کې وي اوپه جنت کې دي اوهغوی ۽ه جنت کی خوراک څښاک کوي. اوپه دې باندې آيتونه او احاديث چی وړاندی تيرشويدي دلالت کوي.

دشهيدانو مرتبې دالله په نزد يوبرابرې ندي بلکی هغوی په مرتبو او مکانونو کې تفاوت اوفرق لري. دغه تفاوتونه دهغوی په اخلاص کې دتفاوتونو دقرباني ورکولو تفاوتونو اوله شهيد کيدونه مخکې دنيکو اعمالو په وجه دي. له شهيدانو نه ځينې هغه دي چې روحونه يې دشنو مارغانو په ججورو کې وي جنت کې يې چې چېرته خوښه شي هلته ځري او شپه هغو قنديلونوته راوړي چې دعرش نه لاندی زوړند دي.

له شهيدانو ځينې هغه دي چی روحونه دجنت دروازی ته نژدی نهر په غاړه په محل کی اوسيږي اوله جنت نه ورته سهار اوماښام روزي راځي.

له شهيدانو نه ځينې داسی دي چی له ملائکو سره په جنت کی هر طرف وغواړي الوتنه کوي.

له شهيدانو نه داسی هم شته چې په جنت کی په پالنګونو باندی ناست وي.



## زمکه د شهیدانو جسدونه نه خرابوي :

(( روی مالك وابن سعدعن عبدالرحمن بن أبي صعصعة ، أنه بلغه أنَّ عمروبن الجموع وعبدالله بن عمرو الأنصاريين استشهدا يوم أحد ، فوضعهما رسول الله ﷺ في قبرٍ واحد وفي خلافة معاوية بن أبي سفيان رضي الله عنهما جاء السيل فأخذ جزاء من قبرهما ، فحفر عنهما ليغيَّرا من مكانهما، فوجدا لم يتغيرا، كانما ماتا بالأمس.

وكان أحدهما قد جرح فوضع يده على جرحه ، فدُفن وهو كذلك ، فأميطت يده عن جرحه ، ثم أرسلت ، فرجعت كماكانت!

وكان بين يوم أحد وبين يوم حُفِرَ عنهما ست وأربعون سنة !.[1] )).

مالک اوابن سعدله عبدالرحمن بن ابی صعصه نه روایت کوي ، هغه ته دا خبر ورسید چی عمروبن الجموع انصاري او عبدالله بن عمرو انصاري داحد دجنگ په ورځ شهیدان شول، رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه دواړه په یوقبر کې کیښودل اود معاویه بن سفیان ﷺ دخلافت په زمانه کې لوی سیلاب راغی اودهغوی دقبرونو څه حصه یې ورانه کړه. خلکو دهغوی دواړو قبرونه وکاږل چی دهغوی جسدونه له دی قبرنه وباسي. ګوري چی جسدونه یې روغ رمټ دي او داسې ښکاره کیدل ګویا پرون مړه شویدی. له هغونه یو زخمي و اوخپل لاس یې په زخم باندی ایښی و او په همدې حالت کې خښ کړی شوی و دهغه لاس یې دزخم له سرنه لری کړی شو با پریښودلې شو هغه بیرته پخپل زخم باندی کېښود.

داحد دجنګ اودغه وخت ترمنځ ۴۶ کاله تیرشوي وو.

---

[1] - موطا مالك: كتاب الجهاد :۲/ ٤٧٠ ، وطبقات ابن سعد: ۳/ ٥٦٢-٥٦٣.

(( وروى ابـن الـمبارك عـن جابـربن عبدالله رضي الله عنهما قل: لما أراد معاويـةُ رضـي الله عـنه أن يُجـري الكظامـة في أحـد ، قـل:من كان لـه قتيلٌ فـليأت قـتيله ، فأخـرجهم رطابـاً يتثنَّوْن! وأصابتِ المسْحاةُ رِجْل رَجُلٍ منهم فانفطرت دماً .[1]))

له جابربن عبدالله رضي الله عنهما څخه روايت دی هغه وايي: کله چی معاويه ﷺ په احد کی دکظامه نهر دجاري کولو اراده وکړه نو خلکوته يې وفرمايل : که دچادلته مړي ښخ وي نو هغوی دې خپل خپل مړي راوباسي هغوی چی مړي راوويستل نو بالکل تر اوتازه وو. ديومړي په پښه کودالـه ياکولنګ ولګيده نو دهغه لـه پښې نه وينې روانې شوې.

(( وروىعبدالرزاق في المصنف عـن قيس بن أبي حازم قل: روى بعض أهـل طـلحة بـن عـبيدالله رضي الله عنه ، أنه رآه في المنام، فقال لـه طلحة : إنكـم دفنـتموني في مكـانٍ قـد آذاني فيه الماءُ، فحوِّلوني عنه !فأخرجوه كأنه سلفة (هي جلد رقيق ) لم يتغير منه شي ء، إلا شعراتٌ من لحيته .[2] )).

له قيس بن ابي حازم نه روايت دی هغه وايي: دطلحه بن عبدالله دکور يوسړي خوب وليد چی طلحه ورته ويل: تاسی زه په يوداسی ځای کی خاوروته سپارلی يم چی اوبه ماته تکليف رسوي تاسې مالدی ځاینه بل ځای ته يوسئ. مونږ هغه وويست دهغه ځرمن تر او تازه و. دږېرې دځو ويښتانو نه علاوه نور ټول صحيح سالم و.

(( وروى الـحاكم في المستدرك عـن ابـنة ثابت بن قيس بن شماس رضي الله عنه ، أنه خرج مع المجاهدين إلى اليمامة فقاتل فيها حتى لقي الله شهيداً.

---

[1] -الجهاد لابن المبارك : ص ٨٤ ومصنف عبدالرزاق :٥/ ٢٧٧.

[2] _ مصنف عبدالرزاق : كتاب الجهاد : ٥/ ٢٧٧

وكان عليه درعٌ نفيس، وبعدما استُشهد مرَّبه رجلٌ فأخذ درعه!

وبينما رجلٌ من المسلمين نائم إذ أتاه ثابتٌ في منامه ، فقل له: إني موصيكَ ، بوصية، فإيَّاكَ أن تقولَ: هذه حُلُمٌ فتضيِّعُها.

إني لما قُتلتُ بالأمس ، مرَّبي رجل من المسلمين ،فأخذ درعي، ومنزله في أقصى الناس، وعند خيمته فرس يستنُّ في طوله [يرعى ضمن حبله ] وقد كفأ على الدرع بُرْمَةً [ هي القدر] وفوق البرمةِ رحْل [ الذي يوضع على الجمل ] فائت الأمير خالدَبن الوليد،فمره أن يبعث إلى درعي فيأخذه ، فإذا قدمتَ المدينة على خليفةِ رسول الله صلى الله عليه وسلم فقل له: إنَّ عليَّ من الدين كذا وكذا، وفلانٌ من رقيقي عتيق! وإياك أن تقول: هذا حُلُمٌ فتضيِّعه!!

وفى الصباح أتى الرجلُ خالدبن الوليد رضي الله عنه فاخبره بذلك ، فبعث خالد إلى الدرع، فأتى به. ثم أُخبر أبوبكر رضي الله عنه بو صيته ، فأجازها وأنفذها.

ولانعلم أحداً أجيزتْ وصيته بعد موته إلاَّ ثابت بن قيس رضى الله عنه.[1] ))

حاكم په مستدرک کی دثابت بن قیس بن شماس له لورنه روایت کوي چی هغه له مجاهدینو سره دجهادلپاره ووت هغه قیمتي زغره اغوستی وه کله چی شهید شو نویوسړی دهغه څنګ ته ورغی او زغره یې ترینه واخستله. له مسلمانانو نه یوسړي

[1] - المستدرك للحاكم : كتاب الصحابة :٣/ ٢٣٥. ومجمع الزوائد للهيثمي:٩/ ٣٢١- ٣٢٢ ).

ثابت ابن قیس ابن شماس په خوب کې ولید چې ورته یې وویل چی زه تاته یو وصیت کوم هسې نه چې تش خوب یې وګڼې اوځه خیال یې ونکړې. کله چی زه پرون ووژل شوم نوزماخواته یومسلمان سړی راغی اوهغه له مانه زما زغره واخستله دهغه ځای دخلکوپه آخري حصه کی دی. دهغه دخیمې په څنګ کې یو اس په رسۍ کی تړل شویدی اوپه رسۍ کې دننه ځري هغه زماپه زغره باندی یوه کتوه ایښې ده او په کتوه باندی یې داوښ کجاوه ایښې ده ته دمسلمانانو امیرخالد بن ولید ته لاړشه او ورته ووایه چې څوک زما زغری پسې ولیږي اوترینه وایې خلي. اوکله چی مدینې ته لاړې نو دمسلمانانو خلیفه ته ووایه چې پرما دخلکو دومره دومره پورونه دي، اوفلانکی غلام می آزاد دی.چیرته داونه وایې چې زه داهسې یو خوب دی اوپرواییې ونکړې !! او ضائع به یې کړي .

سهار ته داسړی خالدبن ولید ته راغی اودهغه له خبرونه یې خبرکړ. خالد رضي الله عنه دهغه زغرې پسې یوسړې ولیږه نو هغه یې راوړ بیادهغه وصیت ابوبکرصدیق رضی الله عنه ته بیان کړ نو هغه رضي الله عنه دهغه وصیت نافذ او عمل یې وربانديې وکړ ، مونږ داسې څوک نه پیژنو چې له مرګ نه وروسته به یې وصیت نافذ شوی وي مګر دثابت بن قیس رضي الله عنه له مرګ نه وروسته یې وصیت نافذ کړی شو.

دیرشهیدان حکماً ژوندي دي نوځکه دهغه جنازې لمونځ نه اداکیږي لکه حساچې څوک ژوندی دی دهغوی پشان علماوشهیدانو ته غسل ورکولو په باره کې اختلاف کړیدی :

امام مالک، امام شافعی، امام ابوحنیفه او امام ثوري رحمهم الله فرمایلی دي چې شهیدانو ته به غسل نه ورکول کیږي او وینه به یې نه وینځل کیږي.

(( روی البخاري عن جابربن عبدالله رضي الله عنهما ان النبی ﷺ امر بدفن شهداء احدبدمائهم، ولم یصل علیهم لم یغسِّلوا [1] )).

---

[1] - رواه البخاري فی المغازي : ۵/ ۳۹.

بخاري لـه جابر بن عبدالله رضی الله عنهما نه روایت کړیدی چی نبي صلی الله علیه وسلم داحد دشهیدانو لپاره پخپلو وینو کی دخښولو حکم وکړ پر هغوی نه دجنازې لمونځ ولوست اونه یې ورته غسل ورکړ . دنه وینځلو علت دادی چی دهغوی وینه دقیامت په ورځ په داسی حالت کې راځي چې رنګ به یې دوینو وي اوبوي به یې دمشکو وي.

حسن رحمه الله اوابن المسیب رحمه الله وایي چې شهیدانو ته غسل ورکول کیږي غوره قول لومړنی دی اوپه دی باندې لویو علماو قول کړیدی. شهیدانو ته غسل نه ورکول کیږي اوپخپلو وینو کې خاوروته سپارل کیږي.

علماوپه شهیدانو باندې دجنازې دلمونځ دلوستلو په باره کې هم اختلاف کړیدی امام مالک، امام شافعی او امام احمد رحمهم الله وایي چې پرشهیدانو دجنازې لمونځ لوستل پکارنه دي. هغوی دجابر رضي الله عنه هغه حدیث ددلیل په توګه وایی چی وړاندی تیرشویدی او په هغه کې دا راغلي دي .

چی رسول الله صلی الله علیه وسلم داحدپه شهیدانو دجنازې لمونځ ونه لوست دکوفی، بصری او دشام فقهاء وایي چې دشهیدانو جنازې لمونځ دی ولوستل شي خولومړنی قول راجح دی.

شهیدانو ته نه غسل ورکول کیږي اونه هم دجنازې لمونځ یې لوستل کیږي لیکن داحکم دهغو شهیدانو لپاره دی چی لـه کفارو سره په جنګ کې وژل شوي او شهید شوی وي. مګرکوم شهید چې دجنګ په میدان کې زخمي شوی وي اوبیاله هغه ځای نه په زخمي حالت کې بل ځای ته وړل شوی وي . دوا درمل یې شوی وي ،خوراک څښاک یې کړی وي او لدینه وروسته دهمدغه زخم په وجه مړ شوی وي نوداسی شهید ته غسل هم ورکول کیږي اوجنازی لمونځ یې هم لوستل کیږي. لکه چی اصحابو کرامو دعمر بن الخطاب رضي الله عنه سره وکړ کله چی هغه په نیزه ووهل شو نوغسل یې هم ورته ورکړ اودجنازی لمونځ یې هم ولوست حال داچی دنیزی په زخم مړ شوی و.



# فصل

## د شهیدانو فضائل

دالله په نزد دشهیدانو ګڼ فضیلتونه دي ، رسول الله ﷺ دهغوی په اړه مونږ ته معلومات راکړیدی.

**لومړي** : هرڅوک چې په جنت کی داخل شي نو هغه دانه خوښوي چې له دې نه ووځي اګرچې په دنیاکې چی څومره شیان دي هغه ټول ورته ورکړی شي. مګر شهید داهیله کوي چې الله تعالی بیرته دنیاته ولیږي ترڅو یوځل بیادالله په لاره کې ووژل شي داځکه چې هغه دشهادت فضیلت اودشهید کرامت او عزت لیدلې وي.

(( روى البخاري عن أنس بن مالك رضي الله عنه ، أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال : (( مامن أحد يدخل الجنة ، يحب أن يرجعَ إلى الدنيا ، وأنَّ له ما على الأرض من شيء ، إلاَّ شهيد، فإنه يتمنىَّ أن يرجعَ إلى الدنيا ، فيُقتَلَ عشر مرات ، لما يرى من الكرامة .[1] )).

له انس بن مالک رضي الله عنه نه روایت دی هغه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل : هرڅوک چی په جنت کی داخل کړی شي له هغوی نه هیڅ یو دانه خوښوي چی دنیا ته بېرته راشي اوڅه چی په دنیا کی دي هغه ورته ټول ورکړې شي مګر شهید تمنا کوي چی دنیاته راشي اولس کرته ووژل شي . داتمنا له دی‌وجهی نه کوي چې هغه دشهید عزت لیدلی وي .

د مسلم دیو روایت په آخر کې دا الفاظ راغلي داتمنا دشهادت دهغه فضیلت په وجه کوي چی لیدلی یې دی.

---

[1] – رواه البخاري فی الجهاد :۳/ ۳۰۸. ومسلم فی الأمارة :۳/ ۱۴۹۸.

(( روى النسائى وابو عوانه انس ابن مالك رضى الله عنه ان رسول الله قىل " يو تى بالرجل من اهل الجنة فيقول الله له يا ابن ادم كيف وجدت منزلك . فيقول اى رب خير منزل . فيقول سل وتمن . فيقول واما اسألك واتمنى . اسالك ان تردني الى الدنيا فاقتل فى سبيلك عشر مرات .. لمايرى من فضل الشهادة "[1] ))

له انس بن مالک رضى الله عنه نه روايت دى هغه وايي چې نبي اكرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي : يو جنتي به راوستل شي الله جل جلاله به ترې پوښتنه وکړي خپل ځاى ( جنت ) دى څنګه بيا موند . هغه به ورته ووايي اى زما ربه ډير ښه او غوره ځاى دى . الله جل جلاله به ورته ووايي كه څه سوال او آرزو لرې نو ويې كړه . هغه به ورته ووايي دڅه شي به سوال او آرزو وكړم . هو داسوال درنه كوم چې ته ما بيا دنيا ته واپس كړه ترڅو ستاپه لار كې لس ځله ووژل شم او داخبره به له دې وجهې نه كوي چې دشهادت فضيلت به يې په ستركو ليدلي وي .

(( وروى البخاري ومسلم عن أبي هريرة رضي الله عنه، عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قل: (( ... والذي نفس محمدٍ بيده لوددتُ أني أغزو في سبيل الله فأقتل، ثم أغزو فاقتل، ثم أغزو فأقتل ...)).[2]

له ابى هريره رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي چى رسول الله ﷺ وفرمايل :

---

[1] _فضل الشهادة رواه النسائي فى الجهاد٦/ ٣٦ وابو عوانه فى المسند٥/ ٣٣ والحديث صحيح.

[2] - رواه البخاري فى الجهاد ٤/ ١١. ومسلم فى الاماره ٣/ ١٤٩٥.

په هغه ذات مى قسم چى دمحمد نفس دهغه په قبضى دقدرت كى دى. زه دزړه له كومى داخوښوم چې دالله په لاره كې غزا وكړم او ووژلى شم. بيا غزا وكړم او وژلې شم بيا غزا وكړم او ووژلې شم.

(( وروى النسائي وأحمد عن محمدبن أبي عميرة المزني رضي الله عنه، أنَّ رسول الله ﷺ قال: مامِن نفسٍ مسلمةٍ يقبضها ربُّها تحبُّ أنْ ترجعَ إليكم، وأنَّ لها الدنيا ومافيها، غيرَ الشهيد )).

وقال صلى الله عليه وسلم : (( لأَنْ أقتلَ في سبيل الله أحبُّ إليَّ من أن يكونَ لي أهلُ الوبر والمدر.[1] ))

له محمدبن ابي عميرة المزني رضي الله عنه څخه روايت دى چى رسول الله ﷺ وفرمايل: دكوم مسلمان روح چى الله تعالى قبض كړي هغه بيا دانه خوښوي چى بيرته تاسوته راشي اگركه هغه ته دنيا اوپه دنيا كې چى څومره شيان دي وركړى شي له شهيد نه علاوه.

اونبى كريم ﷺ فرمايلى دي: كه زه دالله په لاره كى ووژل شم نو داماته لدينه محبوب دى چى دخيمو، قريو او ښارونو خلك زمالپاره وي. ( يعنې په ټوله دنيازما باچائي شي )

## دويم : دالله په لاره كى شهادت دبنده هغه گناهونه رژوي چى دبنده اودالله ترمنځ وي .

(( روى مسلم عن أبى قتادة الأنصاري رضي الله عنه أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قام فيهم ، فذكر: أنَّ الجهادَ في سبيل الله والإيمانَ بالله افضل الأعمال.

[1] - رواه النسائي فى الجهاد : ٦/ ٣٣. وأحمد: ٤/ ٢١٦، وسنده حسن.

فقـام رجـلٌ فقـال: يارسـول الله : أرأيت إن قتلتُ في سبيل الله ، أتكفَّرُ عني خطايايَ ؟

فقـال رسـول الله صـلى الله عليه وسلم : نعم إن قتلتَ في سبيل الله، وأنت صابرٌ محتسب مقبلٌ غير مدبرا ثم قال رسول الله ﷺ : كيف قلت؟

قل: أرأيتَ إن قتلتُ في سبيل الله ، أتكفَّرُ عني خطاياي ؟

فقـال رسـول الله ﷺ : نعـم. وأنتَ صابرٌ محتسبٌ مقبلٌ غيرمدبر. إلاَّ الدَّين، فإنَّ جبريلَ قال لي ذلك [1] )).

دابی قـتـاده الانصاري رضي الله عنـه نـه روايت دی چی رسول الله ﷺ زمونږ په منځ کې ودريد او ويی فـرمايل: دالله په لاره کې جهـاد اوپـه الله بـاندی ايمـان لـه غـوره اعمـالو څخـه دی يوسړی پاڅيد او ويی ويل: يارسول الله صلیا لله عليه وسلم! ماپوه کړه چې کـه چيرتـه زه دالله پـه لاره کې ووژل شم ايا زمادګناهونو لپاره کفاره ګرځي؟ رسول الله ﷺ وفـرمايل : هـو کـه چيرتـه تـه دالله پـه لاره کې ووژل شـی او تـه صـابر ، دثواب اميدوار، مخامخ جنګيدونکې يې او شا اړوونکې نـه يې. بيارسول الله ﷺ ورتـه وفرمايل: تاڅنګه وويل :

هغه رضي الله عنـه وويل: ماتـه خبر راکړئ چی کـه چيرتـه زه دالله پـه لاره کې ووژل شم نو ايا زما ګناهونه ختميږي؟

رسول الله ﷺ وفـرمايل هـو. پـه داسی حـال کې چې تـه صبرکوونکی، دثواب اميد کوونکې مخامخ جنګيدونکې اودښمن تـه شـا نـه اړونکې واوسي، خودبـل چـا پـور درتـه نـه بخښـل کيږي څکـه چې جبريل امين ماتـه همداسي ويلي دي.

---

[1] - رواه مسلم فی الاماره ۳/ ۱۵۰۱.

دلته لـه دین ( قرض ) نه مراد دخلکو ټول حقوق دي،لکه غصب، په ناروا طریقې سره دبل چا مـال آخسـتل ، دچاوژل، زخمي کول، غیبت، چغلي، په چاملنډې او استهزاء کول اوداسې نور.

عـن عـبدالله بـن عمرو بـن العـاص رضي الله عـنهما ، ان رسـول الله صلى الله علـيه وسلم قال :

یغفـر للشهید کل شيءٍ الاّ الدین. وفي روایة اخری قل: القتل في سبیل الله یکفرکل شي الا الدین. .( رواه مسلم ). في الامارة ۳/ ۱۵۰۳

له عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما نه روایت دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چی شهید لپاره له قرض نه علاوه نور ټول شیان بخښل کیږي اوپه یو بل روایت کی دي چی رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : دالله په لاره کی وژل کیدل له قرض نه علاوه ټول شیان بخښي .

امام قرطبی رحمه الله پخپل تفسیر کې ویلي دي چی هغه دین ( قرض) چی مقروض او پور وړی له جنت نـه بندوي. ( والله اعلم ) هغه دین دی چی وصیت یې نه وي کړی چی دا داین ته ورکړئ سره لدینه چې پخپله ترکه کی کافي مال په میراث کی پریښې وي یاهغـه پور چی پـه ورکولـو بـاندی قادروي خو هسی یې ځنډوي او ټال متول پکی کوي .

یاهغـه پورونـه دي چی دبی وقوفـی اواسراف لپاره آخستي وي اوله اداکولو نه پرته مړشوې وي خوکـه چاد واجب حق د اداکولو په خاطر له چانه څه پور واخست مثلاً له لوږی نه دځان خلاصولو یادډیرې تنګسیا په خاطر پورې آخستی وي،

خو بیا یې په اداکولـو بـاندی نـه وي قـادر څکه چې پـه وس کې یې څه نه وي اوپه داسې حـال کـي مـرګ ورتـه راشي چې دایې په اداکولـو نه وي قـادر، نو دا سړی که شهید شي نو الله به یې لـه جنت نـه نـه بندوي اصل خبره داده چی دا دول پورونه د مسلمانانو پـه حـاکـم بـاندی لازمي دی چې ادایې کړي یادی لـه صدقاتو نـه ورکړي. چی یادی د قرضدارانو لـه سهم نه ورکړي یادی فی د مال نه اداکړي.

اوپه دی باندې دلیل د حضرت محمد ﷺ داحدیث دی:

(( روى البخاري ومسلم عن أبي هريرة رضي الله عنه ، عن النبيُّ صلى الله عليه وسلم قال: (( ما من مسلم إلاَّ وأنا أولى الناس به في الدنيا والآخرة! إقرءوا إن شئتُمْ قوله تعالى: ﴿النبىُّ أولى بالمؤمنين من أنفسهم﴾ [ الاحزاب:٦] فإيُما مومنٌ مات وترك مالا فليرثه عصبته ، ومن ترك دينًا أو ضياعاً فليأتني فأنامولاه. [١] )).

له ابى هريره رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي چې نبى كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل:

زه هر يو مسلمان ته په دنيا اوآخرت كې له ټولو خلكو څخه ډير وړيم ( يعني زه دهر مسمان ددنيا او آخرت په مصالحو باندى قائم اوزه يې ولي يم ). كه غواړئ دالله تعالى داقول ولولئ چې فرمايي : ( النبىُّ أولى بالمؤمنين من أنفسهم (الاحزاب:٦) نبى مومنانو ته له خپلو ځانو څخه ډير ورنژدى دى. پس هريو مومن چې مړشي اومال پريږدي نودهغه عصبه دى ترينه داميراث واخلي. اوكوم مسلمان چې مړشي اوشاته يې قرض او اهل وعيال پريښې وي نوماته دى راشي زه يې مولايم ( يعنې زه يې مرسته كوم).

اوكه چيرته حاكم پاچا دهغه پور ورنكړ نو الله تعالى پور وركوونكى رضاكوي اودخپل پور ورته بخښي.

(( روى البخاري عن أبي هريرة رضي الله عنه ، عن رسول الله ﷺ قل: من أخذ اموال الناس يريد أداء ها أدى الله عنه ، ومن أخذها يريد إتلافها أتلفه الله . [٢] ))

---

[١] - رواه البخاري في التفسير : ٦/ ٢٢ ومسلم في الفرائض : ٣/ ١٢٣٧..

[٢] - أخرجه البخاري فى الاستقراض : ٣/ ٨٢.

له ابی هریره رضي الله عنه نه روایت دی چی رسول الله ﷺ وفرمایل: چاچی‌له چانه پدی نیت او اراده مال واخست چی بیرته به یې ورته ورکوي نو الله جل جلاله دهغه له طرف نه (په دنیاکې) اداکوي اوچاچی پدی نیت واخست چی بیابه یې نه ورکوي نو الله هغه ضائع کوي. (یعنې مال یې له لاس نه بیایې هیڅ فائده نشي ترې اخستې او قرض ورباندی پاتې کیږي) مخکې چی کومه خبره وشوه چې چاد تنګلاسی او مجبوریت له کبله له چانه پور آخستې وي اوبیاله ورکولو نه وړاندی شهیدشي نوپه جنت کی یې له داخلیدونه نه منع کوي په دی خبره باندې درسول الله صلی الله علیه وسلم هغه حدیث دلیل دی چی دجابر پلار عبدالله بن حرام رضي الله عنه داحدپه جنګ کې شهیدشوی و اوپرهغه دبل چاپور و. محمدﷺ دهغه زوی جابر ولید چې دخپل پلار دپور په باره کې غمګین و، نورسول الله صلی الله علیه وسلم هغه ته خبر ورکړ چی الله تعالی ستاله پلار سره مخامخ خبری کړیدي. که چیرته هغه دجنت په دروازه کې په جنت کې له داخلیدو نه منع شوي وای نو هغه ته به دا دومره لویه مرتبه نه وه حاصله شوې.

## دریم: ملائکې پخپلو وزرو په شهید باندې سوری کوي.

((روی البخاري ومسلم عن جابر بن عبدالله رضي الله عنهما قل: جيء بأبي إلى النبی ﷺ قد مثِّلَ به، فوضع بین یدیه، فذهبت أكشف عن وجهه، فنهاني قوم!

فسمع صوت نائحةٍ فقیل: ابنةُ عمرو، أو اختُ عمرو.

فقل ﷺ لِمَ تبکین؟ - أو: لاتبکي- مازالت الملائکة تُظِلُّه باجنحتها.[۱]))

له جابر رضي الله عنهما نه روایت دی چی کله زماپلار محمدﷺ ته راوړلی شو او هغه مثله کړی شوی و، نوزه لاړم چی دخپل پلار مخ لوڅ کړم نو قوم زه منع کړم په

---

[۱] - رواه البخاري في الجهاد :۳/ ۲۰۸. ومسلم في فضائل الصحابة :٤/ ١٩١٧.

دی وخت دویرکوونکي آواز واوریدی شو، چا وویل چی داد عمرو لور یاخور ده. په دی وخت رسول الله ﷺ ورتـه وفـرمایل: ولی ژاړې؟ بیـا یـې ورتـه وفـرمایل مـه ژاړه تراوسه پورې خوپرښتو په دوی باندی پخپلو وزرو سوری کړیدی.

## څلورم : خاص دالله په لاره کې شهادت په جنت کې دداخلیدو قطعی وجوب ثابتوي.

الله تعالی فرمایلی دي :

﴿ان الله اشترى من المؤمنين انفسهم واموالهم بان لهم الجنة يقاتلون﴾

[ التوبة : ۱۱۱].

بیشکه الله تعالی لـه مؤمنانو نه دهغوی ځانونه اومالونه دجنت په بدل آخستي دي. دالله په لاره جنګیږي.

همدغه راز الله تعالی فرمایلی دي :

﴿والَّذيـن قتـلـوا في سـبيل الله فلنْ يضلَّ اعمالَهُمْ ۝.سيهديهم ويُصْلِحُ بالهم ۝. ويدخِلُهُمْ الجنَّة عرفها لهم ﴾ [ محمد: ٤-٦ ].

ترجمه: او څوک چې دالله پـه لاره کی وژلی شـویدي هیڅکله بـه یې کړنه ابته نشي ډیر ژربه الله ورتـه لیاره وښايي اوحال به یې ښه کړي. او هغو جنتونو ته به ننه باسي چی لـه پخوانه یې ورته په ګوته کړیدی.

(( روی الـبخاري عن سمرة بن جندب رضي الله عنه قل: قل رسول الله ﷺ "رأيـت الـلية رجلين اتياني، فصعدابي الشجرة ، فأدخلاني داراً هي أحسنُ وأفضل، لم أر قط احسن منها.. وقالالي: أما هذه الدار فدار الشهداء".[1] )).

---

[1] - رواه البخاري فی الجهاد : ۳/ ۲۰۲.

له سمره بن جندب رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي : رسول الله ﷺ وفرمايل : مانن شپه په خوب کی کسان وليدل هغوی زماخواته راغلل. هغوی دواړو زه ونی ته پورته کړم بيايي زه په يو داسی کورکی دننه کړم چی ډېر ښه اوښکلې و. ما وړاندې لدينه مخکې بل داسې ښايسته کور چيرته نه وليدلې. هغوی دواړو ماته وويل داد شهيدانو کور دی.

(( وروى البخاري ومسلم عن أبي هريرة رضي الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ (( يضحكُ الله لرجلين، يقتل أحدُهما الآخر، كلاهما يدخل الجنة !

قالو: كيف يارسول الله؟

قال: يقتلُ هذا فيلج الجنة ! ثم يتوبُ الله على القاتل، ويهديه إلى الإسلام، ثم يجاهد في سبيل الله، فيستشهد ! ))[1]

له ابی هريره رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل:

الله دهغو دوه کسانو لپاره خاندي چې يو کس ولګيږي بل کس ووژني. اوبيا دواړه په جنت کې داخل شي. اصحابو پوښتنه وکړه يارسول الله داڅنګه ؟رسول الله ﷺ وفرمايل: هغه داسی چی کوم يو يې چی ووژه هغه جنت ته ځي بيا الله قاتل ته دتوبې او اسلام هدايت کوي اوهغه مسلمانيږي هغه بيا دالله په لاره کی جهاد کوي او شهيديږي.

(( وروى البخاري عن أنس بن مالك رضي الله عنه ،أنَّ أمَّ الربيع بنت البراء – وهي أم حارثة بن سراقة – أتت النبيَّ ﷺ ، فقالت : يارسول الله : ألا تحدِّثني عن حارثة– وكان قد قتل يوم بدر. أصابه سهمٌ غَرْب – فإن كان في الجنة صبرت، وإن كان غيرذلك اجتهدت عليه بالبكاء.

---

[1] – رواه البخاري في الجهاد :۳/ ۲۱۰. ومسلم في الإمارة :۳/ ۱۵۰۳.

فـقـل: يـا أمُّ حـارثـة: إنهـا جـنان في الجـنة! ، وإنْ ابنَكِ أصاب الفردوس الأعلى ... ))

وفي لفـظٍ اخر قل: (( أهَبِلْتِ؟ أجنةٌ واحدةٌ هي؟ إنها جنان كثيرة ، وإنه في الفردوس الأعلى )).[1]

ژباړه :له انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دی چی ام الربيع بنت البراء دحارثه بن سراقه رضي الله عنه مور دنبی کريم صلی الله عليه وسلم په خدمت کې حاضره شوه او ويې ويل : يارسول الله ايا ما به تاسي دحارثه په باره کې خبر نکړئ . هغه دبدر په جنګ کې ديو نامعلوم غشي دلګيدو په وجه شهيد شوی و. که هغه په جنت کی وي نو زه به ورباندی صبر وکړم اوکه په جنت کی نه وي نو زه ورباندی ښه وژاړم. رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : په جنت کی څو جنتونه دي اوستا زوی په فردوس اعلی کی دی. په بل روايت کې دا الفاظ راغلي دي ته بوره شې جنت خويو نه دی جنتونه خو ډير دي او ستازوی په فردوس اعلی کی ده .

**پنځم : کله چی شهيد ان دالله په لاره کی ووژلی شي نوالله تعالی دهغوی روحونه دجنتي شنو مرغانو ججورو کې داخلوي.**

(( روی مسلمٌ عن مسروق قل: سألنا عبدالله بن مسعود رضي الله عنه عن هذه الآية : ﴿ ولاتَحْسَبَنَّ الَّذيْنَ قُتِلُوْا فی سبيل الله أمواتاً بَلْ أحيآءٌ عندربهم يرزقون ﴾[آل عمران ١٦٩.]

[1]- رواه البخاري فی الجهاد والمغازي رقم ٢٨٠٩.

فقال: أما إنّا قدسألنا عن ذلك رسول الله ﷺ، فقال: ((أرواحهم في جوفِ طيرِ خضر، لها قناديل معلّقةٌ بالعرش، تسرحُ من الجنة حيث شاءت ، ثم تأوي إلى تلك القناديل !

فاطلعَ إليهم ربُّهم اطلاعةً ، فقال: هل تشتهون شيئاً ؟

قالوا: أيَّ شيء نشتهي ،ونحن نسرحُ من الجنة حيث شئنا؟

ففعلَ بهم ذلك ثلاثَ مرات ، فلما رأوا أنهم لن يتركوا من أن يسئألوا، قالو: ياربِّ نريدُ أن تَرُدَّ أرواحَنافي أجسادِنلحتى نُقْتَلَ في سبيلك مرةً أخرى. فلما رأى أن ليسَ لهم حاجه تُرِكُوا.[1] ))

له مسروق رحمه الله نه روايت دی هغه وايي چې موږ له عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه ددغه آيت په هکله کی پوښتنه وکړ.

﴿وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ﴾.

( آل عمران ١٦٩).

اوهغه کسان چې دالله په لیار کې شهیدان شوي دي مړه مه ګڼئ هغوی ژوندي دي اودرب په وړاندی روزي ورکول کيږي .

هغه رضي الله عنه موږ ته وويل : ماهم ددغه آيت په باره کې له محمد صلی الله عليه وسلم نه پوښتنه کړی وه. هغه ﷺ موږ ته وفرمایل چې دشهیدانو روحونه دشنو مرغانو په ججورو کې وي، هغوی لپاره عرش لاندی قندیلونه دي. دجنت په کوم ځای کی چی غواړي پکې ګرځي. اوبیا دغو قندیلونو ته راځي. الله تعالی هغوی ته خبر ورکړ او ورته يې وويل چې اياتاسې دڅه څيز اشتها اوشوق لرئ؟ هغوی وويل:

---

[1] - رواه مسلم فی الإمارة : ٣/ ١٥٠٢).

مورږ به نور دخه ځيز اشتها ولرو مورږ خو دجنت په كوم ځاى كى چى ګرځېدل وغواړو پکې ګرځو. الله تعالى داخبره ورته درې كرته وكړه. كله چى هغوى پوه شول چى الله تعالى لـه مورږ نه داپوښتنه بيابيا كوي. نوهغوى وويل: اى زموږ ربه ! موږ دا غواړو چى زمونږ روحونه بيرته زموږ جسدونو ته واپس كړى شي ترڅو ستاپه لاره كى يوځل بيا ووژل شو. كله يې چى وليدل چى دبل څه حاجت نلري نوپرى يې ښودل.

(( وروى أبـوداود عن ابن عباس رضي الله عنهما قل: قال رسول الله صلى الله عـليه وسلم : (( لـما أصيب إخوانكم جعل الله أرواحَهم في جوفِ طيرٍ خضـر، ترِدُ أنهارَ الجنة ، تأكُل من ثِمارها، وتأوي إلى قناديلَ من ذهب، معلَّقةٍ في ظلِّ العرش.

فـلما وجدو طيب مأكلهم ومشربهم ومقيلهم ، قالوا: من يبلِّغُ إخواننا ء ١٠ أنا أحياءٌ في الجنة نرزقَ ، لئلايزهدوا في الجهاد، ولاينكلوا عن الحرب !

فقل الله : أنا أبَلِّغُهم عنكم ، وأنزل قوله سبحانه : ))

﴿وَلَاتَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوْا فِي سبيل الله أمواتا بل احياءٌ عندرهم يرزقون ﴾[1][ آلعمران: ١٦٩ ].

لـه ابن عـباس رضي الله عـنهما نـه روايت دى هغـه وايي: رسول الله صلى الله عليه وسلم وفـرمايل : كلـه چى ستاسې ورونه شهيدان شول نو الله تعالى دهغوى روحونه دشنو مرغانو په ججورو كې كيښـودل. هغـوى دجنت ويالو ته راځي اودجنت ميوى خوري او خپلو هغـو قنديلونو ته راځي چى لـه سروزرو نه جوړشويدى اوعرش لاندى ځوړند دي. كله چى هغـوى خپـل خونـده ور خوراک ځښاک او آرام ځاى وليد نو ويى ويـل : څـوک بـه زمـوږ ورڼوته زموږ داخبر ورسوي چى موږ ژوندي يو اوپه جنت كى

---

[1] ــ رواه ابو داود في الجهاد : ٣/ ٣٢ والحديث صحيح .

خوراک ښناک کوو ترڅو لـه جهاد نـه پـه ځنګ نه شي او بزدلي ونکړي. الله تعالی ورته وفرمایل : زه ستاسې داخبر هغوی ته رسوم نو الله تعالی دا آیت نازل کړ:

﴿وَلَاتَحْسَبَنَ الَّذِيْنَ قُتِلُوْا فِي سبيل الله امواتاً بل احياء عندربهم يُرْزَقُوْن ﴾ العمران : ١٦٩.

تاسې هغه خلک مړه مه ګڼئ چې دالله پـه لاره کې وژل شویدي بلکې هغوی لـه خپل رب سره ژوندي دي او روزي خوري.

(( عـن كعـب بن مالكٍ رضي الله عنه عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: ارواحُ الشهداء في اجوافِ طيرٍ خضرتعلقُ من ثمرالجنَّةِ.[1] ))

له کعب بن مالک رضي الله عنه نه روایت دی هغه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل دشهیدانو روحونه دشنو مرغانو په ججورو کې دي اودجنت دمیوه دارو ونو په سرونه کې خیژي .

بیشکه محمدﷺ موږ ته ددی خبرې خبر راکړیدی چې الله تعالی دشهیدانو روحونه دشنومرغانو پـه ججورو کې اېښې دي. شاید په دی کی داحکمت وي چې شهیدانو دالله پـه لاره کی پخپلو کلکو وجودونو سره جهادونـه کړیدي او خپـل وجودونه یې تکلیفونو او دردونـو تـه وړاندی کړیدي او دالله تعـالی درضا اوخوښي ترلاسه کولو لپاره یې قربان کړیدی.

کله چې شهیدانو داکار وکړ نـو الله تعالی دهغوی جسدونه په دائمي جنت کی په لطیفو جسدونو بـدل کړل. هغوی هلته خوراک ښناک کوي اودجنت په کوم ځای کې چې خوښه وي ګرځي اوچکری وهي.

داچې دشنو مرغانو رنګ یې ورتـه خوښ کړیدی او داستراحت لپاره ترعرش لاندې قندیلونه یې ورتـه خوښ کړیدي ښایي ددی حکمت داوي چې پـه ټولو رنګونو کې لطیف رنـګ شین دی اوپـه جمـاداتو کې لـه ټولونه لطیف جماد شفافه شیشه ده، لـه

---

[1] - رواه الترمذی فی فضایل الجهاد: ٤/ ١٧٦، والحديث صحيحٌ.

همدی کبله دشهیدانو روحونه یې لـه ټولو نه زیات په لطیفو جسدونو یعنی مرغانو کې کیښودل اوپه ټولو کې ښه اولطیف رنګ یې ورته خوښ کړ چې هغه شین ده اودغه مرغان چې لسه ټولو نه زیات لطیف جماد ته راځي هغه روښانه او خوشالوونکي قندیلونه دي چې دالله تعالی عرش لاندی ځوړند دي. ترڅو هغوی دنعمتونو ټول خوند دکریم الله په ګاونډ کې پوره کړي.

دافضل يواځې دشهیدانو پورې مخصوص نه دی بلکې عام دی چې ټولو صالحو مؤمنانو ته شاملیږي.

(( روى الإمام بن أحمدبن حنبل عن الإمام محمدبن إدريس الشافعي، عن الإمام مالك بن أنس ، عن الإمام الزهري عن عبدالرحمن بن كعب بن مالك ، عن كعب بن مالك رضي الله عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم قال : (( نَسَمَةُ المؤمن طائرٌ يَعْلَقُ من شجرِ الجنة حتى يرجعه الله إلى جسدِهِ ، يوم يبعَثَهُ.[1] ))

امام احمدبن حنبل له امام محمدبن ادریس الشافعي، هغه له امام مالک بن انس، هغه لـه امام زهري هغه دعبدالرحمن بن کعب بن مالک، هغه له کعب بن مالک رضي الله عنه او هغه له نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کړیدی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: دمومن روح یوه مرغۍ ده چې دجنت لـه ونو نه ترهغه خوراک څښاک کوي ترڅو چې الله تعالی دهغه دبیا پیداکولو لپاره بیرته خپل جسد ته یې نه وي لیږلې.

داحدیث ډیرلوی عظیم صحیح او سند یې عزیز الوجود دی ( وجود یې ډیر کم او نادر ده ) ځکه چې ددی په سند کې لـه څلورو امامانو څخه دری امامان راجمع شویدي.

---

[1] - مسند أحمد: ٦/ ٤٥٥، والحديث صحيح.

دشهید مؤمن روح، اوغیر شهید مومن روح ترمنځ دافرق دی چی دشهید مومن روح دشنومرغانو په ججورو کې وي. هغه مرغه ورته دسوارلی په شان وي (لکه هلیکوفتر او طیاره) خودمومن روج پخپله دمرغی په شکل کي وي اوپه جنت کی پخپله آلوځي اوچکر وهي.

**شپږم: شهیدان په قبر کې نه امتحانیږي اوله قبر نه دراپورته کیدو په وخت کې به نه بې هوشه کیږي** : داخبره ثابته شویده چی کوم سړی دالله دلارې څوکیداري کوي هغه په قبر کی نه امتحانیږي شهید باید په طریقه اولی سره په عذاب نشي ځکه شهید له څوکیداري کوونکي نه غوره دی نوځکه شهید په قبر کې نه امتحانیږي هغه لپاره دهغه په سربلندی دتورو وارونو اوګذارونه د امتحان لپاره بس دي.

په قبر کې دمړي امتحان په دی خاطر آخستل کیږي چی دهغه دایمان حقیقت معلوم کړی شي په دی کی شک نشته چی څوک دالله درضا لپاره قتال ته ووت دجنګ په میدان کې یې ددښمن پړقیدونکي تورې یې پخپلو سترګو ولیدلې چی دخلکو سرونه یې قلمول.

دغښوباران و او دخلکو وجودونه سوزي سوري کول سرونه یوې بلې خواته الوتل، وینې بهیدلې ، اندامونه یې غوځیدل، دمړو ، زخمیانو اوپرزمکه لتیدونکو خلکو ترمنځ محکم ولاړ وو نه یې دښمن ته شا اړوله اونه یې ماته خوړله اوخپل ځان یې په الله باندی دایمان لرلو اود هغه وعد او وعید رښتیا ګڼلو په وجه دالله درضا اوخوښي دترلاسه کولو لپاره وقف کړی و نو دهغه دایمان لپاره همدغه ازمیښت کافي دی. دایوداسی امتحان او ازمیښت دی چی لدینه پورته بل ازمیښت نشته. که چیرته ددی په زړه کې دایمان په باره کې څه شک او شبه وای نو ده به ضرور تیښته کړی وای. اودجنګ په میدان کې به یې ثبات او استقامت نه وښودلې.

شهید چې کله له خپل قبرنه بیاپاځول کیږي نونه بیهوشه کیږي.

(( روی الحاکم عن أبي هريرة رضي الله عنه عن النبی صلی الله علیه وسلم أنه سأل جبريلَ عن هذه الآية : (وَنُفِخَ فی الصُّوْرِ فَصَعِقَ من فی

السّموات وَمَنْ فى الأرضِ إلاَّ ن شآء الله ) الزمر: ٦٨. من هم الذين لم يشأ الله أن يصْعَقَهم؟

قل جبريل: هم شهداءُ الله .[١]))

له ابي هريره رضي الله عنه نه روايت دى هغه له نبى كريم ﷺ نه روايت كوي چې هغه له جبريل عليه السلام نه آيت شريف : " ونفخ فى الصور" په باره کې پوښتنه وكړه چى هغه خلك څوك دي چى الله دهغوى بيهوشه كول نه غواړي ؟ جبريل امين وويل: هغوى دالله دلاري شهيدان دي .

دآيت ترجمه: اوپه شپيلۍ کې به پوه وكړى شي د آسمانونو اوزمكې ټول مخلوق به پرته له هغه چا چې دالله خوښه وي نورټول بيهوشه پريوزي .

اووم: شهيدان دخپلو خپلو كورنيو د ٧٠ كسانو شفاعت كوي، له لوى ويرى نه په امن كى وي اودوينې له لومړي څاڅكي په پرى وتو سره ګناهونه يې بخښل كيږي.

(( عَنْ نِمْران بن عتبة الذِماري قل: دخلنا على أم الدرداء ونحن ايتام ، فقالت : ابشروا فأني سمعتُ رسول الله ﷺ يقول: "يشفع الشهيد في سبعين من اهل بيته ".[٢]))

له نمران بن عتبه الذماري رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي چې مونږ ام درداء كره لاړو او موږ يتيمان وو، هغى رضي الله عنه وويل: تاسى خوشاله شئ، ماله رسول الله ﷺ نه آوريدلي دي چى فرمايل يې :شهيد د خپلې كورنۍ د اوياكسانو شفاعت كوي.

---

[١] – رواه الحاكم فى المستدرك : ٢/ ٢٥٣، والحديث حسن.

[٢] – رواه ابوداود فى الجهاد :٣/ ٣٤، والبيهقي فى السنن :٩/ ١٦٤ والحديث صحيحٌ.

(( روى أحمد والطبراني عن عبادة بن الصامت رضي الله عنه ، عن النبى ﷺ قل: ( إنَّ للشهيد عند ربه سبعُ خصال: أن يغفر له في أول دفعةٍ من دمه ، ويرى مقعده من الجنة، ويحلى حلية الإيمان ، ويجارَ من عذاب القبر، ويأمن من الفزع الأكبر، ويوضَعَ على رأسه تاج الوقار، الياقوتة منه خير من الدنيا ومافيها، ويزوَّجُ ثنتين وسبعين من الحور العين ، ويشفع في سبعين إنسانا من أقاربه .[1]))

له عباده بن الصامت رضي الله عنه نه روايت دى هغه له نبى كريم ﷺ نه روايت كوي چى هغه ﷺ وفرمايل: دالله په نزد دشهيد لپاره اووه انعامونه دي. دويني دلومړي څاڅكي له توئيدو سره سم دهغه ګناهونه بخښل كيږي، خپل ځاى په جنت كې ويني ، دايمان لباس به ورته آغوستل اوادايمان په لباس كې به ښائسته كيږي، دقبر له عذاب به نجات ترلاسه كوي، دقيامت له لوى ويرې نه په امن پاتى كيږي، دهغه په سر دعزت تاج ايښودل كيږي چى دهغه يوه دانه ياقوت به ددنيا اوپه دنياكې چى څه دي غوره وي. له دوه اوياحورو سره به يې واده كولې شي. او دخپلو اقرباو د اويا كسو شفاعت به كوي.

(( وروى البيهقي عن سهل بن حنيف رضي الله عنه ، أنَّ رسول الله ﷺ قل: (( إنَّ أول مايراق من دم الشهيد تغفرُ له ذنوبهُ.[2]))

له سهل بن حنيف رضي الله عنه نه روايت دى چى رسول الله ﷺ وفرمايل :چى دشهيد دلومړي څاڅكي له توئيدو سره سم دهغه ګناهونه بخښل كيږي.

---

[1] - مسند أحمد: ٤/ ١٢١. ومجمع الزوائد للهيثمي :٥/ ٢٩٣، وإسناده صحيح.

[2] - السنن الكبرى للبيهقي: ٩/ ١٦٣. ومجمع الزوائد للهيثمي:٣/ ٩٠ ، والحديث حسن.

مجـاهد وايي چې يزيد بن شـ ـره الرهاوي دخپلو ملګرو په منځ کې ودريد او يې ويل :

الله تعالى تاسى تـه ډول ډول نعمتونه درکړيدي اوپه کورو کې هم ستاسې لپاره نعمتونه موجود دي. پس کله چې تاسې لـه دښمن سره ګام په ګام مخامخ کيږئ نو داسمانونو، جنتونو اودجهنم دروازې خلاصيږي. حورې خپل ځان ښايسته کوي او هغوى ته ګوري. کله چې مجاهد دشمن ته مخامخ کيږي نو هغوى وايي: اى الله ته ورسره مرسته وکړه او چې کلـه دښمن تـه شا واړوي نـو ترينه ځان پټوي اودعاکوي چې اى الله بخښنه ورتـه وکړې. زمـامور اوپلار دى لـه تاسـونه قـربان شي تاسي حورې مه خجالـتوئ کله چې دشهيد يوڅاڅکې وينه تويږي نو الله پاک دهغه ټول ګناهونه معـاف کـوي د حورو څخه دوه ښځې ورتـه راځي او دهغـه لـه مخ نه دوړه لرى کـوي. ورتـه وايي چې په خير راغلې مونږ تاته نژدى شوو. هغه ورته په ځواب کى واي چې په خير راغلى. زه تاسو دواړو ته نژدى شوم.

((وقـا ل عـبدالله بـن عمـروبن العاص رضى الله عنهما : اذاقتل العبد في سبيل الله فاوّل قطرةٍ تقع على الارض من دمه يغفرالله ذنوبه كلها.[1]))

عبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنه وايي : کله چې يوبنده د الله په لاره کې ووژل شي نوپه زمکه کې دوينې دلومړي څاڅکي لـه تويدو سره سم الله تعالى دهغه ټول ګناهونه معاف کوي.

**اووم : څـوک چـې دالله جـل جلالـه پـه لار کـې شهيد شي دا لـه هغه ځاغوره ده چې فتح بيامومي او روغ رمټ راستون شي .**

((عن جابر بن عبدالله رضى الله عنهما .

قل : قل رجل : يارسول الله : اى الجهاد افضل؟

---

[1] - مجمع الزوائد للهيثمي : ٥/ ٢٩٨.

قل : ان يعقر جوادك ، ويراق دمك .[1]))

له جابر رضی الله عنهما نه روايت دی هغه وايي چی یو سړي وويل : ای دالله رسوله ! کوم يو جهاد غوره دی ؟ هغه صلی الله عليه وسلم وفرمايل: داچی ستا اس زخمي او وينې دی توی کړې شي.

(( وروى أبوداود والنسائي والدارمي و أحمد عن عبدالله بن حبش الخثعمي رضي الله عنه ، أنَّ رسول الله ﷺ سئل: أيُّ الاعمال أفضل ؟

قل: إيمانٌ لاشكَّ فيه ، وجهاد لاغلول فيه وحجة مبرورة!

قيل: فأيُّ الصدقةِ أفضل؟

قل: جهدَ المقل!

قيل: فأيُّ الهجرة أفضل؟

قل: من هجر ما حَرَّم الله!

قيل: فأيُّ الجهاد أفضل؟

قل: من جاهد المشركين بماله ونفسه!

قيل: فأيُّ القتل أشرف ؟

قل: من أهريق دمه ، وعقر جوادُه.[1]))

---

[1] _ مسند احمد : ۳/ ۳۰۰ وصنف ابن ابي شيبة ۵/ ۲۹۰. ومجمع الزوائد : ۵/ ۲۹۱ ، والحديث حسن.

له عبدالله بن حبش الخثعمي رضي الله عنه نه روایت دی چی لـه رسول الله ﷺ نه پوښتنه وشوه چې کوم یو عمل غوره دی؟

هغه ﷺ ورته وفرمایل : هغه ایمان چې هیڅ شک په کې نه وي بل هغه جهاد چې په مال غنیمت کې هیڅ قسم تګي په کې نه وي. اودریم قبول شوی حج.

بیاوویل شو چې کومه یوه صدقه غوره ده؟ رسول الله ﷺ وفرمایل هغه صدقه چې غریب سړي دخپـل حال مطابق کـوي . بیاتپوس وشو چې کوم یوهجرت غوره دی؟ هغه ﷺ وفرمایل چاچی له هغه څه نه ځان وساته چې الله ورته حرام کړیدي.

پوښتنه وشوه چې کوم یو جهاد افضل دی ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل :

چاچی له مشرکانو سره په خپل نفس او مال سره جهاد وکړ.

پوښتنه وشوه چې کوم یو وژل کیدل زیات شریف دي؟

رسول الله ﷺ وفرمایل : هغه مرګ چی وینه یې تویی کړی شي او اس یې زخمي کړی شي .( یعنې پښې یې غوڅې کړې شي )

(( وروى أحمد والطبراني عن عمرو بن عبسة السُّلمي رضي الله عنه ،

قل: قل رجل: يارسول الله : ما الإسلام ؟

قل: أن يسلم قلبك ، وأن يسلم المسلمون من لسانِك ويدِك ؟

قل الرجل : فأيّ الإسلام أفضل ؟

قل : الإيمان ؟

قل الرجل : وما الإيمان ؟

قل : أن تومن بالله وملائكته وكتبه ورسله والبعث بعدالموت .

---

[1] - رواه أبوداود في الصلاة : ٢/ ٦٤١. النسائي في الزكة:٥/ ٨٥ والدارمي فى الصلاة: ١/ ١٣٣. وأحمد: ٣/ ٤١٤، والحديث حسن.

قل الرجل : فأىُّ الإيمان أفضل ؟

قل : الهجرة.

قل الرجل: فأىُّ الهجرة أفضل ؟

قل: الجهاد.

قل: وما الجهاد؟

قل: أن تقاتل الكفار إذا لقيتهَم.

قل الرجل: فأىُّ الجهاد أفضل ؟

قل : من عُقِرَ جوادهُ ، وأُهريق دمُه.[1]))

لـه عمرو بن عبسه السُلمي رضي الله عنه نه روايت دی هغه وايي چې يوسړی رسول الله ﷺ ته وويل : يارسو ل الله ﷺ اسلام څه شی دی؟

رسول الله ﷺ وفرمايل : چی زړه دی الله تـه تسليم شي او بـل داچی مسلمانان ستا دژبې اولاس نه په امن کی پاتی شي.

سړي تپوس وکړ: کوم يو اسلام افضل دی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل ايمان.

سړي وويل: ايمان څه شی دی؟

رسول الله ﷺ وفرمايل : داچی په الله ، دهغـه پـه پرښتو دهغه په کتابونو، دهغه په رسولانو او له مرګ نه وروسته په ژوند باندې ايمان راوړې .

سړي وويل : کوم يو ايمان افضل دی ؟

رسول الله ﷺ هجرت، سړي وويل: کوم يو هجرت افضل دی؟

رسول الله ﷺ وفرمايل : جهاد.

---

[1] - مسند أحمد : ٤/ ١١٤. ومجمع الزوائد للهيثمي : ١/ ٥٩، ورجاله ثقات.

**هغه وويل جهاد څه شی دی؟**

رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چی لـه کفارو سره مخامخ شې نو جنګ ورسره وکړئ سړي وويل: کوم يوجهاد غوره دی؟

رسول الله ﷺ وفرمايل: د چاچې اس هم زخمي کړی شي اوپخپله دهغه وينه هم توی کړی شي.

په دغو احاديثو کې دهغه چاپه خبره د بطلان واضح دليل موجود دی چی وايي غالب اوپردښمن باندی فاتح غازي لـه شهيد نه بهتردی. ابن المبارک لـه عبدالله بن عبيد بن عميرنه روايت کړيدی هغه وايي چې عمروبن العاص تيرشو هغه دبيت الله شريف طواف کاو. هغه دقريشو يوه حلقه وليده چې څه کسان پکي ناست وو.

کله چی هغوی داوليد نو ويی ويل: اياهشام بن العاص بهتر و ستاسو په رايه او که دهغه ورور عمرو؟ کله چی هغه له طواف نه فارغ شو نو د دوی خواته راغی او ورته ودريد. هغوی تـه يي وويل کله چی تاسو زه وليدلم نو زه پوه شوم چې تاسې څه وويل : تاسی څه ويل؟ هغوی وويل : موږ ستا او هشام په باره کې وويل چی لـه تاسونه کوم يو بهتر دی؟ هغه ورتـه وويـل : زه بـه تاسې ډير ژر خبر کړم زه ديرموک په جهاد کی شريک شوم هغـه اومـا دواړو شپه تيره کړه هغـه هم لـه الله نه دشهادت سوال کاو اوماهم دشهادت سوال کاو. کله چې سهار شو هغه شهيد شو اوزه محروم شوم. لدينه معلومه شوه چې هغـه لـه مانه افضل دی. دعمرو ابن العاص داخبره هم په روڼ رمښ راستون شوی باندی دشهيد په فضيلت دلالت کوي.[1]

---

[1]_الجهاد لابن المبارک.

**نهم: شهيد تـه دوژل كيـدو پـه وخـت دومره درد حس كيږي لكه چې ميږي چيچلى وي .**

((عـن ابـى هريـره رضي الله عنه قل: قل رسول الله ﷺ : لايجد الشهيدُ من مَسِّ القتلِ الاَّ كمايجدُ احدكم من مَسِ القرصة .[1]))

لـه ابى هريره رضـي الله عـنه نـه روايت دى چى رسول الله ﷺ وفرمايل : شهيد د وژل كيدو په وخت كى صرف دومره دردباندى پوهيږي لكه چى ميږي چيچلى وي .

**لـسم : پربښتې پـه شهيدانو بـاندې لـه هرى دروازې نه راځي اوسلام وربـاندې كوي.**

(( روى أحمـد والحـاكم وابن حبان عن عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عـنهما قـل: سمعت رسول الله ﷺ يقول: (( أول ثلةٍ تدخل الجنة الفقراءُ المهاجـرون ، الذيـن تُـتَّقى بهم المكاره ، إذا أمروا سمعوا واطاعوا، وإن كانت لـلرجل مـنهم حاجـةً إلى السـلطان لم تقض له ، حتى يموتَ وهي في صدره. وإنَّ الله عزوجل ليدعو يوم القيامة الجنة ، فتأتي بزخرفها وزينتها.

فيقـول : أيـن عـبادي الذين قاتلوا في سبيلي وقتلوا و أوذوا وجاهدوا في سبيلي؟ ادخلوا الجنة.

فيدخلونها بغير حساب.

---

[1] - رواه الترمذى فى فضائل الجهاد: ٤/ ١٩٠، والنسائي فى الجهاد:٦/ ٣٦ ومواد الظمآن ص : ٣٨٨ واسناده حسن.

وتـأتي الـملائكـة فيسـجدون ، فيقولـون : ربنّا نحن نسبّحُ بـحمدك الليلَ والنهار ونقدسُ لك. من هؤلاء الذين آثرتهم علينا؟

فيقـولُ الـرب عـزوجل: هـؤلاء عـبادي الذين قاتلوا في سبيلي، وأوذوا في سبيلي.

فـتدخل عليهم الملائكة من كل باب : سلام عليكم بما صبرتم ، فنعم عقبى الدار .[1]))

**لـه عبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنهما نه روايت دى هغه وايي : ماله رسول الله ﷺ نه آوريدلي دي چې فرمايل يي :**

**لومړى ډله چې پـه جنت كى داخليږي هغه به فقراء مهاجرين وي، داهغه خلك دي چې دهغوىپه وجـه خلك لـه بدو او نـاروا كـارونو خلاصېدل. كله به چې ورتـه دكوم كـار امر كيـدو هغـه بـه يې اوريـده او ترسره كاو به يې. كله بـه چې لـه هغوى نه دكوم سړي پاچاته كوم خدمت پيداشو نو داحاجت به چانه پوره كاو . آن تردى چى مړيه شو او دابـه يې پـه زړه كې پاتى شو. دقيامت پـه ورځ بـه الله پاك جنت راوغواړي او هغـه بـه لـه خپلو ټولـو ښكلاګانو اوتازګي سره حاضر شي. الله تعالى به ووايي : چيرته دي زماهغـه بـندګان چى زمـاپـه لاره كـې جـنګيدلي دي وژل شـويدي اوتكـليف ورتـه رسيـدلى دى اوزماپـه لاره كى يې هلى ځلې كړيـدي؟ داټول دى پـه جنت كى داخل شي هغوى بـه ټول لـه حساب اوكتاب نه پرته پـه جنت كى داخل شي.**

**ملائكې بـه راشي اوسجده بـه وكړي، بيابـه ووايي: اى زمـوږ پالونكيـه! موږ شپې ورځې ستا تسبيح اوحمد وايو اوستاپاكي بيانوو. داخلك څوك دي چى پـه موږ دى غـوره كړل. الله تعالى به ورتـه وفرمايي : دازما هغه بندګان دي چى زماپـه لاره كې يې**

---

[1]_ احمد في المسند : ۲/ ۱٦۸ والمستدرك للحاكم : ۲/ ۷۲ وموارد الظمان ص : ٦۳٦ ورجاله ثقات والحديث حسن.

قتال کړيدي اوزماپه لاره کی په تکليف شويدي. پس ملائکې پرهغوی باندې له هرى دروازى نه ننوځي. او ورته به ووايي سلام دى وي پرتاسو باندى په سبب دهغه چې تاسى صبر وکړ. بيا نو داخرت کور ډېرښه دى.

((روى البخاري ومسلم عن أنس بن مالك رضي الله عنه قل: جاء أناسٌ إلى النبى ﷺ فقالوا: ابعث معنا رجالاً يعلمونـنا القرآن والسنة ، فبعث اليهم سبعين رجلاً من الأنصار، يقل لهم القراء- فيهم خالي حرام بن ملحان- يقرء ون القرآن ويتدارسونه بالليل يتعلمون ، وكانوا بالنهار يجيئون بالماء فيضعونه في المسجد ويحتطبون ، فيبيعونه ويشترون به الطعام لأهل الصُّفَّة وللفقراء.

فبعثهم النبي ﷺ ، فعرضوا لهم فقتلو هم قبل أن يبلغوا المكان.

فقالوا: اَللهُمَّ أبلغ عنا نبيًنا ، أنا قد لقيناك ، ورضينا عنك ، ورضيت عنا !

وأتى رجل حراما خال أنس فطعنه برمحٍ حتى أنفذها. فقل حرام: فزت وربِّ الكعبة؟

فقل رسول الله ﷺ : إن إخوانكم قدقتلوا. وإنهم قالو: اللهُمَّ بلِّغ عنا نبيًنا أنا قد لقيناك ورضيناك عنك ورضيت عَنا.)) [1]

له انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي څه خلک نبى كريم ﷺ ته راغلل هغوى وويل چى له مونږ سره څو کسان وليږه چى موږ ته قران كريم او سنت وښايي. رسول الله ﷺ ورته دانصارو اوياکسان وليږل چې قراء ورته وېل کيده. په

---

[1] - البخاري فى المغازي : ٥/ ٤٢ . ومسلم في الإمارة :٣/ ١٥١١.

دوی کی زما ماما حرام بن ملحان هم و چی قرانکریم به یې لوستلو او خلکوته به یې دشپې په وخت کی ښودلو.

دورځې به یې مسجد ته اوبه راوړلی هلته به یې کیښودلی او لرګي به یې راوړل او خرخول به یې اوپرهغه به یې دصفې اوسیدونکو اوفقراو ته ډوډی اخسته. نبی کریم ﷺ دوی هلته ولیږل مګرهغوی په دوی باندې تعرض وکړ اوله رسیدونه وړاندی یې ووژل.هغوی دعاوکړه چې ای الله ! زموږ لـه طرف نه زموږ نبي ته زموږ داپیغام ورسوه چې موږ له خپل رب سره ملاقي شوو، موږ لـه تانه خوشاله یو او ته لـه موږ نه خوشاله یې .دانس ماما حرام نومی اصحابي تـه یو سړې راغی او په نیزی سره یې سوری کړچی لـه بدن نه اخوا ترینه وتلی وه. حرام وویل: دکعبی په رب قسم چی زه بریالی شوم. رسـول الله ﷺ صحابه وتـه وفـرمایل: ستاسې ورونـه وژل شـویدي، اوهغوی داویلي دي چې ای الله! زموږ له لورې زموږ نبي ته زموږ داپیغام ورسوه چې موږ له تاسره ملاقي شوي یو ته له موږ نه خوشاله یې اوموږ له تانه خوشاله یو.

## د ولسم : دشهادت لپاره لـه مخکی نه نیک اعمال شرط نه دي بلکی دارادی سبقت شرط دی .

(( عـن البراء بنَ عازب رضي الله عنه قل:اتی النبیُّ ﷺ رجلٌ مقنَّعُ بالحدید

فقل: یارسول الله ﷺ اقاتل او اسلم؟

قل اسلم ثم قاتِلْ فاسلم ثم قاتل فقتِلَ.

فقل رسول الله ﷺ عمل قلیلاً و اجرکثیراً.[1] ))

لـه براء بن عـازب رضي الله عـنه نـه روایت دی هغـه وایي: یوسړی رسول الله ﷺ ته راغې چی په سریاندې یې داوسپنی توپی وه. هغه وویل یارسول الله ! زه لومړی قتال وکړم اوکه اسلام راوړم؟ رسـول الله ﷺ ورته وفرمایل: لومړی اسلام راوړه او بیاقتال

[1] - البخاري فی الجهاد: ۳/ ۲۰٦ ومسلم فی الامارة :۳/ ۱۵۰۹.

وکړه . هغه اسلام راوړ اوبیاقتال یې وکړ تردی چې شهیدشو. رسول الله ﷺ وفرمایل: عمل یې لږ وکړ خوثواب یې ډیر زیات ترلاسه کړ.

((عن البراء بن عاذب رضي الله عنه ، قل : جاء رجل الى رسول الله ﷺ وهو يقاتل ، فقل له : اَهُوَ خير لي ان اسلم؟

قل ﷺ نعم.

فقل الرجل: أشهدُ أن لاإله إلا الله ، وأنك رسولُ الله.

ثم قل ; أهو خيرٌ لي أن أُقاتِلَ حتى أُقتل؟

قل : نعم .

قل الرجل : وإن لم أُصَلِّ لله صلاة ؟

قل : نعم .

فحمل الرجل على المشركين فقاتلهم ، ثم اعتنوا عليه ، فقتلوه! فقل رسول الله ﷺ عملَ قليلاً، وأجِرَ كثيراً.[1]))

له براء بن عازب رضي الله عنه نه روایت دی چې یوسړی رسول الله ﷺ ته راغی او هغه ﷺ په قتال کی بوخت وو. هغه سړي وویل: که زه اسلام راوړم نو دابه زما لپاره غوره وي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل هو. هغه سړي وویل: اشهدان لا اله الا الله وانک رسول الله.بیایی وویل : دابه زمالپاره ښه وي چې قتال وکړم اوشهیدشم. رسول الله ﷺ ورته وفرمایل هو. هغه وویل: اګرکه الله ته یولمونځ هم ونه کړم؟ رسول الله ﷺ وفرمایل هو. پس هغه په مشرکانو باندی یرغل وکړ او ورسره وجنګید خو

---

[1] - سنن سعيد بن منصور فى الجهاد : ٢/ ٣/ ٢٣٦ ، والحديث حسن.

کافرو په هغه باندی سخته حمله وکړ او ویې واژه . رسول الله ﷺ وفرمایل : لږ عمل یې وکړ اوډیر اجر یې ترلاسه کړ.

(( وروى الطبراني فى الكبير والأوسط عن أبي موسى الأشعري رضي الله عنه أنَّ النبيُّ ﷺ كان في غزوة. فبارز رجل من المشركين رجلاً من المسلمين فقتله المشرك ، ثم برزله رجل من المسلمين فقتله المشرك.

ثم جاء المشرك فوقف على النبى ﷺ فقال له: على ملذا تقاتلون ؟

فقال ﷺ : ديننا أن نقاتل الناسَ ، حتى يشهدوا أن لا إله إلا الله ، وأنَّ محمداً عبده ورسوله ، وأن نفي لله بحقه.

فقال الرجل: و الله إنَّ هذا لحسن، امنتُ بهذا، أشهد أن لا إله إلا الله ، وأشهد أنَّ محمداً رسول الله !

ثم تحوَّل إلى المسلمين ، وحمل معهم على المشركين ، فقاتل حتى قُتل! فوضع بجانبِ صاحبيه اللَّذين قتلهما قبل ذلك!!

فقال رسول الله ﷺ : هؤلاء أشدُّ أهلِ الجنة تحاباً.[1] ))

له ابی موسی الاشعري رضي الله عنه نه روایت دی چی نبی کریم ﷺ په یوه غزوه کې و، دمشرکانو یوسړي له مسلمان سړي سره مقابله وکړه نومشرک هغه وواژه. بیاورته بل مسلمان مقابلې ته ووت نومشرک هغه هم وواژه، بیاهمدغه مشرک راغی اوډنبی کریم ﷺ په خنګ کې ودرید او هغه ﷺ ته یې وویل تاسې دڅه لپاره قتال کوئ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل زموږ دین موږ ته داوایي چی ترهغه له خلکو سره

[1] - مجمع الزوائد للهيثمي : ٣/ ٢٩٦، والحديث صحيح.

قتال وکړو ترڅو چې لا اله الا الله و ان محمداً عبده ورسوله کلمه ونه وايي هغه سړي وویل : والله چې دابنه کاردی ماپه دی ایمان راوړ .

اَشْهَدُ ان لا اله الا الله ، واشهد ان محمداً رسول الله . يې وويل. بيا مسلمانانو طرف ته مخ واړاو اوله هغوی سره یوځای پر مشرکانو یې حمله وکړه له هغوی سره یې ترهغه قتال وکړ چې ووژل شو بیایې هغه له هغو دوکسانو سره کیښود چې وړاندی ده وژلي وو. رسول الله ﷺ وفرمایل. دجنت په اوسیدونکو کې به داخلک پښپلو منځو کې ډیرمحبت کوونکی وي ځکه مقتول به دایقین کوي چې دغو سترو همیشوو نعمتونو ته زمادډخول سبب یواځې همدا قاتل وګرځید.

## د يارلسم انبياء په شهيدانو باندی صرف دنبوت ددرجې په وجه فضيلت لري.

((عـن عتبة بـن عبدالسلميُّ رضي الله عنه. أنَّ رسول الله ﷺ : قال: القتلى ثلاثـةٌ رجـلٌ مؤمـن جـاهد بنفسـه ومالـه في سبيل الله ، حتىً اذا لقي العدوَّ قاتـلهم حـتى يُقْـتَلْ ، فذلـك الشـهيدُ المْتَحَنُ، في جنةِ الله، تحتَ عرشه ، لا يفضله النبيون إلاَّ بفضل درجة النبوة.

ورجـل فَـرِقَ على نفسه من الذنوب والخطايا. جاهد بنفسه وماله في سبيل الله ، حـتى إذا لقـي العـدوَ قـاتلَ حتى يُقتل ، فتلكَ مَصْمَصةٌ ، مَحَتْ ذنوبه وخطاياه ، إنَّ السيفَ مَحَّاءٌ للخطايا، وأُدخل من أيِّ أبواب الجنة شاء ، فإنَّ لها ثمانيةَ أبواب ، وبعضُها أفضل من بعض ، ولجهنم سبعة أبواب.

ورجلٌ منافق. جاهدبنفسه وماله ، حتى إذا لقيَ العدو وقاتل في سبيل الله حتى يُقتل، فذلك فى النار، لأنَّ السيف لايمحو النفاق.[1] ))

له عتبه بن عبدالسلمي رضي الله عنه نه روايت دی چی رسول الله ﷺ وفرمایل: دالله په لاره کې وژل شوي دری قسمه دي :

یوهغه مومن سړی چی پخپل ځان اومال سره دالله په لاره کې جهاد وکړي ترهغه چی له دښمن سره مخامخ شي اوجنګ ورسره وکړي او ووژل شي. پس دا ممتحن شهید دی. دابه په جنت کی دالله دعرش لاندی وي. په دی باندی انبیا صرف دنبوت ددرجې په وجه فضیلت لري.

دویم هغه سړی دی چی له ګناهونو اوخطاګانو څخه ویریږي، پخپل ځان اومال سره دالله په لاره کې جهاد کوي. تردی چی کله له دښمن سره مخامخ شي نو له هغه سره جنګ کوي چی پخپله ووژل شي نودا مصمصه شهید دی.دهغه ګناهونه اوخطاګانې محوه کوي بېشکه توره دخطاګانو محوه کوونکې ده او دجنت له هری دروازې نه چی غواړي داخلولی شي اودجنت اته دروازې دي چی ځینې یې له نورو ځینو نه بهتر دي. اودجهنم اووه دروازی دي.

دریم هغه منافق سړی دی چې پخپل مال اوځان سره جهاد کوي تردې چې له دښمن سره مخامخ کیږي اودالله په لاره کی ترهغه قتال کوي چی پخپله ووژل شي. نوداسړی به په اور کې وي ځکه چی توره نفاق نه شي محوه کولی.شهید ممتحن دی ته وایې چې شرح صدر یې شوې وي الله دهغه زړه دتقوی لپاره انتخاب کړې وي اوسینه یې داسلام لپاره خلاصه کړې وي اوپه هغه باندی دالله جل جلا له داقول چسپان کیږي.

﴿إِنَّ الَّذِينَ يَغُضُّونَ أَصْوَاتَهُمْ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ أُولَئِكَ الَّذِينَ امْتَحَنَ اللَّهُ قُلُوبَهُمْ لِلتَّقْوَى .﴾ [الحجرات : ۳.]

---

[1] - رواه أحمد فى المسند: ٤/ ١٨٥. والبيهقي فى السنن: ٩/ ١٦٤. وابن حبان انظر موارد الظمآن. ص : ٣٨٨. ومجمع الزوائد :٥/ ٢٩١ والحديث حسن.

کوم کسان چې درسول الله په وړاندې خپل غږونه ټيټوي په حقيقت کې هغه کسان دي چې الله يې دپرهيزګارۍ لپاره زړونه له ازميښت نه تيرکړي دي.

اود مُصْمَصـةٌ معنی مُمَحَّصَةٌ يعنی دالله درضا لپاره دهغه شهادت دهغه ګناهونه کنګال اوپاک کړل لکه عرب مصمص الاناء په هغه وخت کې وايي چې کله په لوښي کې اوبه واچوي او ويې ښوروي. مطلب داچې دالله په لاره کې چې ووژل شي نو هغه له ګناهونونه داسې پاکيږي لکه چې کټوه په وينځلو سره له خيرې نه پاکيږي.



# فصل

## الله جل جلاله حورعين دمؤمنانو لپاره تياري کړيدي

الله تعالی په جنت کې دمؤمنانو له حورعين سره واده کوي. اوپه دی کی له شهيدانو په خصوصي ډول انعامونه او پيروزوينې کړي دي پرديسه سړې دخپل وطن دحال احوال له اوريدو نه نه ستړی کيږي په عاشق باندی دمعشوقې ذکر اويادونه هيڅ کله هم بده نه لګيږي دوصال دوعدو يادول دعشق داور لمبی نورې هم زياتوي. ديوځاى کيدو دځاى ياديدل دشوق اورنور هم بلوي نوځکه په قرانکريم کې دجنت دنعمتونو، محلونو او حورو يادونه ښه ډيره ډيره شوېده الله تعالی د حور عينو واده له شهيدانو سره کوي. اوحورعين کله کله دالله په لاره کې زخمي شوي سړي ته دبيهوشي په حالت کې دهغه دروح له وتلو نه وړاندی خپل شکل اوځان ښکاره کوي. اودادهغه لپاره دالله جل جلاله له لورې يوزيرې وي چی الله جل جلاله هغه شهادت ته قبول کړيدی. کله کله حورعين مجاهدينو ته هم په خوب کی خپل ځان ښکاره کوي. ترڅومجاهد دالله په لاره کې نورې زياتې هلې ځلې وکړي او خپل ځان قرباني ته وړاندی کړي.

حورعين يو نوم دی چی الله تعالی په قرانکريم کی دهغه اطلاق پرهغو ښځو باندی کړيدی چی الله تعالی په جنت کی پيداکړيدی او هغه يې دصالحو مؤمنانو خصوصاً مجاهدينو اوشهيدانو لپاره ځانګړي کړي دي.دحورعين مفرد حوراء عينا راځي حور اء هغی ښځې ته وايې چې دسترګو سپينه برخه يې تکه سپينه وي او توره برخه يې ( يعنې کسی ) تکه توره وي نوحور دسترګې دتک سپين والي سره سره دسترګې تک تور والې ته وايې او عيناء هغې ښځې ته وايي چې غټې غټې فراخې ښايسته سترګې ولري.

الله تعالی پخپل کتاب قرانکريم کی فرمايي :

﴿وَحُورٌ عِينٌ كَأَمْثَالِ اللُّؤْلُؤِ الْمَكْنُونِ﴾ (الواقعة ۲۲_ ۲۳)

اوهم دښکلو او غټو سترګو حورې . لکه پوښل شوي ملغلرې.

همدغه راز الله تعالى فرمايي :

﴿كَأَنَّهُنَّ الْيَاقُوتُ وَالْمَرْجَانُ ﴾(الرَّحْمَنِ ٥٨)

لکه چې لعل او مرجان وي.

همدغه راز فرمايي :

﴿وَعِنْدَهُمْ قَاصِرَاتُ الطَّرْفِ عِينٌ كَأَنَّهُنَّ بَيْضٌ مَكْنُونٌ ﴾(الصافات ٤٨_٤٩)

لـه نبى كريم ﷺ نه چې دحورعينو دصفاتو په باره کې کوم احاديث نقل شويدي هغه دمفكرينو( فكر كوونكو) او مبصرينو( سوچ او فكر كوونكو ) عقل حيرانوي او ختموي .

((عن ابى هريرة ﷺعن النبى ﷺقل:انَّ اول زمرةٍ يدخلون الجنَّة على صورة القمر ليلة البدر. والتي تليْهاعلى اضؤ كوكبٍ دريٍّ فى السماء. لكل امريٍء منهم زوجتان، يرى مخُّ سوقهما من وراء اللحمِ ، ومافى الجنةِ ا عزب .[1]))

ابى هريره ﷺ لـه نبى كريم ﷺ نه روايت كوي چې هغه ﷺ وفرمايل : بيشكه لومړى ډله چى پـه جنت کې داخليږي هغوى دځوارلسمې سپوږمۍ پشان پړقيدونكى وي. اوڅوک چى دوى تـه نږدى وي دهغوى مخونـه بـه دآسمان دځليدونكو ستورو پشان پړقيږي. هريو جنتي تـه بـه دوه دوه جنتي ښځې وركول کيږي چى دپنډۍ دهډوکي مغزبه يې لـه غوښې نه اخوابښكاري اوپه جنت کې بې واده سړى نشته .

(( عن انس بن مالك ﷺ ، عن رسول الله ﷺ قال : (( لو أطَّلعت امرأةٌ من نساءِ أهلِ الجنةِ إلى الأرض لملأت مابينهما ريحاً ، ولأضاءت ما بينهما ، لنصيفها على رأسها خيرٌ من الدنيا ومافيها )).[1]

[1]_ رواه البخاري في بدء الخلق : ٤/ ٨٨ ومسلم في الجنة ونعيمها : ٤/ ٢١٧٨.

له انس بن مالک ﷺ نه روایت دی ^۱^ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل : که چیرته یوه جنتي ښځه خپل ځان دنیاته ښکاره کړي نوداسمان او زمکې منځ کې ځای ټوله زمکه به خوشبوي او روښانه کړي. دحور عین لوپټه ددنیا اوپه دنیاکې کی چی څه دي له ټولونه غوره ده.

داخبره لـه حدیث نـه ثابتـه شوېده چې الله تعالی هغـه اخرنی سړی چی لـه اور نـه وباسي اوپه جنت کی یې داخلوي هغـه تـه ددی ددنیـا دپیداکیدونـه واخلـه ترقیام دقیامته پورې چې څومره دنیاده ددی پشان لس هومره دنیاورکوي.

کله چې دیـو ادنی جنتي لپـاره دومره لوی نعمت دی نوداعلی جنتی لپاره چې الله تعالی کوم نعمتونه تیـار کړیدي هغـه بـه څومره اوچت وي. کله چی د ادنی جنتي په جنت کی دا درجه وي نوبیا به دهغه شهید لپاره څومره اوچت اوچت نعمتونه وي چی الله تعالی په نورو خلکو باندی سل درجې فضیلت ورکړېدی .

دهرو دوو درجو ترمنځ داسمان او زمکې ترمنځ چې څومره فرق دی هومره فرق به وي بلکې ذوالجلال والا کرام ذات چې دشهید لپاره په خپل خصوصي نقل سره چې کوم انعامات تیارکړي دي هغه لاڅه رقم دي .

په الله قسم چې انسـاني فهـم دالله تعـالی د هغـو نعمـتونوچی دشـهید لپـاره یـې تیـارکړي نـه حصرکولې شي او نـه وهـم دهغو کیفیت او څرنګ والی تعبیرولی شي . اونه هم عقل یې احاطه کولې شي. لکه چی الله تعالی فرمایلی دي:

﴿ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَا أُخْفِيَ لَهُمْ مِنْ قُرَّةِ أَعْيُنٍ جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾

( السجده : ۱۷.)

هیڅوک نه ده چی الله پاک یې دسترګو دیخوالي لپاره ددوی دعملونو په رڼا کې کوم شی پټ کړیدي .

---

^۱^ـ رواه البخاري في الجهاد : ٤/ ٢٠٣

(( عـن ابی هریرة ﷺ ، عن رسول الله ﷺ فيما يرويه عن ربه قل : اعددتُ لعبادي الصالحين مالا عينٌ رأت ولا اذن سمعت ولاخطر على قلب بشر.[1] ))

ابی هریره ﷺ لــه رسول الله ﷺ نه اوهغه صلی الله علیه وسلم لـه خپل رب نه روایت کوي چې نبی کریم ﷺ وفرمایل:مادخپلو نیکو بندګانو لپاره هغه نعمتونه تیار کړیدي چې هغه نه سترګو لیدلی دي اونه غوږونو آوریدلي دي اونه دبشر په زړه کې دهغه په باره کې څه خیال پیداشویدی.

(( عـن أبـي هريـرة ﷺ ،عـن رسـول الله ﷺ : سأل موسى ربه عزوجل : ما أدنى أهلِ الجنة منزلة ؟

فقـال الله له : هورجـلٌ يجي ءُ بعدَما يدخلُ أهلُ الجنة الجنة. فيُقالُ له: أدخُل الجنة !

فيقول : ربٌّ وكيف ، وقدنزل الناسُ منازلهم وأخذوا أخذاتهِمْ؟

فيقل له : أترضى أن يكون لك مثل مَلِكٍ من ملوكِ الدنيا ؟

فيقول : رضيتُ يارب.

فيقول : لك ذلك ، ومثله ، ومثله ، ومثله!

فقل في الخامسة . رضيت يارب.

فيقول : هذا لك ، وعشرة أمثاله!! ولك ما اشتهتْ نفسُك ، ولذّت عينك !

فيقول : رضيتُ يارب.

---

[1]ــ رواه البخاري في بدء الخلق : ٤/ ٦٨ . ومسلم في الجنة ونعيمها : ٤/ ٢١٧٤.

قل موسى : ربّ فأعلاهم منزلة ؟

قـل : اولـئك الذيـن أردَت ، غرسْتُ كرامتهم بيدي ، وختمتُ عليها، فلم ترعين ، ولم تسمع أُذُن ، ولـم يخطرْ على قلب بشر )).[1]

ابی هریره ﷺ لـه رسول الله ﷺ نه روایت کوي چی موسی علیه السلام لـه خپل عزوجل رب نه سوال وکړ چې په جنت کی د ادنی جنتي مرتبه څه وي ؟ الله تعالی موسی علیه السلام تـه وفرمایل : ادنی مرتبه دهغه سړي دی چی دجنتیانو لـه داخلیدونه وروسته به راوستلی شي او ورته به وویل شي چی جنت ته ننوځه. هغه به وايي ای ربه! خلکوپه جنت کی خپل خپل محلونه او مرتبې ترلاسه کړې دي الله تعالی به ورته وفرمايي : اياته داخوښوی چې ته ددنیا دیو پاچا په شان شې ؟

هغه به وايي : ای ربه ! زما خوښه ده.

الله تعالی به ورته وايي : ستالپاره دا اوددی پشان نور ، نور اونور نعمتونه هم دي.

پنځم ځل به وايي : ای ربه ! زه خوښ یم.

الله تعالی بـه ورتـه وايـي : داهـم ستا لپاره دی اوددی پشـان لـس نـور هـم دي، ستالپاره هغه څه دي چې ستازړه يې غواړي اوسترګې دی وربانده یخیږي.

هغه به وايي : ای ربه ! زه خوښ یم.

موسی علیه السلام وویـل : ای ربه ! دلوړې مرتبې جنتي به څه درجه وي؟ الله جل جلالـه ورته وفرمایل : مادهغوی میلمستیا اوعزت پخپل لاس تیار کړیدی اوپر هغه می تاپه لګولې ده. نه سترګو هغه لیدلي دي، نه غوږونو دهغونعمتونو نوم اوریدلی اونه هم دبشر په زړونو کې دهغونعمتونو خیال تېرشویدی.



---

[1] ـ رواه مسلم في الايمان : ۱/ ۱۷۶

# د ېرشم بـــاب

## د غنیمت په مال کې خیانت کول حرام او لویه ګناه ده

غـلول یـا خیـانت دېـته وېل کیـږي چې دلښکر امیر یـابل کـوم مجـاهد دمجاهدینو ترمنځ دغـنیمت لـه مـال نـه د هغـه لـه ویشـل کېدونـه وړاندی څه څیز دځپل ځان لپاره واخلي. اودویشلو لپاره یې ویشونکي تـه نـه راوړي داحرام دی برابره خبره ده که لږ غونډی یې آخستی وي یاډېر، داپه غلا اوخیانت کې حسابیږي دیته ځکه غلول وېل کیږي چې لاسونه ډډی لـه آخستلو نه بنداوتړل شویدي .

﴿ وَمَـا كَـانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَغُلَّ وَمَنْ يَغْلُلْ يَأْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثُمَّ تُوَفَّى كُلُّ نَفْسٍ مَا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴾ [. ال عمران : ١٦١. ]

پیغمبر هیڅ شې نـه پټوي او هرڅوک چې یو شې پټ کړي نو دقیامت په ورځ به پټ کړی شی راوړي او بیـا بـه هرچاته دهغـه دکړو بدل پوره ورکړای شي او هیڅ ظلم به پرې ونه کړای شي.

دغـنیمت پـه مـال کـې خیانت کول لـه لویو کبیرو، هلاکوونکو ګناهونو څخه ده اوپه دی بـاندی ډېر لـوی وعیـد راغـلی دی. لـه خیانت نه دمنعه کولوپه هکله ګڼ احادیث موجود دي. اودهغـه چاپـه بـاره کـې سخت وعیدونـه راغـلی دي چې دغـنیمت پـه مال کی خیانت کوي.

(( عـن عـبدالله بن عباس رضي الله عنهما قل : حدَّثني عمر رضي الله عنه قل: لماكان يوم خيبر،أقبل نفرٌمن أصحاب النبى ﷺ،فقالوا:فلانٌ شهيد،وفلانٌ شهيد.

حتى مَرّوا على رجل ، فقالوا : فلانٌ شهيد!

فقل رسول الله ﷺ كلاً. إني رأيته فى النار في بردةٍ أو عباء ة غلَّها.

ثـم قـا ل: يـــاابن الخطـاب. اذهـب فـناد فـى الناس أنه لايدخل الجنة إلا المومنون . [1]))

له عبدالله بن عباس ﷺ نه روايت دی هغه وایي چی عمر ﷺ ماته وویل :

دخيبر دجنګ په ورځ دنبی کریم ﷺ له اصحابونه څوکسان راغلل او ویې فرمایل: فلانکی شهید شو اوفلانکی شهید شو. تردی چې له یوسړي نه تېرشول او ویی ویل چی دافلانـکی شـهید دی. رسـول الله ﷺ وفـرمایل : نـه هیڅکلـه نـه مادا پـه اورکـې لیدلی دی ده دغنیمت لـه مال نه څادر یاچپنه یې پټه کړی وه.

بیـایی وفـرمایل : ای دخطـاب زویـه ! لاړشـه اوپـه خلکوکی اعلان وکړه چې په جنت کې له مؤمنانونه پرته بل څوک نه شي داخلیدلې.

داحدیث پدی خبره دلالت کوي چی چادغنیمت لـه مال نه کوم داغوستو اوپه سرولو شیان غلا کړل نو هغه ته په دوزخ کې داسې لباس آغوستل کیږي چی اوربه وربـاندی بل وي.

(( عن أبی هريرة ﷺ قال : خرجنامع رسول الله ﷺ إلى خيبر.ففتح الله علينا، ولم نغنم ذهبا ولافضة ، وإنـما غنمنا الـمتاعَ والطعامَ والثيابَ.

ثـم انطلقـنا إلى الـوادي – وادي القرى – ومع رسول الله ﷺ عبدله وهبه له رجلٌ من جذام يدعي رفاعة بن زيد

فلمانزلنا الوادي قام عبد رسول الله ﷺ يحلُ رحله ، فرمي بسهم ، وكان فيه حـتفه . فقلنا : هنيئاً له الشهادة يارسول الله !قال ﷺ : كلاً. والذي نفسُ محمدٍ

---

[1] ـ رواه مسلم في لايمان : ۱/ ۱۰۷.

بـيده ، إنَّ الشَّمْلَةَ لتلـتهبُ عـليه نـاراً، أخذهـا مـن الغـنائم . لم تصـبها الـمقاسم!

ففـزعَ الناس، فجاء رجلٌ بشراكٍ أو شراكين ، فقال : أصبتُ هذايوم خيبر! فقل رسول الله ﷺ (( شراكٌ أوشراكان من نار)).[1]

لـه ابی هريره رضی الله عـنه نه روايت دی هغه وايي چی موږ لسه رسول الله ﷺ سره خيبر تـه لاړو الله تعـالی مـوږ تـه بری راکړ. خو موږ نه سره زر په غنيمت کې ونيولي اونـه سپين زر ، بـلکې موږ سامان، لباس او خوراکي شيان په غنيمت کې ونيول بيا وادی القری نومي ځای تـه لاړو، لـه رسول الله ﷺ سره هغـه غـلام هم موجود وو چې دجذام دقبيلی يوسړي رفاعـه بن زيد ورتـه هبه کړی و. کله چې مـوږ دغـه درې تـه راغلو نـو درسول الله صلی الله عـليه وسلم غلام دخپل سامان په پرانستلويې شروع وکړ په سامان کې دهغـه مرګ هم و. په دی وخت کې لـه کوم ځای نه ېرغشې راغې پرهغه ولګيد اوځای په ځای مړشو. موږ وويل :يارسول الله ده ته دی شهادت مبارک وي. نبی ﷺ وفرمايل : هيڅکله تـه قسم دی په هغه ذات چې زماروح دهغه په واک کی دی کوم څادر چې ده دغنيمت دمال لـه ويش نه مخکې آخستی و هغه ورباندې لمبی وهونـکی اور جوړشـويدی ددغې خبرې پـه آوريـدو سـره خـلک ډېـر سـخت وويـريدل. يوسړي يـوه يـادوه تسمې پـه لاس کې نيـولی وی او راغی ويی ويـل دامی دخيبر پـه جنګ کې آخستی وې. رسول الله ﷺ وفرمايل : ( که واپس کړی دی نه وای نو ) دايوه يادوه تسمې د اور دي.

(( عـن عـبدالله بن عمروبن العاص رضی الله عنهما : قل : كان على ثقل (متاع)رسول الله رجلٌ يقالُ لـه ( كَرْكَرَةٌ ) فماتَ !

---

[1]ـــ رواه البخاري في الايمان والنذور : ٧/ ٢٣٥ ومسلم في الايمان : ١/ ١٠٨

فقال رسول الله ﷺ هوفى النار فذهبوا ينظرون اليه ، فوجدوا عباءة قدغلها.[1]))

له عبدالله بن عمروبن العاص ﷺ نه روايت دى هغه وايي: درسول الله ﷺ په سامان باندى يوسړى مقرر و چې نوم يې كر كره و. هغه مړشو نو رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه په جهنم كى دى. خلك چې دهغه خواته لاړل نو ګوري چې دهغه په تن كى دغنيمت له مال نه يوه چپنه وه چې هغه يې دمال غنيمت نه غلا كړى وه.

د غنيمت كوم مال چې نه آغوستل كيږي اوڅوك يې غلاكړي هغه به دقيامت په ورځ پخپلو اوږوبار كړې راوړي او ددى خبرې دليل دالله تعالى داقول دې:

﴿وَمَنْ يَغْلُلْ يَأْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ﴾ ال عمران :١٦١.

او هرڅوك چى يو شى پټ كړي نو دقيامت په ورځ به پټ كړى شي راوړي.

(( عن أبى هريره ﷺ قال : قام فينا رسول الله ﷺ ذات يوم ، فذكر الغلول فعظَّمه وعظَّمَ أمره ، حتى قال : لاألفينَّ أحدكم يجيىء يوم القيامة على رقبته بعيرٌ له رغاء ، فيقول : يارسول الله أغثني. فأقول : لاأملكُ لك شيئًا قد أبلغتُك ! لاألفينَّ أحدكم يجيىء يوم القيامة على رقبته فرسٌ له حَمْحَمةٌ ، فيقول: يارسول الله أغثني ، فأقول: لا أملكلك شيئًا ، قد أبلَغتُك!

لاألفينَّ أحدكم يجيءُ يوم القيامة على رقبته شاة لها ثغاءٌ ، فيقول يا رسول الله اغثني ، فأقول : لا املك لك شياً قد ابلغتك!

لا الفين احدكم يجيءُ يوم القيامة على رقبته نفس لهاصياح ،فيقول: يارسول الله أغثني. فأقول: لا أملكُ لك شيئًا قد أبلغتُك!

---

[1] ــ رواه البخاري في الجهاد :٤/ ٤٧

لا ألفـينَّ أحدكـم يجي ءُ يوم القيامة على رقبته رقاعٌ تخفق ، فيقولُ : يارسولَ الله أغثني ، فأقول: لا أملكُ لك شيئاً ، قد أبلغْتُكَ !

لاألفـينَّ أحدكـم يجي ءُ يـوم القيامة على رقبته صامِت ، فيقول:يارسول الله أغثني ، فأ قول : لا أملكُ لك شيئًا قد أبلغْتُكَ)).[1]

لـه ابی هريره ﷺ نه روايت دی هغـه وايي :يوه ورځ رسول الله ﷺ زمـوږ په منځ کې ودرېد اودخيانت پـه بـاره کې يې خبرې اترې وکړې، خيانت يې دېره لويه اوبده ګناه وګڼله اوتردی يې وويل : له تاسونه دی څوک داسی ونه ګورم چې دقيامت په ورځ په داسې حال کې راشي چی پـه څټ باندی يې اوښ وي اوهغه بړ بړيږي. هغه سړی به ماتـه وايي ای د الله رسوله ! ماخلاص کړئ، زه بـه ورتـه وايـم زه تاته هيڅ ګټه نه شم رسولی . ماخوپه دنياکې تاته دالله حکم رسولې و.

زه ډې پـه تاسو کـې داسی څوک ونـه ګـورم چې دقيامت په ورځ په داسی حالت کې راشي چې پـه څټ بـاندی يې اس وي اوهغـه خنيږي. هغه سړی به ماته وايي ای دالله رسوله ! لـه ماسره مدد او مرسته وکړئ، زه به ورته وايم زه هيڅ واک اواختيار نه لرم چې لـه تاسره مرسته وکړم. مـاخو دالله حکم در رسولی و، زه دې په تاسو کې داسې څوک ونه ګورم چې هغه دقيامت په ورځ په داسې حالت کې راشي چې په څټ باندی چيلی وي اوهغـه بـاء بـاء آوازکوي. هغـه بـه وايی ای دالله رسوله لـه ماسره مرسته وکړئ. زه بـه ورتـه وايـم زه هيـڅ قسـم واک او اختيار نـه لـرم پـه دنيـا کـې مـې دالله حکمونه درته بيان کړي وو.

زه دی پـه تاسو کې داسې څوک ونـه وينم چې دقيامت په ورځ هغه په داسې حالت کې راشي چی پرڅټ يې نفس ( غلامـان وينځی وغيره ) وي اوهغه آواز کوي. هغه ماتـه ووايي يارسول الله ! لـه ماسره مرسته وکړئ اولدينه مې خلاص کړئ، زه به ورته

[1]ـ رواه البخاري في الجهاد : ٤/ ٣٦ ومسلم في الامارة : ٣/ ١٤٦١

ووایم : زه هیڅ واک او اختیار نه لرم، ماپه دنیاکې تاسوته دالله حکمونه بیان کړي وو.

زه دی په تاسو کې داسې څوک ونه وینم چې دقیامت په ورځ په داسې حالت کې راشي چې په شټ باندې یې هغه پاڼی وي چې دخلکو حقوق په کې لیکل کیږي اوهغه وربانديې خوځیږي هغه به ماته وایي: ای دالله رسوله ! له ماسره مرسته وکړئ زه به ورته ووایم ، زه له تاسره هیڅ نه شم کولې، ماتاته په دنیاکې دالله حکمونه رسولي وو.

زه دی په تاسو کې داسې څوک ونه مومم چې دقیامت په ورځ په داسې حالت کې راشي چې په شټ باندې یې ( یعنې سره زر سپین زر وغیره ) سور وي. هغه به وایي یارسول الله ! له ماسره مرسته وکړئ. زه به ورته وایم زه له تاسره هیڅ نشم کولې. ماتاته دالله دین بیان کړی و.

دځناور په آوازونو اودکاغذونو دپاڼو په حرکت او خوځیدوکې داحکمت دی چې کوم څیزیې پټ کړی وي هغه به پخپل آواز پخپله ژبه سره شور کوي. هغه به ویروي اودخلکوپه منځ کې به رسواکوي. ټول خلک به دهغه خیانت پخپلو سترګو ویني. په سخت بیرو بار کی په شټ باندی دهغو دسوررولو په وجه به هغه ته ډیر سخت تکلیف وي. خوله به وربانډی ماته وي اوپه ډیره سخته ویره کی به وي.

ابن عساکر روایت کوي چې یوسړی دجهاد لپاره ووت خوپه لاره کې دهغه سپارلۍ مړه شوه هغه مالک بن عبدالله الحثعمی ته راغی. دهغه په وړاندې دغنیمت د مال یوترکي آس تړل شوې و. هغه ته یې وویل : ای امیرصاحب! دغه آس ماته راکړئ.

امیر ورته وویل : زه ددی اس د اوچتولو قدرت نه لرم. هغه ورته وویل زه تاته دانه وایم چې اس اوچت کړئ بلکې دا وایم چې ماته یې راکړئ .او ماوربانډی سپورکړئ امیر ورته وویل داد غنیمت اس دی که چیرته یې زه تاته درکړم نوزه به خیانت ګر وګرځم. او الله تعالی فرمایي : ( ومن يغلل يأت بما غلّ يوم القيمة ) اوڅوک چې

خیانت وکړي هغه دقیامت په ورځ له هغه څه سره راځي چی خیانت یې کړیدی . زه ددی طاقت نه لرم چې دقیامت په ورځ دا اوچت کړم .

(( عـن زيدبن خالد رضي الله عنه أنَّ رجلاً من أصحاب النبي ﷺ توفي يوم خيبر .فذكروا ذلك لرسول الله ﷺ ، فقال: صلوا على صاحبكم!

فتغيرتْ وجوهٌ لذلك ، فقال : إنَّ صاحبكم غلَّ في سبيل الله!!

ففتشْنا متاعه ، فوجدنا خرزاً من خرزيهود ، لايساوي درهمين!!)).[1]

له زيدبن خالد ﷺ نه روايت دی چې دنبی کریم ﷺ له اصحابونه يوسړی دخيبر په ورځ وفات شو. خلکو درسول الله ﷺ په وړاندی دهغه يادونه وکړه. هغه ﷺ وفرمايل : په خپل ملګري باندی دجنازې [1] مونځ ولولئ. په دی خبره د ډيرو اصحابو رنګونه بدل شول. رسول الله ﷺ وفرمايل : ستاسې ملګري دالله په لاره کې خيانت کړيدی .

موږ چې دهغه سامان ولټولو نو ديهودانودغميو نه يو غمی ياد هارونو نه يو هارموېکې پيداکړه چی قيمت يی دوه درهموته هم نه رسيده .

((عـن العـرباض بـن سـارية رضـي الله عـنه ، أنَّ رسـول الله ﷺ كان يأخذ الوبـرة مـن فـيء الله ، فيقـول: مـالي مـن مـثلِ هـذا إلاَّ مثلَ مالأحدكم ، إلاَّ الخمـس ، وهـو مـردودٌ فيكـم ، فـأدوا الخيطَ والْمِخْيَطَ فما فوقهما ، وإياكم والغلول ، فإنه عارٌ ونارٌ وشنارٌ على صاحبه يوم القيامة .)) [2]

له عرباض بن ساريه رضی الله عنه نه روايت دی چی رسول الله ﷺ به دفی دمال نه يوويښته اوچتولو اوفرمايل به يې چی په دی کی له پنځمې حصې نه علاوه زما هم

---

[1]ـ ابو داود : ۳/ ۱۵۵ . والنسائي : ٤/ ٦٤ . واحمد : ٤/ ١١٤ وابن ماجة : / ۹۵۰ ، واسناده صحيح .

[2]ـ مسند احمد : ٤/ ۱۲۸ . ومجمع الزوائد : ٦/ ۳۳۷ والحديث صحيح لغيره

همغومره حصه ده څومره چي ستاسوده. پنځمه حصه هم ستاسو طرف ته راګرځي پس تاسې تار، دګنډلو ستنه اولدينه پورته شيان د غنيمت جمع کوونکي ته ورکوئ اوله خيانت نه ځان ساتئ ځکه چې دا دقيامت په ورځ شرم او قباحت او اور دی.

(( عـن عمـروبن شـعيب ، عـن أبيه ، عن جد ه ، رضي الله عنه ، في قصة وفدهـوازن ، أنـه دنا النبيُّ ﷺ من بعير، فأخذ وبرةً من سنامه ، ثم قال : " يا أيـهاالـناس : إنـه ليـسَ لـي من هذا الفي ء شي ء ، ولا هذا، إلاَّ الخُمسُ ، والْخُمُـسُ مـردودٌ عـليكم ، فأدوا الخياط والـمِخْيَطَ! فقا مَ رجلٌ في يد ه كبَّةٌ من شعر، فقال : أخذتُ هذا لأصلحَ بها برذعةً لي!

فقـا ل ﷺ : أمَّـا ماكـان لـي ولـنبي عبدالمطلب فهولك! فقال الرجل :أمَّا إذا بلغت ، فلا أرَب لي فيها ، ونبذها! )).[1]

عمروبن شعيب له خپل پلار نه اوهغه له خپل نيکه نه دهوازن دوفد دکيسې په باره کې روايت کوي چي نبی کريم ﷺ ديو اوښ په خواکې ودريد دهغه له کوب نه يې يوه ويښته په لاس کی ونيولو او بيايی وفرمايل :

ای خلکو! دفی پـه دغه مال کې زماڼپاره لـه خمس نه پرته بل هيڅ برخه نشته خمس هم بيرته تاسوته راګرځي. نوتاسې تـار اوستنه هم دغنيمت غونډوونکو ته ورکوئ يوسړی ودريـد چی په لاس کی يې د وړيو يوکلوله وه. هغه وويل مادا آخستی ده چې خپـل دکجاوې لاندی چې کوم ترپال اچول کيږي وربانديی جوړکړم رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : که کوم زما اودعبد المطلب د زامنو وي نوداستاشو. ( يعنې په دې کې چې کومه برخه زما اوبنوعبدالمطلب وي نو هغـه ستاشوه مونږ درته بخښلې ده او نورو مسلمانانو تـه اجازه واخله ځان ته يې حلاله کړه ) سړي وويل : چې دادومره مهم څيز

[1]_ ا بو داود : ۳/ ۱٤۲ . والنسائي ۷/ ۱۳۱ . واحمد ۲/ ۱۸٤ والحديث صحيح لغيره .

دی او دومره سختي ته خبره ورسيده نوبيازما حاجت ورته نشته داخبره يې وکړه اوکلوله يې خطاکړه.

(( عـن عبـدالله بن شقيق عن رجل من بلقين قال : أتيتُ رسول الله ﷺ وهو بوادي القرى ، وهويعرض فرساً ، فقلت: يارسول الله ماتقول في الغنيمة ؟

قال ﷺ : لله خُمُسُها ، وأربعةُ أخماسِها للجيش .

قلت : فما أحدٌ أولى به من أحد؟

قال ﷺ :لا. ولاالسَّهمُ تستخرجُه من جنبك، لستَ أحقَ به من أخيك المسلم )).[1]

عبدالله بن شقيق دبلقين لـه يوسړي نه روايت کوي هغه وايي چې زه رسول الله ﷺ حضور ته راغلم اوهغه دقرا نومې وادي ( دره ) کې و..ما ورته وويل: يارسول الله ﷺ : دغنيمت په باره کې څه لارښوونه کوئ ؟

هغه ﷺ وفرمايل : پنځمه حصه د الله ده او پاتې څلور حصې دمجاهدينو دلښکر لپاره دي. ماعرض وکړ چې ايايه دې کې يوکس دبل نه زيات غوره مستحق نه دی ؟ هغه ﷺ وفرمايل نه، نه هغه غشی چی ته يې له خپل اړخ نه راباسې ته په هغه کی هم دخپل دويم ورور نه زيات حقدار نه يې .

( يعنې کـه ددښمن کوم غشې ستاپه اړخ کې ولګيږي او ته يې راوباسې نو بياهم ته له بل مسلمان ورور نه دهغه زيات حقدار نه يې )



[1]ـ السنن الكبرى للبيهقي : ٦/ ٦٢٤ وصححه ابن كثير وقواه الذهبي .

# فصل

## دخیا نت کونکي دنیوي سزاګانې

په دی خبره ځان ښه پوه کړئ چې هرچاچی دالله په لاره کې خیانت وکړ هغه د دوه عذابونو وړوګرځېده. یو دآخرت عذاب اوبل ددنیا عذاب.

دآخرت دعذاب په باره کې خوبه وړاندیني فصل کې احادیث تېرشول په هغو کی داخبره بیان شوه چې څوک په یوځیزکی خیانت وکړي الله تعالی هغه په اور کې دننه کوي اود اور جامی به وراغوندي. اوکه د آغوستوپه ځیزونو کی یې خیانت نه وي کړی بلکې په نورو شیانو کې خیانت کړی وي نو دقیامت په ورځ به په داسې حالت کی حاضربږي چې هغه مال به دهغه په څټ باندی باروي او هریو ځیز به پخپل ژبه اولغت سره آواز کوي. اودټول مخلوق په مخکي به بې رسواکوي او کله چې دغه خیانت کوونکی سړی دالله تعالی له رسول نه د سفارښت او مرستې غوښتنه وکړي نو رسول الله ﷺ به ورته ووایي : زه ستا لپاره هیڅ نشم کولې . ماپه دنیاکې تاسوته دالله تعالی حکمونه رسولي وو. اودغه خیانت ګربه دآخرت په ورځ په شهیدانو کې نه حسابیږي.

ضحاک بن مزاحم دالله تعالی ددغه قول په باره کي ویلي دي :

﴿ اَفَمَنِ اتَّبَعَ رِضْوانَ الله كَمَنْ بآء بسخطٍ من الله ﴾ [ال عمران: ١٦٢ ]

ایا هغه څوک چی دالله په خوښي پسې ګرځي دهغه چاپشان دی چی دالله په قهر اخته وي.

اَفَمَنِ اتَّبَعَ رِضْوانَ الله( لدینه هغه خلک مراد دي چی دغنیمت په مال کې خیانت یې نه وي کړی.

(كَمَنْ بآء بسخطٍ من الله)له دې هغه خلک مراد دي چی دغنیمت په مال کې یې خیانت کړی وي.

په دنیاکې دخیانت اثردادی چی کله په یو قوم کې خیانت پیداشي نوالله تعالی دهغوی په زړونو کې رُعب آچوي اوخپله مرسته ترینه بندوي. امام مالک رحمه الله له ابن عباس ﷺ نه روایت کوي چې کله په یوقوم کې خیانت او تګي پیداشي نوالله پاک دهغوی په زړونو کې ویره آچوي اوخپله مرسته ترینه بندوي. اوکله چې په یو قوم کې زنا خوره شي نوپه هغو کی مرګونه ډیریږي، اوکله چې یوقوم په تله اوناپ کی کمی کوي الله تعالی له هغوی نه رزق قطع کوي. اوکوم قوم چې په ناحقه فیصلې وکړي نوپه هغوی کی وینه ډیره تویږي. اوکوم قوم چې خپل عهدونه ماتوي الله تعالی پرهغوی دښمن مسلط کوي.

(( عـن أبي ذر الغفاري رضي الله عنه قل : قال رسول الله : (( إن لم تغُلَّ أُمَّتي لم يقُم لهم عدوٌّ أبداً )).[1]

له ابی ذر الغفاري ﷺ نه روایت دی هغه وایي چې رسول الله ﷺ فرمایلی دي چې که چیرته زما امت په مال غنیمت کی خیانت ونکړي نودښمن به همیشه لپاره دهغوی مخې ته ونشي دریدې. لهذا حبیب بن مسلمه الفهري ته ابوذرالغفاري وویل : ایا دښمن ستاسې په مقابل دوزې دلوشلو په اندازه ودرېدلی شي ؟ حبیب بن مسلمه وویل هو، ابوذر ورته وویل دکعبی په رب قسم چې تاسې خیانت کړیدی.

عمربن الخطاب ﷺ به له جنګ نه راغلي شخص نه تپوس کاوچې ایا دښمن ستاسې په وړاندې مقاومت وکړ؟ که هغه به وویل چی هو نوهغه ﷺ به ورته ویل چی تاسی خیانت کړیدی.

علماو دخیانت ګر په سزاکې اختلاف کړیدی. جمهور علماء وایي چې خیانت کوونکی دی ووهل شي اومال ومتاع دی ورته وسوځول شي.

ابوداود له صالح بن محمد نه روایت کړیدی هغه وایي چې موږ له ولیدبن هشام سره غزا وکړه اوله موږ سره سالم بن عبدالله اوعمربن عبدالعزیز وو. یوسړي خیانت وکړ. نو ولید امر وکړ چی مال اومتاع دی ورته وسوځول شي، دغنیمت له مال نه دی

---

[1]_ مجمع الزوائد : ۵/ ۳۳۸ ورجاله ثقات .

ورته برخه ورنکړې شي اوپه خلکو کی دی وګرځولی شي. جمهور علماء وايي چې دخيانت کوونکي مال خودی وسوځول شي ليکن دهغه سورلی، جامې وسله کتابونه مصحف او قرآن کريم اوهغه مال يې چې خيانت کړيدی هغه دی نه سوځوي. اولدينه علاوه نور ساز او سامان دی ورته وسوځوي .

که دغنيمت هغه مال يې هلاک کړی وي نو دهغه تاوان به ترېنه آخستل کيږي اوهغه به په بيت المال کی تاويليږي. اوځينې علماو ويلي دي چې چادغنيمت په مال کی خيانت کړی وي نودهغه دا سامان به نه سوځول کيږي اونه به ورته سزاورکولې شي.

امام قرطبي رحمه الله پخپل تفسير قرطبي ۴/ ۲۶۰ کې فرمايي : کله چی يوسړی دغنيمت په يوڅيزکې خيانت وکړي اوداځيز له هغه سره وموندلی شي نودابه ترينه آخستل کيږي. هغه ته به ادب ورکول کيږي اوسزا به ورته تعزير ورکول کيږي. داد امام مالک امام شافعي او امام ابوحنيفه مذهب دی امام نووي دمسلم په شرح کې ويلي دي چې دخيانت کوونکي دسزا په څرنګوالي کې اختلاف دی.

جمهور علماء اود ښارونو امامان وايي د امام او امير د ويلو مطابق سزادې ورکړل شي اودهغه مال اومتاع دی ونه سوځوي. داد امام مالک ، امام شافعي اود امام ابوحنيفه مسلک دی.

اوامام ابوبکر بن المنذر ويلي دي چی له څو علماونه علاوه نورو ټولو علماو په دی خبره اتفاق کړيدی چې کله مجاهدين دارالحرب ته داخل شي نو هغوی لپاره دا اجازه ده چې ددښمن له خوراکي شيانو څخه خوراک څښاک وکړي اودهغوی وابښه دی خپلو ښارويو ته واچوي. دخوراک په ټولو څيزونو کې ورته رخصت دی اوګياه هم په همدی کی شامله ده . هيچاته رواندہ چې ددښمن مال ځانله واخلي بغير دخوراکي شيانو اوګياه نه چې خپلو ښارويو ته واچوي. همدغه راز مجاهدينو ته داهم روادہ چې ددښمن له ونو نه ميوې وخوري خوداورته رواندي چیځان سره يې بار کړي. همدغه رازددښمن له دوانه هم صرف دخپل علاج په اندازه آخستی او مصرفولې شي.

پاتې شو ددښمن نور مال اومتاع نومجاهدينو ته روانده چې ځانته واخلي اوکه چيرته کوم شی ځان لپاره واخلي نو هغه قرضدار دی اودهغه قيمت به ورکوي. مجاهدينو ته داهم رواده چې ددښمن له زمکې نه دجهاد اوسفرپه وخت کی له خوراکونونه توښه واخلي داهله چې ورسره توښه نه وي. اوکه چيرته ورسره خوراک توښه وي نوبيا ورته جائز نه دی چې ددښمن له ډوډۍ فصل او ميوونه څه واخلي .



# پود یـرشم باب

## د مسلمانو بندیانو ، د آزادولو، د هغوی لپاره د فدیې ورکولو اود هغوی دخلاصولو لپاره دجهاد کولو حکم

الله تعالی فرمایلی دي :﴿ وَمَا لَكُمْ لاَتُقَاتِلُوْنَ فِيْ سبيلِ اللهِ والْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الـرِّجَالِ والنسآ ءِ والولـدانِ الَّذِيـنَ يقُولُـونَ رَبَّنآ اخرِجْنآ من هذِهِ الْقريَةِ الظَّالِمِ اهلُهَاج واجعل لَّنَا مِن لَّدُنكَ ولياً واجْعَل لَّنَا مِنْ لَّدُنكَ نصيرا ﴾( النساء ۷۵ . )

اوپـرتا سـو څـه شـوي دي چې دالله پـه لار او نـاتوانو کـړو شـوو سـړیو ، ښځـو او کوچنیانو دخلاصولو لپاره جهاد نه کوئ ؟ هغوی وایي ای زمونږ ربه ! مونږ له دی کلي څخه وباسه چې اوسیدونکي يې ظالمان او تيري کوونکي دي اوستاله لورې راته یو پالونکې اوکومک کوونکې راوګرځوه . قرطبي پخپل تفسیر کې لیکلي دي چې الله تعالی دخپلې کلمې دپورتـه والـي ددیـن دبـري، د ضعیفو مسـلمانانو دخلاصون په خاطر جهادفرض کړیدې اګرکه دی مقصد لپاره انسانان هم ووژل شي. دمسلمانانو بـندیانو دخلاصـولو لپـاره پـه مسلمانانو بـاندې لازم دي چې یاجهـاد وکړي اویاپه خپلو مـالونو سره هغوی خلاص کړي. په مال سره دقیدیانو دخلاصولو کار زیات لازم دی ځکه چې داله ځان قربانولو نه آسان او مصئون دی.

امـام مـالک رحمـه الله فـرمايي چې پـه مسـلمانانو بـاندې دا واجـب دي چې دمسلمانانو بندیانو دخلاصولو لپاره خپل ټول مال فدیه ورکړي، اوپه دی مسئله کې هیڅ اختلاف نشته . پر مسلمانانو باندی لازم دي چې له بندیانو سره مواسات اوهمدردي وکړي ځکه چې همدردي او مواسات له فدیه نه آسانه ده.[1]

---

[1]_ تفسیر القرطبي : ۵ / ۲۷۹

(( عَنْ ابی موسی الاشعري ﷺ عن النبی ﷺ قال: فکوالعانی ( الاسیر) واطعموا الجائع وعودوا المریض. [1] ))

له ابی موسی اشعري رضی الله عنه نه روایت دی هغه وایي چی نبی کریم ﷺ وفرمایل : تاسي بندیان ازاد کړئ. وږوته ډوډۍ ورکړئ اود ناروغانو پوښتني ته لاړشئ.

دامام شافعي رحمه الله په نزد دبندیانو لپاه دفدیي ورکول مستحب دي، خود امام مالک او امام احمد رحمهم الله په مذهب کی واجب دي.

کله چی دښمن ته دبندي فدیه دهغه په اذن سره ورسېده نو دبندي له خلاصیدونه وروسته دزیاترو علماو په نزد په هغه باندی واجب دي چی هغه پیسي اوفدیه ورکړي چې ددی دخلاصولو لپاره بل چاورکړیدي. اوکه چیرته دهغه په حکم اواجازې نه پرته خلکو دهغه فدیه ورکړی وي نو ځینوپرهغه دپیسو ورکول واجب کړیدي اوځینو علماو ندي واجب کړي.

عمر بن عبدالعزیز رحمه الله فرمایلی چی کله یو مسلمان بندي دفدیه په مقابله کې دخپل ځان دخلاصولو معاهده کړی وي نو پر مسلمانانولازم دي چی دهغه فدیه ورکړي اودا ورته جائزنه دي چی مشرکانو ته یې واپس ورکړي .

ځکه چې الله تعالی فرمایي :

﴿ وَإِنْ يَـأْتُوكُمْ أُسَـارَى تُفَـادُوهُمْ وَهُـوَ مُحَـرَّمٌ عَـلَيْكُمْ إِخْـرَاجُهُمْ ﴾

[ البقرة : ۸۵. ]

اوکه چیرته هغوی ستاسې په لاسوکې قیدان شي نودبدلې په ورکولو سره یې خلاصوئ حال داچی دهغوی ویستل په تاسې حرام وو.

قرطبی رحمه الله دالله ددې قول :

---

[1] ــ اخرجه البخاري في الجهاد : ٤/ ٣٠

﴿ وَإِنْ اسْتَنصَرُوكُمْ فِي الدِّينِ فَعَلَيْكُمْ النَّصْرُ إِلَّا عَلَى قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِيثَاقٌ ﴾( الأنفال : ۷۲ )

په تفسیر کې فرمايي: که چېرته هغو مسلمانانو چې ددښمن له وطن نه يې هجرت نه دی کړې لـه مسلمانانو نـه دخپـل ځـان دخلاصولو لپاره دمالي اوياځاني مرستې يې غوښتنه وکړي نو پر مسلمانانو لازم دي چې دهغوی دخلاصولو لپاره مرسته وکړي ، او هغوی راخلاص کړي دا ورته جایز نه دي چې همداسې بی مرستې ذلیل يې پرېږدي. مګر په هغه صورت کې چې د مسلمانانو اودهغه قوم ترمنځ معاهده اوتړون شوې وي نوبیاد هغوی مرسته پر مسلمانانو لازمه نده بلکې دتړون دمودې ترختمیدو پورې به صبرکوي. هو کچېرې مرسته غوښتونکي مسلمانان ضعیف وي نو بیايې په مسلمانانو مرسته واجب دی او دوستي کول ورسره لازم دي لکه ابن العربي ويلي دي چې که چیرته مسلمانان کمزورې وي اوهغوی له نورو مسلمانانونه مرسته وغواړي نو پر مسلمانانو دهغوی مرسته کول ضروري ده ځکه چي ددوی ترمنځ اسلامي ورور ولي قائمه ده اودهغوی مرسته کول واجب اولازمي وي. هيڅ يو مسلمان ته روانده چې سترګې پټې کړي او په آرام ویده شي بلکې پر هغه مسلمان واجب دي چې یادهغوی دخلاصون لپاره په جهاد لاس پورې کړي اګرکه ټول مسلمانان هم له منځه ځي او یاخپل ټول مال دهغوی دنجات لپاره خرچ کړي اګرکه ورسره يو روپۍ هم پاتې نه شي. همداد امام مالک او نورو امامانو مسلک هم دی.

مګر نن سبا په خلکو څه شویدي چې خپل ورونه دکافرانو په لاسوکې قیدیان پرینبی دي حال داچې ورسره ډیرزیات مال او دولت ورسره دی خو فضول يې مصرفوي شمیر يې هم زیات دی وس يې هم رسیږي مګر بیاهم په کلاره ویده دي دهغوی په باره کې صرف انالله وانا الیه راجعون ویلی شو.ابن عساکر لیکلي چې عمربن عبدالعزیز په قسطنطینه کې بندیانو مسلمانانو ته ولیکل :

امابعدُ: تاسې خپل ځانونه په جنایت کارو مجرمینو اسیرانوکې حسابوئ. معاذ الله ، داسې نـه ده بلکې تاسې دالله دلارې بندیان یاست. تاسې پوه شئ چې کله هم زه دخپل رعیت په منځ کې څه ویشم نوستاسې کورنۍ ته له نورونه زیات اوښه شی

ورکوم ماتاسوته فلانکی دفلانکی زوی په پنځو دنانیرو سره استولی دی. که چیرته ماته ددی ویره نه وای چی دروم طاغوتان به له تاسو نه داپیسې ونیسي نو مابه لدېنه هم زیات دنانیر لیږلي وو. ماتاسوته فلان دفلان زوی استولې دی هغه به ستاسي دهر وړوکي ماشوم اوبالغ ستاسو دهر سړي او ښځې ستاسې هر آزاد اوغلام فدیه ورکوي او آزادوي به یي . تاسي خوشاله شئ اوبیا بیا خوشاله شئ والسلام.

امام نووي رحمه الله ویلي دي چی کله دښمنانو یو مسلمان یاډیر مسلمانان بندیان کړل نو راجح دادی چی دامسئله داسې ده وګڼل شي لکه چی دښمن داسلام په وطن باندی یرغل کړی وي ځکه چې د مسلمان حرمت دکور او وطن له حرمت نه غټ دی. نوپر مسلمانانو واجب دي چی دیوبندي یا دډیرو بندیانو دخلاصولو لپاره عملي ګامونه اوچت کړي.

ددی یوبل مثال په اندلس کی د مسلمانانو پاچا دمنصور بن عامر کیسه ده هغه دفرنګیانو په خلاف دجهاد لپاره وتلی و دهغوی پرضدیې په ډیرو جنګونو کې ګډون کړی او وربادی بریالی شوې و. کله چی فرنګیان له بشپړ ماتې سره مخامخ شول نو هغه ته یې دروغې وړاندیز وکړ.

منصور له هغوی نه وغوښتل چې دهغوی دپاچا لور واده دی له ماسره وکړي ډیر مالونه اوتحفې دی هم راته راکړي. هغوی داشرط ومنله اودپاچا دلور واده یې له منصور سره وکړ. داجلۍ ډیره ښکلې اوهوښیاره وه. کله چې واده یې تیاره شو نود فرنګیانو قوم جلۍ ته وویل چی دخپل خاوند سره دروغي جوړی لپاره واسطه شي. اوله مونږ سره دهغه اړیکې ښې کړه دغې هوښیارې جلۍ خپل قوم ته وویل چی عزت دجلۍ په ورونوښو کې نه لټول کیږي بلکې دسړو په نیزوکې لټول کیږي.

کله چې منصور جګړه پای ته ورسوله اوبیرته خپل مرکز ته راغی نوله یوی مسلمانې ښځې سره مخامخ شو. ورته یې وویل : ته اوخلک خو خوشالی کوئ خو زه غمګینه یم اوژاړم ، منصور ورته وویل ولې ؟ هغې وویل زما زوی فرنګیانوسره بندی دی.

منصور خپل قصرته نه ولاړ اوخپل لښکر يې سمدستي بيرته وګرځاو او حکم يې ورته ورکړچې لـه فرنګيانو سره ترهغې وجنګيږئ ترڅوپورې موچې ددغې ښځې زوی نه وي خلاص کړې. دهغې زوی خلاص کړ اوله ځان سره يې راوست الله تعالي په دغه تير امت باندی ددغو اوچتو همتونو په وجه رحم وکړ او داسلام ددين دعزت په وجه يې ورته په دار الاسلام کې خپله پوره رضاورپه نصيب کړه.

له دغوکيسو څخه يوه بله کيسه د رومي کافر کيسه ده. هغه يوه بندي عموريه مسلمانه ښځه په څپيړه ووهله هغې وامعتصماه!

چيغه ووهله اودخليفه عباسي معتصم نه يې دمدد غوښتنه وکړه.

کله چې معتصم ته دهغې فرياد اوچيغه ورسيده نو هغه يولوی لښکر تيارکړ اود عموريه په طرف يې روان کړ لـه روميانو سره يې سخته جګړه وکړه او بندي مسلمانه ښځه يې د روميانو لـه بندي خانې نه خلاصه کړه. ددين اعزاز په دی ډول راتلای شي اودمسلمانانو دپاچاهانو داشان وي ای پروردګاره ! ته ددغه همت له اجر نه معتصم مه محرومـوه . اوله دغې ښځې څخه يې چې کوم غم لرې دهغه ثواب ورته ورکړې .

دغسې يوه کيسه دانطاکيه دبنديانو ده هلته ګڼ شمير مسلمانان دکافرانو سره بنديان وو اودا سيمه دروم تر تسلط او واک لاندې وه. مسلمانانو ددغـو بنديانو دخوشې کولو لپاره جهاد وکړ هغه ځای يې فتح اوټول بندي مسلمانان يې خلاص کړل.

همدغه شان صليبيانو پنځه سوه مسلمانان راګير کړی وو اوټول يې درها ښار په بندي خانه کې يې آچولي وو . سلطان عماد الدين زنګي رحمه الله پرهغه ښاربانديې يو زبردست بريد وکړ الله تعالی مسلمانانو ته په صليبيانو باندی بری نصيب کړ ټول بنديان مسلمانان يې دهغوی له ولکې نه خلاص کړل.

عماد الکاتب ليکلي دي چې کله سلطان صلاح الدين ايوبي رحمه الله دحطين په جګړه کې پـه صليبيانوبری ترلاسه کړ نو دمسلمانانو لـه شلو زرونه زيات بنديان يې آزاد او صليبيانو څخه يې سل زره کسان ژوندي ونيول او بنديان يې کړل.

دمسلمانو مجاهدو پاچايانو همدغه حال و چې هغوی بـه چيرته هم دمسلمانو قيديانوپه باره کې خبرترلاسه کړ نو فوراً به يې دهغوی دخلاصون او آزادي لپاره په

جهاد لاس پورې کوله. نه یواځې داچې بندي مسلمانان یې خوشې کول بلکې له کفارو نه یې کسان نیول او بندیانول یې دکفارو لـه دغوبندیانو څخه به ځینی مسلمانیدل او ازادي بـه یې ترلاسه کاو. پرهغوی بـه درسول الله ﷺ دغـه لاندینی حدیث تطبیق کیده.

(( عن ابی هریرة ﷺ قال سمعت رسول الله ﷺ قل : عجب الله من قومٍ يدخلون الجنَّةَ فی السَّلاسِلِ.[1] ))

لـه ابی هریره رضی الله عنه نه روایت دی هغه وایي چې ماله رسول الله ﷺ نه واوریدل چې فرمایلی دي :

الله تعالی په هغه قوم باندی تعجب کوي چې لـه زنځیر نو سره په جنت کې داخلیږي. یعنی هغه کفار چې په زنځیرونو کې تړل شوي دمسلمانانو په لاسوکی بندیان کیږي کله چې هغوی ایمان راوړي نو جنتیان کیږي اوله زنځیرونو اوزولنو نه نجات مومي.



[1] ـ رواه البخاري في الجهاد : ٤/ ٢٠

# دوه دېرشم باب

# درسول الله ﷺ دغزاګانو، سريو او له رسول الله ﷺ نه وروسته د مسلمانانو دمشهورو جنګونو بيان

امام ابوعبدالله الحليمي رحمه الله دشعب الايمان په کتاب کې ويلي دي : چې دجهاد لـه فرض کيدونه وړاندې لـه مشرکانو سره دمحمد ﷺ څو پړاوونه وو.

په لومړي پړاو کې الله تعالى هغه ﷺ ته داوحې وکړ:

﴿إِقْرأ باسم ربِّكَ الَّذِىْ خلقَ ﴾ [ العلق : ۱]

دهغه رب په نوم دى ولوله چې ته يې پيداکړې يې.

لدينه وروسته يې ور ته دتبليغ حکم وکړ او ورته يې وفرمايل:

﴿ يَاأَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُمْ فَأَنذِرْ ﴾[ المدثر:۱-۲. ]

ترجمه: اى ځان نغښتونکيه! پورته شه او خلک وډاروه.

کله چې محمد ﷺ دالله ددين تبليغ وکړ او کفارو هغه دروغجن وګڼه نو الله تعالى ورته دصبر کولوحکم وکړ او ورته يې وفرمايل :

﴿ وَاصْبِرْ عَلَى مَا يَقُولُونَ وَاهْجُرْهُمْ هَجْرًا جَمِيلًا﴾( [المزمل:۱۰]

دکافرانو خبرې وزغمه او په غوره ډول ترې لرې والې خپل کړه.

همدغه راز الله تعالى لـه هغوى نـه د اعـراض اوګذشت امرېې وکړ او ورتـه يې وفرمايل:

﴿ وَإِذَا رَأَيْتَ الَّذِينَ يَخُوضُونَ فِي آيَاتِنَا فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ﴾ [الأنعام: ٦٨].

اوچې تاوليدل چې ځينې خلک زمونږ پرآيتونو ګوته ږدي نو ته ترينه مخ واړوه.

کله چې الله تعالی مدینه داسلام لپاره فتح کړ او انصارو اسلام راوړ نو الله تعالی مسلمانانو ته لـه مکې نه مدینې تـه دهجرت کولو حکم وکړ. او مسلمانانو ته یې وفرمایل :

﴿ وَمَنْ يُهَاجِرْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يَجِدْ فِي الْأَرْضِ مُرَاغَمًا كَثِيرًا وَسَعَةً﴾النساء:۱۰۰.

او هرڅوک چی دالله په لیار کې هجرت وکړي په ځمکه کې به دارام ډیر ځایونه اوپه ژوند کې به پراخي مینده کړي.

کله چې رسول الله ﷺ او مسلمانانو مدینې ته هجرت وکړ نوالله تعالی مسلمانانو ته لـه کفارو سره دجنګ کولو اذن وکړ اودا آیت یې نازل کړ.

﴿أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا وَإِنَّ اللَّهَ عَلَى نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ﴾ [ الحج : ۳۹ ].

هغو کسانوته چې جنګ پرې کیږي دجنګ اجازه وشوه ، ځکه چې تیرې پرې شویدی .او الله یې پرملاتړ بنه پیاوړې دی.

بیا الله تعالی مسلمانانو تـه له هغو خلکو سره دقتال حکم وکړ چې له مسلمانانو سره جنګیږي.

﴿ وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوا إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ ﴾ [ البقرة : ۱۹۰ ].

دالله په لیارو کې له هغو سره وجنګیږئ چی له تاسې سره جنګیږي خو تیرې مه کوئ بیشکه چی الله پاک تیرې کوونکي نه خوښوي.

لدینه وروسته الله تعالی لـه هغو کفارو سره دقتال حکم ورکړ چې مسلمانانو ته نژدی دي.

الله تعالی وفرمایل :

﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قَاتِلُوا الَّذِينَ يَلُونَكُمْ مِنْ الْكُفَّارِ وَلْيَجِدُوا فِيكُمْ غِلْظَةً ﴾ [ التوبة : ۱۲۳ ]

ای مومنانو! له هغو کافرانو سره وجنګیږئ چې تاسو ته نژدې دي هغوی باید له تاسې سخت والې ووینې.

بیا الله تعالی په ټولو مؤمنانو باندې جهاد فرض وګرځاو او ویې فرمایل :

﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ وَهُوَ كُرْهٌ لَكُمْ وَعَسَى أَنْ تَكْرَهُوا شَيْئًا وَهُوَ خَيْرٌ لَكُمْ وَعَسَى أَنْ تُحِبُّوا شَيْئًا وَهُوَ شَرٌّ لَكُمْ وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ﴾[البقرة:۲۱۶]

پرتاسې جنګ فرض کړای شویدی . که څه هم تاسې یې نه خوښوئ او شاید تاسو یو شې بد وګڼئ خو هغه به ستاسې لپاره غوره وي . او شاید تاسې یو څیز خوښ کړئ خو هغه به ستاسې لپاره شر او بد وي . الله پاک ښه پوهیږي او تاسې نه پوهیږئ.

الله تعالی مسلمانانو ته ددې خبرې خبر ورکړ چې قتال له الله جل جلاله سره بیعت دی .

﴿ إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيَقْتُلُونَ وَيُقْتَلُونَ وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنجِيلِ وَالْقُرْآنِ وَمَنْ أَوْفَى بِعَهْدِهِ مِنَ اللَّهِ فَاسْتَبْشِرُوا بِبَيْعِكُمُ الَّذِي بَايَعْتُم بِهِ وَذَلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴾ [التوبة :۱۱۱]

بې له شکه الله پاک له مومنانو نه دهغوی ځانونه او مالونه آخستې دي په بدل کې به یې جنت ورکوي . هغوی دالله په لیار کې جنګیږي نور وژني او دوی هم وژل کیږي . داهغه ریښتیني او پخه وعده ده چې په تورات ، انجیل ، او قران کریم کې یاده شوې وه .او ایا په وعده پوره کولو کې له الله نه بل څوک پورته شته ؟ نو ای مومنانو ! پرخپله معامله خوښ اوسئ . همدا خورا لویه کامیابي ده .

کله چې جهاد فرض شو نوددی منل اوکول اوهغه ته عملي بڼه ورکول دایمان برخه وګرځید .

خو پدې کې شرط داو چې چادالله په لار کې کفار ووژل نو دهغه لپاره جنت دی او چې څوک کفارو دالله په لاره کې وواژه دهغه لپاره هم جنت دی نو چاچې په شرط

باندی وفا وکړه هغه خپل ځان په الله جل جلاله باندی خرچ کړ . ځکه په همدې ډول اخستل او خرڅول رامنځ ته کیږي نو بنا پدې مجاهدین خرڅوونکي شول او الله جل جلاله اخستوونکې شو او هرڅوک چې په یوه معین وخت یوه بیه وکړي نو په هغه باندی دروپیو سپارل ضروري دي دلته هم همداشان مجاهدنه دامطالبه کیږي چې مطلوب شې وسپاري چې هغه دنفس او ځان قربانول ترڅو په معین وخت خپل اخستل شوې څیز ترلاسه کړي چې هغه جنت دی .

داخبره دی معلومه وي چې دهری سودا دقیمتي کیدو پته له دریو څیزونونه لګیږي .

لومړی د آخستونکي له عظمت نه ځکه چې لوی او عظمت لروونکی خلک کله هم خراب څیز نه آخلي.

دویم: د آخستونکي او خرڅوونکي ترمنځ دواسطه کیدونکي سړي له عظمت نه ، ځکه چې لوی خلک کله هم دیو معمولي څیزلپاره واسطه اودلال نه جوړیږي.

دریم : دقیمت په عظمت اوزیاتوالي سره، ځکه چې دیو خراب څیز لپاره هیڅوک غټ قیمت نه ورکوي.

پس تاسی دشهیدانو اومجاهدینو د نفسونو او ځانونو عظمت او قیمت اندازه لګولې شئ چې الله تعالی پخپله دهغوی خریدار دی، اوپه منځ کې دریم ګړې یې په اشرف المخلوق کې بهتر او غوره سړی محمد ﷺ غوندی اوچت شخصیت دی، اودسودا قیمت جنت دی چی الله تعالی دالله په لاره کې خپل ځان او مال قربانوونکوته ورکوي.

له دی عزت او فضیلت نه بل ستر فضیلت او عزت نشته چې له مؤمنانو مجاهدینو نه علاوه بل چاته نه په نصیب کیږي.

ځینو عارفینو ویلي دي چې ځانونه په درې ډوله دي:

یو هغه ځان دی چی دهغه د آزادي په وجه دهغه سودانه کیږي، داد انبیاو علیهم السلام ځانونه دي دویم هغه ځان دی چی دهغه دکسافت اوبیکاره والي په وجه څوک یې نه آخلي داد کفارو ځانونه دي.

دریم : هغه ځانونه او سرونه دي چې دهغوی دکرامت په وجه سودايي شوېده اوداد مسلمانانو ځانونه دي.

ټول مؤمنان دالله تعالی غلامان دي او غلام دداسې څيزونه مالک نشي جوړيدی چې پخپل بادار باندی خرڅ کړي. غلام په هغه صورت کې خپل مالک باندی څه څيز خرڅولی شي چی مالک هغه آزاد کړي. نولدينه معلومه شوه چې الله تعالی دخپلوکومو بندګانو دسر اومال سوداکوي هغوی يې آزاد کړيدي اوبيا سودا ورسره کوي. اوهرچا ته چې دالله په لاره کې دجهاد او شهيدکيدو او پيری کولو په صورت کې په پوره اخلاص سره دخپل ځان تسليمولو توفيق ورکړ نو موږ ته معلوميږي چی دهغه دنفس قيمت له ازل نه ورکول شويدي اوالله تعالی هغه ته پخپل فضل سره له اورنه نجات ورکړيدی.

## لطيفه

کله چې الله تعالی مؤمنانو ته خبر ورکړ چې الله دهغوی ځانونه او مالونه آخستي دي نوګوياکی مؤمنانوعرض وکړ چی ای الله ! ددی به څه قيمت موږ ته راکول کيږي؟

الله تعالی ورته وفرمايل چی جنت به درته درکوم.((بان لهم الجنة)) بياګوياکی هغوی وويل : يا الله موږ به خپله سودا تاته څنګه وسپارو؟ نو الله تعالی ورته وفرمايل : زماپه لاره کې دقتال اوجهاد په شکل کې. يعنې کله چې تاسې زماپه لاره کې جهاد وکړ اوخپل ځانونه موقربان کړل او کافر مو ووژل نو تاسې خپل سودا ماته حواله کړه اوستاسو لپاره جنت واجب شو. يقاتلون فی سبيل الله فيقتلون ويقتلون .

بيامؤمنانو وويل : ای الله ! ستا دامعمول دی چې کله ته پخپلو بندګانو کوم نعمت کوی ملايکې وربانډی ګواهانی ګرځوې اوتا پخپله فرمايلی دي چی د آخستو اوخرڅلاو په وخت کې دوه ګواهان مقرر کړئ اوضمانت وليکئ نو ددی خريد او فروخت ګواهان څوک دي ؟

الله تعالی ورته وفرمايل چی تاسې خو ددوه ګواهانو خبره کوئ او موږ په دی معامله باندی دری کتابونه ضمانت اوپرهغه عمل کوونکي دری آمتونه چې شمير نبه ډير دی چې هغه يهودان نصرانيان او مسلمانان دي ګواهان ګرځولي دي .

﴿وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنجِيلِ وَالْقُرْآنِ ﴾

گویامؤمنانو وویل : ای الله ته چې وغواړی نو یوشی محوه کولې شي اوته چې وغواړې نو یوشې ثابت اوپخپل حال کی پریښودلې شې. اوته چې څه کوی دهغه په باره کې هیڅوک درنه پوښتنه نه شي کولې.

الله تعالی دهغوی په ځواب کی وفرمایل:

﴿ومن اَوْفی بعهده من الله ﴾.

یعنی هیڅوک له مانه زیات پخپل عهد باندی وفاکوونکې نشته.

له خرید او فروخت نه وروسته یاخفگان او پښیماني وي چې کله نقص او تاوان چاته پکې معلوم شي اویاخوشالي. چې کله پکې گټه کامیابي غبطه او ښه ورکړه ووینې دمسلمانانو او الله ترمنځ دغه خرید اوفروخت څنگه دی؟ په دی اړه الله تعالی ارشاد وفرمایل:

﴿ فَاسْتَبْشِرُوا بِبَيْعِكُمْ الَّذِي بَايَعْتُمْ بِهِ ﴾

تاسې دخرید اوفروخت په دی معامله باندی خوشاله شئ ځکه دالله جل جلاله سره بیه دگټو روپیو څخه ده له همدی کبله الله جل جلاله مومنانو ته دخوشالي او گټې زیرې ورکړ.

ددی دزیات تاکید لپاره یې وفرمایل:

( وَذَلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ.) بیشکه همدالویه کامیابي ده.

همدغه وجه ده چې کله یوباندہ چی دنبی کریم ﷺ له څنگ نه تیرشو اوهغه ﷺ (اِنَّ الله اشترى من المومنين انفسهم واموالهم بان لهم الجنة ) . آیت شریف یې تلاوت کاو. اعرابی چې دا آیت شریف واورېد نو ویې ویل چې داخوډېر دگټې سودا ده په الله قسم چې موږ به هرگز داسودا له لاسه ورنکړو او نه به یې له الله جل جلاله نه دفسخه کولوغوښتنه وکړو داخبره یې وکړه اوجهاد ته روان شو. له کفارو سره یې کلک جنگ وکړ اودشهادت اوچته درجه یې ترلاسه کړه.

# فصل

## د رسول الله ﷺ غزاګانې

غزوه هغه ته وېل کيږي چې په هغه کې رسول الله ﷺ پخپله ګډون کړې وي اود مسلمانانو دلښکر قيادت يې پخپله کړې وي. دعلماو ترمنځ درسول الله ﷺ دغزاګانو دشمير په باره کې اختلاف دی.

روى مسلم عن جابربن عبدالله رضي الله عنهما : انَّ رسول الله ﷺ غزا احدى وعشرين غزوةً.[1]

مسلم له جابر بن عبدالله رضی‌الله عنهما نه روايت کوي چې رسول الله ﷺ يوويشت غزاګانې کړيدي.

زيدبن ارقم رضي الله عنه وېلي دي چې رسول الله ﷺ نوولس غزاګانې کړيدي ابن اسحاق وېلي دي چې نبی ﷺ اووه ويشت غزاګانې کړيدي اودا لاندې ليکل شوي دمحمد ﷺ له ټولونه مشهورې غزاګانې دي:

**لومړۍ د ابواء غزوه** : چې د ودان غزوه ورته هم وېلی شي داد هجرت په لومړي کال دصفر په مياشت کې پېښه شوې وه خو په دې غزوه کې جنګ نه وشوې.[2]

**دوهمه د بواط غزوه** : داد هجرت په دويم کال دربيع الاول په مياشت کې پيښه شوې وه.[3]

**دريمه غزوة العشيرة** : دادهجرت په دوېم کال دجمادی الاولی په مياشت کې واقع شوې وه.[1]

---

[1]_ رواه مسلم في الجهاد ۳/ ۱٤٤٨ .

[2]_ سيرة ابن هشام : ۲/ ۱۷۰ _ ۱۷۱ ؟

[3]_ سيرة ابن هشام : ۲/ ۱۷٦ .

**څلورمه د بدرالاولی غزوه**: داد العشیره غزانه څوشپې وروسته دهجرت په دویم کال دجمادی الاولی په میاشت کی پیښنه شوې وه. رسول الله ﷺ په دغه غزوه کې کرزبن جابر فهري پسې تللې و.ځکه چې هغه دمدینې په څارویو باندی ډاکه آچولې وه .

**پنځمه دبدر الکبری غزوه**: داهغه عظیم الشان غزاوه چې په دی کی الله تعالی اسلام ته عزت اوغلبه ورکړه دکفارو سرداران یې هلاک کړل. دادهجرت په دوهم کال دروژې دمیاشتې په اووه لسمه نیټه پېښنه شوې وه. په دی غزوه کې داصحابو شمیردری سوه لسو باندی څوتنه دپاسه وو.

((عن البراء بن عازب رضي الله عنه قال: حدَّثني أصحاب محمد صلى الله عليه وسلم ممن شهدوا بدراً أنهم كانوا عد د أصحاب طالوت ، الذين أجازوا معه النهر، ثلاثمائة وبضعة عشر رجلاً. [2]))

له براء بن عازب رضی الله عنه نه روایت دی هغه وایي چی ماته درسول الله ﷺ اصحابو ویلي دي چی کوم اصحاب دبدر په جنګ کی شریک شوي وو دهغوی شمیر دطالوت دهغه لښکر په برابرو چې له نهرنه تیرشوي وو اودهغوی شمیردری سوه لسو باندی څو تنه دپاسه وو.

(( عن عمربن الخطاب رضي الله عنه قال: لماكان يوم بدر نظر رسول الله ﷺ إلى المشركين وهم ألف ، وأصحابه ثلاثمائة وتسعة عشر رجلاً. [3]))

---

[1]_ المرجع السابق ٢/ ١٧٦.

[2]_ البخاري في المغازي : ٥/ ٥

[3]_ مسلم في الجهاد ٣/ ١٣٨٣.

له عمربن الخطاب ﷺ نه روایت دی چی کله دبدر غزا ورځ وه نورسول الله ﷺ دمشرکینو لښکر ته وکتل چې دهغوی شمیر زر تنه وو. اودمحمد ﷺ داصحابو شمیر ۳۱۹ کسان وو.

رسول الله ﷺ له خپلو ملګرو سره روان شو چې په لاره کې ورته خبوررسید چې دقریشو لښکر دمسلمانانو دمقابلې اودخپلې قافلې دژغورلو لپاره روان شوېدی .

رسول الله ﷺ اصحابو نه دمشورې غوښتنه وکړه اوهغوی ته یې دقریشو دلښکر د روانېدو خبر ورکړو. په دی وخت ابوبکر ضدیق رضی‌الله عنه ودرېد او ښې خبریې یې وکړې. بیاعمر ﷺ ودرید او ښې خبرې یې وکړې. بیاورپسې مقداد بن عمرو ﷺ ودرید او ویی ویل : یارسول الله ! تاته چې الله تعالی دڅه حکم کړی وي پرهغه عمل وکړئ موږ هم درسره یو. په الله قسم چې موږ تاسو ته هغه خبره نه کوو چې بنی اسرائیلوموسی علیه السلام ته ویلي وو چی ته اوستا رب لاړشئ او دواړه وجنګیږئ موږ همدلته ناست یوبلکې موږ تاسوته دا وایو چې تاسي اوستارب لاړشئ اوجنګ وکړئ موږ هم له تاسو سره یوځای جنګیږو. په هغه ذات قسم دی چې تاسې یې په حقه لیږلي یې که چیرته تاسی موږ برک الغماد( دیو ځای نوم ده ) ته هم بوځئ نوموږ به هلته هم درسره لاړشو اوله کفارو سره به وجنګیږو. رسول الله ﷺ دهغه خبرې خوښې کړې اودعایې ورته وکړه.

رسول الله ﷺ بیاوفرمایل : چی ای خلکوماته مشوره راکړئ . سعدبن معاذ ﷺ ودرېد او ویي ویل : یارسول الله ﷺ ! شاید تاسې زموږ( انصارو) په طرف اشاره کړې وي ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل هو.

سعد ﷺ وویل : بېشکه موږ پرتا ایمان راوړیدی اوته مو رښتونې ګڼلی یې اوموږ په دی ګواهي ورکړیده چې تاکوم دین راوړیدی هغه حق دی. موږ له تاسره عهدونه اولوظونه کړیدي اوددی خبرې موپخلی کړیدی چی موږ به ستاسې خبره آورو اوعمل به وربانديې کوو . ای دالله رسوله ! تاسې چی هرڅه کول غواړئ هغه وکړئ موږ له تاسو سره ملګري یو. قسم دی په هغه ذات چی تاسې یې په حق سره لیږلي یې که چیرته تاسې موږ دغه سمندر ته بوځئ او هلته دځان غورځولو حکم موږ ته وکړئ نوموږ به په سمندر کې خپل ځانونه لاهوکړو. له موږ نه به یوکس هم مخالفت

ونکړي. اوهیڅوک به له دښمن سره جنګیدل بد ونه ګڼي. موږ به په جنګ کې صبر او استقلال ښکاره کړو. کیدای شي الله پاک زموږ له لوري نه داسې عمل دروښايي چې تاسې وربانديې خوشاله شئ او سترګې مو وربانديې یخې شي تاسي موږ دالله په نوم روان کړئ.

رسول الله ﷺ دسعد ﷺ په خبرو خوشاله شو .

بیايي وفرمایل : تاسې روان شئ اوخوشاله شئ ځکه چې الله تعالی له دوه ډلو څخه په یوې ډلې باندې دغلبې وعده راسره کړیده. په الله قسم ګویا زه دجنګ مېدان ته ګورم اوماته دکفارو اومشرکینو شکست او مردار وژل شوي پخپلو سترګو ښکاري.[1]

بیارسول الله ﷺله خپلو اصحابو سره له دې ځای نه روان شو تردې چې بدر ته نژدې داوبو ځایونو په څنګ کې دېره شو.

حباب بن المنذر ﷺ وويل : یارسول الله ! ایاتاسې دالله په حکم دلته پړاو آچولې ده اوکه دجنګي حکمت عملي په لحاظ.او که دالله په حکم سره مو پړاو آچولې وي نوبیا موږ نه مخکې کیږو اونه وروسته کیږو .

رسول الله ﷺ وفرمایل چې پخپل رای اوفکر سره مې دجنګي حکمت عملي په لحاظ پړاو آچولې ده.

حباب ﷺ وويل یارسول الله ! داد پړاو او دېره کېدو لپاره مناسب ځای نه دی. تاسې لښکر وړاندې بوځئ ترڅو موږ دښمن ته نژدې داوبوځای ونیسو داوبوشاتنې څاګانې به ړوري کړو.

اوخپل ځان لپاره داوبو ډنډ جوړکړو. موږ ته به دڅکلو لپاره اوبه وي اوهغوی لپاره به نه وي.

رسول الله ﷺ وفرمایل : تا ډیره ښه مشوره راکړه.

---

[1]_( سیرت ابن هشام ۲/ ۱۸۸ )

رسول الله ﷺ اودهغه ټول ملګري مشرکانو ته نژدې اوبوته راغلل او همغلته ديره شول. مجاهدينو ته يې امر وکړ چې داوبو کوهيان وکنئ او ژور يې کړئ . او چې په کوم کوهي مو پړاو اړولې هلته دخپل ځان لپاره داوبو ډنډ جوړکړي اوله اوبونه يې ډکې کړي.[1]

ابن اسحاق وايي چې اسود بن عبدالاسود مخزومي ميدان ته راغې هغه ډير شرير اوبداخلاقه انسان و. هغه وويل چې ماله الله سره عهد کړيدی چې زه به دمسلمانانو له ډنډ نه اوبه څکم. يابه يې نړوم اويابه دهغه په څنګ کې مړکېږم.

دهغه دمقابلې لپاره حمزه بن عبدالمطلب ﷺ راووت کله چې له هغه سره مخامخ شو نو دتورې يو وار يې ورباندې وکړ اوپښه يې ترينه غوڅه کړه هغه د شاپه تخته وغورځيد اوله پښونه يې وينې رواني وې. خوهغه په خويدو خويدو داوبو ډنډ ته ورنژدې شو. حضرت حمزه ﷺ وروړاندې شو اوهغه يې په حوض کې وواژه داپه بدر کې دکفارو لومړی سړی و چې ووژل شو.

لدېنه وروسته شيبه بن عتبه اودعتبه ورور عتبه بن ربيع اودهغه زوی وليد بن عتبه ميدان ته راغلل او مسلمانان يې مقابلې ته راوبلل. دهغوی دمقابلې لپاره له انصارو نه دری ځوانان ميدان ته ووتل. هغوی ترېنه پوښتنه وکړه چې تاسی څوک ياست؟

هغوی وويل : موږ انصاري ځوانان يو. هغوی وويل موږ تاسوته ضرورت نه لرو( يعنې زمونږ له تاسو سره کار نشته ).

بيايې وويل : ای محمده! زموږ مقابلې ته زموږ دقوم همځولي خلک راوباسه.محمد ﷺ وفرمايل : ای ابوعبيده بن الحارث ! پاځه.ای حمزه ! پاځه ای علي! پاځه.

عبيده رضی الله عنه له عتبه سره، حمزه ﷺ ،له شيبه سره اوعلي ﷺ له وليد سره مقابله وکړه حمزه ﷺ شيبه دسترګوپه رپ کې وواژه اوهغه ته يې دجنګيدو فرصت قدری هم ورنکړ. اوعلي ﷺ هم دسترګوپه رپ کې وليد وواژه. اودعبيده ﷺ او عتبه

---

[1]ـ ( سيرت ابن هشام ۲/ ۱۹۲ ).

ترمنځ دوه دوه ګوزارونه وشول هريو خپل مقابل له ښنو وغورځاو او زخمي يې کړ. حمزه ﷺ اوعلي ﷺ دواړه وړاندی شول عتبه يې ووهلو او ويې واژه اوابوعبيده ﷺ يې اوچت کړ او دمسلمانانو صف ته يې راوست.

دواړه لښکرې دقتال لپاره چمتو شوې. رسول الله ﷺ خپل صفونه برابرکړل دهغه ﷺ په لاس کی دغشي لرګې و چی په هغه سره يې داصحابو صفونه برابرول. محمد ﷺ دغشي په لرګي سره دسواد ابن غزيه ﷺ له خنګ نه تېرشو هغه له صف نه وتلی وو هغه يې په ګېډه کې وټومبه او ورته يې وويل : ای سواده ! برابر شه .

سواد وويل : يارسول الله زما ګېډه دی په درد کړه. ماته قصاص اوبدل راکړه .

رسول الله ﷺ خپله ګېډه لوڅه کړه او ورته يې وويل : ای سواده ! زماپه ګېډه هم دالرګې وټومبه. سواد وړاندی شو او درسول الله ﷺ ګېډه يې ښکل کړه .

رسول الله ﷺ ورته وويل : ای سواده ! داسې دې ولی وکړل ؟ سواد وويل : ای دالله رسوله ! جنګ حاضردی، ماوغوښتل چې زما آخري ژوند له تاسره وي اوزما څرمن ستاله څرمن سره ولګيږي. کله چی رسول الله ﷺ صفونه برابرکړل نوخپل هغه څپري ته راغی چی ځانته يې جوړه کړی وه. ابوبکرصديق ﷺ هم ورسره و. رسول الله ﷺ خپل رب ته ددعالاسونه پورته کړل اودالله تعالی نه يی دهغې مرستې غوښتنه وکړه چې الله ورسره وعده کړې وه. رسول الله ﷺ پخپل دعاکې وويل: اللهم ان تهلك هـذه العصابة فلن تعبد في الارض .ای الله ! که تا دمسلمانانو دغه ډله ووژله نو هيڅوک به ستاعبادت ونکړي. ابوبکرصديق ﷺ رسول الله ﷺ ته وويل يارسول الله ! الله تعالی ستادعاګانې واوريدلې هغه جل جلاله به له تاسره خپله وعده ضرور پوره کوي لدېنه وروسته په رسول الله ﷺ دخوب پرکالي راغله اودهغې له ختميدو نه وروسته محمد ﷺ په ډېر خوشالي سره ابوبکرصديق ته ووېل : ای ابوبکر! زه تاته زېری درکوم دالله مرسته درته راغلی ده. داجبريل امين دی دخپل اس واګې يې نيولي دی اودهغه د اس په غاښونو باندی دوړه ده.[1]

---

[1]_ سيرت ابن هشام : ۲/ ۱۹۵ _ ۱۹۶

دبدر په جنګ کې الله تعالی له مسلمانانو سره دمرستې لپاره پرښتې ولېږلې اوهغوی ته یې داطریقه وښودله چې مشرکان څنګه ووژني ؟
الله تعالی فرمایلی دي :

﴿ إِذْ يُوحِي رَبُّكَ إِلَى الْمَلَائِكَةِ أَنِّي مَعَكُمْ فَثَبِّتُوا الَّذِينَ آمَنُوا سَأُلْقِي فِي قُلُوبِ الَّذِينَ كَفَرُوا الرُّعْبَ فَاضْرِبُوا فَوْقَ الْأَعْنَاقِ وَاضْرِبُوا مِنْهُمْ كُلَّ بَنَانٍ ﴾.

کله چې وحی کوله رب ستا ملائکو ته چې زه له تاسې سره یم دمومنانو قدمونه کلک کړئ ډیر ژر به زه دکافرانو په زړونو کې ډار واچوم اوتاسې کافران په څټونو او بندپه بند ووهئ.

دبدر په جنګ کې دټولو ملائکوشمېره پنځه زره وه،جبریل آمین دهغوی قیادت کاو اوله مشرکانو سره په جنګ کې شریکې شوې وې داخبره دی معلومه وي چې یواځې یوه پرښته هم دمسلمانانو دمرستې او دمشرکانو دوهلو او زغلولو لپاره کافي وه خوالله تعالی دومره ډېرې ملائکې درسول الله ﷺ دکرامت اود مسلمانانو دزړونو د ډاډ لپاره راولیږلې. دملائکو مرسته یواځې په بدر کې داصحابو لپاره مخصوصه نده بلکې الله تعالی په هر زمان او مکان کې کفاروته دشکست ورکولو لپاره له صالحو مجاهدینو سره همداسې مرسته کړېده.

حسن البصری رحمه الله ویلي دي دبدر په جنګ کې چې الله تعالی له مومنانو سره دپنځو زرو ملائکو مرسته کړې وه ددغوپنځو زرو ملائکو دامرسته به ترقیامته پورې له مومنانو سره جاري وي.

(( عن رفاعة بن رافع رضي الله عنه قال : جاء جبريلٌ الى النبى ﷺ .

وقال له: ماتعدُّون اهل بدرٍ فيكم ؟

قال ﷺ : (( من افضل المسلمين ))

قال جبريل : وكذلك من شهد بدراً من الملائكةِ[1])).

له رفاعه بن رافع ﷺ نه روايت دی هغه وايي چې جبريل امين نبی کريم ﷺ ته راغی اوهغه ﷺ ته يې وويل : تاسې هغه خلک څنګه ګڼئ چی دبدر په جنګ کی شريک شوي وو. ؟

رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : هغوی دمسلمانانو غوره خلک دي. جبريل آمين وويل : همدغه راز هغه ملائکې هم په ملائکوکې غوره دي چی دبدر په جنګ کې شريکې شوی وی.

((عن ابن عباس رضى الله عنهما قال : بينمارجلٌ من المسلمين يومئذ يشتدُّ في أثر رجلٍ من المشركين أمامه ، إذ سمع ضربةً بالسوط فوقه ، وصوتُ الفارس يقول :أقدم حيزوم!

فنظر إلى المشرك أمامه ، فخرَّ مستلقيا . فنظر إليه ، فإ ذا هوقد خُطِمَ أنفُه وشُقَّ وجههُ . فجاء الأنصاري ، فحدَّثَ بذلك رسول الله ﷺ فقال : ((صَدَقْتَ. ذلك مددٌ من السماء الرابعة))[2].

له ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دی چی په دی ورځ يو مسلمان په يو مشرک پسې شوې و ( يعني هغه پسې يې منډې وهلې ) له بره نه يې دقمچينې دګوزار اود يو شهسوار اواز راغې چې ويل يې : ای خيزومه ! مخکې شه .

له دی آواز نه وروسته مسلمان وليدل چې هغه مشرک پرزمکه پرمخې غورځيدلی دی، پوزه سوری اومخ يې دقمچينې په وار سره شليدلې اوزخمي شوی و. انصاري راغې اودغه کيسه يې محمد ﷺ ته واوروله، رسول الله ﷺ وفرمايل چې تاربښتيا وويل داله څلورم آسمان نه مرسته ده. ( يعنی دڅلورم آسمان مرسته ده )

---

[1]ـ رواه البخاري في المغازي ٥/ ١٣ .

[2]ـ رواه مسلم في الجهاد : ٣/ ١٣٨٤

(( واخذ رسـول الله ﷺ حفنةً من الحصباء ، فرمى،بهافي وجوه قريش،وقال : (( شاهت الوجوه) وأمر أصحابه بالهجوم على قريش.وشدّ الصحابة وحملوا علـى قـريش ، وكـتب الله لهـم النصـر، فقتـلوا سـبعين وأسـروا سبعين من الـمشركين . [١] ))

رسول الله ﷺ يوموټې شګې راواخستلې هغه يې دقريشو په لوري ور وشيندلې او (شاهت الوجوه ) الله جل جلاله دمشركانو مخونه قبيح او ذليل كړي . ( يعنې دماتې سره يې مخ كړي ) يې وويل لدېنه وروسته يې خپلو اصحابو ته امر وكړ چې په قريشو يرغل وكړي. په ډير لږ وخت كې مشركانو ماته وخوړه ، اوياكسان يې ترينه ووژل او ٧٠ كسان يې ترينه بنديان ونيول.

(( قـال معـاذبـن عمـرو: سمعـت القـوم يقولـون: أبوالحكـم لايخلص إليه فـتوجَّهْتُ إليـه ، ولمـا تمكـنت مـنه حمـلت عليه ، فضربته ضربةً أطنَّت قدمه بنصف ساقه .. فضربني ابنه عكرمةُ على عاتقي ، فقطع يدي ، وبقيت معلَّقةً بجلدةٍ في جـنبي ، وأجهدنـي القـتال ، حيـث كـنت أقـاتل عامَّةَ النها ر، وأنا أسـحبُها خـلفي ، فـلما آذتـني وضـعت قدمي عليها ، ثم تـمطَّيْتُ بها حتى طرحتُها.)) [٢]

معاذ بن عمرو وايي چې : ماله قوم نه واوريد چې ويل يې دا ابوجهل دی.. ده ته څوک نشي ورتللای مادهغه په طرف وكتل اودموقع پيداكولو سره مې ورباندې يرغل وكړ اودتورې داسې ګوزار مې ورباندې وكړچې دهغه پښه مې له نيمې پنډۍ نه غوځه كړه. دهغه زوی عكرمه زه په ولې باندې ووهلم اوزمالاس يې غوځ كړ اوپه

---

[١]_ سيرت ابن هشام : ٢/ ١٩٦.

[٢]_ المرجع السابق : ٢/ ٢٠١

ځرمن کی ځوړند پاتی شو. ماتوله ورځ په همدی ځوړند لاس جهاد وکړ کله چې ورسره په تنګ شوم نو پښه می وربانديږ کېښودله اوپه جټکې ورکولو سره مې وشلاو او ومې غورځاو.[1]

او همداسې دبدر په جنګ کې الله جل جلاله مسلمانانو سره دنصرت فیصله کړی و او پرهغوی باندی يې پخپله په دې وينا سره دهغه احسان يادونه وکړه :

﴿ وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ بِبَدْرٍ وَأَنْتُمْ أَذِلَّةٌ فَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾

[آل عمران : ۱۲۳]

الله پاک له تاسې سره په بدر کې هغه وخت کومک وکړ چې تاسې ډير ناتوانه واست. نوله الله څخه ووډارشئ ترڅو تاسې دالله شکر وکړئ.

**شپږم : د بني سليم غزوه:**

ابن اسحاق رحمه الله وايي کله چې رسول الله ﷺ له بد ر نه مدينې ته واپس تشريف راوړ نو دلته يې اووه شپې تېرى کړې اوله خپلو اصحابو سره له بنوسليم سره دغزالپاره لاړ. کله چې دهغوی اوبوته ورسيد نو هلته يې درى شپې تېرى کړى خوله بني سليم سره بې جنګ ونه شو.[2]

**اووم : د بنی قينقاع غزا:**

دشوال دمياشتې نيمايي دهفتې ورځ اودهجرت شلمه مياشت شروع شوې وه چې دغه غزوه راپېښه شوه.

بنوقينقاع ديهودانو لومړنى قبيله وه چې خپل تړون يې مات او وعده خلافي يې وکړه. رسول الله ﷺ هغوی پخپلو قلاګانو کې محاصره کړل بيا الله تعالى دهغوی په زړونو کې ويره واچوله دمنافقانو مشرعبدالله بن ابى په منځګړيتوب هغوی له قلاګانو نه په دی تړون ووتل چې ددوی ټول مالونه به دمسلمانانووي. الله تعالى

---

[1]_سيرة ابن هشام ۳/ ۳.

[2]_( سيرة ابن هشام ۲/ ۲۰۱)

محمد ﷺ ته بری ورکړ اودهغوی ټوله زمکه اومالونه دمسلمانانو په لاسو کې ورغلل.[1]

**اتم : دالسویق غزوه:** نبی کریم ﷺ دذی الحجی په پنځمه نیټه اودهجرت په دوہم کال له مدینې منورې نه دابوسفیان اودهغه دملګرو دمقابلې لپاره ووت ، کله چې ابوسفیان ته معلوم شو چې رسول الله ﷺ دهغوی دمقابلې لپاره راغلی دی نو هغوی وتښتیدل اودخپلو ځانونو دڅپکولو په خاطر یې دستوانو بوری یې وغورځولې. نوپه دی خاطر دغه غزوه د سویق غزوې په نوم یادکړی شو.[2]

**نهم : دغطفان غزوه:** دغی غزا ته غزوه انمار اوغزوه ذي امرهم وېل کیږي ، داد نجدپه زمکه کې دربیع الاول په میاشت اودهجرت په دریم کال پیښه شوې وه. په دی غزوه کې لـه محمد ﷺ سره ۴۵۰ مجاهدین وو. خوله جنګ اوقتال نه پرته بېرته راوګرځیدل ځکه چې لـه دښمن سره مخامخ نه شول .[3]

**لسم : دبنـی سلیم دویمه غـزوه** : رسول الله ﷺ د حجاز په سیمه کې دفرع نومې په ځای کې ربیع الاخر اوجمادی الاولی دوه میاشتې تېری کړې خولـه دښمن سره جنګ پېښ نه شو ځکه چې دښمن درسول الله ﷺ مخې تـه رانغې او رسول الله ﷺ خپلو ملګرو سره بیرته تشریف راوړ.[4]

**یولسم د احد غزوه** : داحد غزوه دهجرت په دریم کال دشوال په میاشت کې واقع شوېده دمشرکانو شمیر درې زره اود مسلمانانو شمیر اووه سوه ته رسېده.

کله چې مسلمانان اومشرکان سره مخامخ شول نو دمشرکانو بیرغ طلحه بن ابی طلحه اوچت کړی و. هغه دمقابلې غوښتنه وکړه دهغه دمقابلې لپاره علي بن ابی طالب میدان ته راووت اوهغه یې وواژه. بیرغ عثمان بن ابی طلحه اوچت کړ

---

[1]_ طبقات ابن سعد ۲/ ۲۹_ ۲۹

[2]_ سیرة ابن حشام : ۳/ ٤۰۳

[3]_ طبقات ابن سعد ۲/ ۳٤_ ۳۵

[4]_ المرجع السابق : ۲/ ۳۵

مګر پرهغه حمزه ﷺ حمله وکړه اوهغه يې وواژه. بيا بيرغ سعدبن ابي طلحه اوچت کړ. سعدبن ابي وقاص ﷺ هغه په غشي وويشت او ويې واژه. بيابيرغ مسافع بن طلحه اوچت کړ. عاصم بن ثابت ﷺ پرهغه غشی وويشت اومړيې کړ. بيابيرغ حارث بن طلحه په لاس کې ونيو. پرهغه هم عاصم بن ثابت رضی الله عنه دغشي ګوزار وکړ اوهغه يې مړکړ. بيابيرغ کلاب بن طلحه اوچت کړ نو زبير بن العوام رضی الله عنه هغه وواژه. بيابيرغ جلاس بن طلحه اوچت کړ مګرطلحه بن عبيدالله رضی الله عنه هغه وواژه. له دينه وروسته بيرغ ارطات بن عبدشرجيل اوچت کړ مګرهغه علي بن ابي طالب ﷺ دلاسه مړشو.[1]

اوپه دی ترتيب دابی طلحه له کورنۍ څخه اووه کسان پرله پسې ووژل شول. دمشرکانو بيرغ سرنګون پاتی شو ، عمره بنت علقمه الحارثيه راغله اوبيرغ يې اوچت کړ.

کله چې دبيرغ اوچتونکي ټول مړه شول نو مشرکان په منډه وتښتيدل اوله داسې داسې شکست سره مخ شول چې شاته يې نه راکتل مسلمانانو دهغوی تعاقب وکړ اودوسلې وارونه يې پرې کول هغوی خپله وسله وغورځوله او مسلمانان دغنيمت په راټولو کی مشغول شول. دغره په کنډاو کې چی کوم غشي ويشتونکي مسلمانان ناست وو دهغوی په منځ کې اختلاف رامنځ ته شو خو زياترو يې داکنډاو پريښود اودغنيمت مال دراغونډولو لپاره لاندې راکوز شول ، خالدبن وليد اوعکرمه بن ابی جهل په هغو غشو ويشتونکو اصحابو باندې بريد وکړ چی په دغه کنډاو کې پاتی شوی وو هغوی يې شهيدان کړل اوپه مسلمانانو باندی وسله وال يرغل يې وکړ. په دی وخت کی ابليس آواز وکړ چې محمد ووژل شو. مسلمانان ددغه آواز په آوريدو سره ګډوډ شول پښې يې وښويدې اوله شعار نه پرته جنګيدل ( شعار هغه اواز ته وايي چې دجنګ په وخت کې ملګري يوبل سره پری پيژني ) ډير مسلمانان شهيدان شول او په تيښته يی لاس پورې کړ مګر رسول الله ﷺ دجنګ په ميدان کې ثابت قدم

---

[1] ـ المرجع السابق. ۲/ ۴۰ ـ ۴۱

پاتې شو اوله هغه ﷺ سره څه نور اصحاب هم کلک ودرېدل دڅوتنو اصحابو اعزاز واکرام الله جل جلاله په شهادت سره وکړ او څوتنه نور ټپيان شول.

داحد جنګ د مسلمانانو لپاره ډېر سخت دازميښت ورځ وه.

**دولسم : دحمراء الاسد غزوه :** دغه غزا داحد له غزوې نه وروسته دهفتې په ورځ دشوال دمياشتې په شپاړسمه دهجرت په درېم کال کې واقع شوېده. حمراء الاسد مدينې ته نژدې يوه سيمه ده. په دې غزوه کې له رسول الله ﷺ سره همغه کسان وو کوم چې داحدپه جنګ کې شريک شوي وو رسول الله ﷺ په دې خاطر حمراء الاسد ته لاړ ترڅو دقريشو مشر ابوسفيان ته دا وښايي چې مسلمانان اوس قوي دي اود احد په جنګ کې چې مسلمانانو ته کوم مرګ ژوبله رسېدلې وه هغه په مسلمانانو کې څه ضعف اوسستي نه دې راوستې. ځکه چې ابوسفيان داوليدل چې مسلمانان حمراء الاسد ته رسيدلي دي نو خپله لاره يې ونيوله او مکې ته لاړ. [1]

**ديارلسم : دبني نضير غزوه :** داغزوه دهجرت په څلورم کال دربيع الاول په مياشت کې داحدله جنګ نه پنځه مياشتې وروسته واقع شوېده.

رسول الله ﷺ په دې وجه له خپل لښکر سره لاړچې هغوی له محمد ﷺ سره خپله کړې لوظنامه او تړون مات کړي و. هغوی يې ترېوې مودې پورې په محاصره کې وساتل، الله تعالى دهغوی په زړونو کې ويره واچوله، هغوی له قلاګانو اومورچلونه دمحمد ﷺ په حکم راکوز شول او د منافقينو مشر ابن ابی د دوی سفارښت وکړ.

دبنو نضير يهودانو ته په دې شرط له خپلو کورونو څخه دوتلو اجازه ورکړې شوه چې يواځې دومره سامان به له ځان سره وړي څومره چې دهغوی څاروي اوچتولې شي. خپله وسله اوجنګي سامان به له دې ځای نه بل ځای ته نه وړي. هغوی خيبر او نورو ځايونو ته لاړل. الله تعالى دهغوی زمکې اوکلي د مسلمانانو لپاره فيء وګرځول. [2]

---

[1]_ سيرة ابن هشام : ۳/ ٤٤_ ٤٥.

[2]_ المرجع السابق ۳/ ۱۰۹

اودبني نضير ديهودو په بار، ىي دحشر سوره نازل شو.

**څوارلسم : د ذات الرقاع غزوه**: دغه غزو، سجرت په څلورم كال دجمادى الاولى په مياشت كې واقع شوېده. اودا د ذات الرقاع په نامه ځكه يادولى شي چى په دى سفركې دمسلمانانو پيزار او چپلقى‌شكيدلى اوپښې چاودلى وى اووينه ترېنه بهيدلې نو مسلمانانو لـه هغوى نـه ټوټې اوچيرې تاوكړې وې. رقاع درخت ټكړوته ويل كيږي نو لـه دى كبله ددغې غزوې نوم ذات الرقاع شو.

رسول الله ﷺ دنجدپه طرف تللى و ترڅو لـه بنى محارب، بني ثعلبه اوبني غطفان سره جهاد وكړي په دى سفر كې محمد ﷺ دغطفان دقبيلې لـه يوې ډلې سره مخامخ شوې و اوخلكو بـه يوبـل ويرول پـه دى سفر كـې نوبت جنګ اوقتال ته ونه رسيد. په دى غزوه كې محمد ﷺ په لومړي ځل صلواة خوف ( دويرې لمونځ ) اداكړ.[1]

**پنځلسم : دبدر الصغرى غزوه** : دبدرالصغرى غزوه دهجرت په څلورم كال سعبان په مياشت كى واقع شويده. محمد ﷺ لـه خپلو ۱۵۰۰ اصحابو سره بدر ته لاړ، ځكه چې تيركال داحدپه جنګ كې محمد ﷺ له ابوسفيان سره په راتلونكي كال كى دبدر پـه سيمه كې دجنګ كولو وعـده كړې وه .ابوسفيان هـم له قريشو سره يوځاى له محمد ﷺ سره دجنګ لپاره بدر ته روان شوې و. خوپه لاره كې پښيمانه شو اوبيرته مكې ته لاړ.

په روايت كې دي چې محمد ﷺ اته ورځې په بدر كې دابوسفيان انتظار وكړ او بيرته مدينې ته راغې.[2]

**شپاړسم : د دومة الجندل غزوه** : دادهجرت په پنځم كال دربيع الاول په مياشت كې واقع شويده دومة الجندل دشام په اطرافو كې دشام اوعراق ترمنځ

---

[1]_ المرجع السابق : ۳/ ۱۱۹.

[2]_ سيرة ابن هشام : ۳/ ۱۲۳

دیوښار نوم دی چې پکې ډیرې قوي قلاګانې وې. رسول الله ﷺ ته خبر ورسید چې کفار په دومة الجندل کې راغونډ شوي دي ترڅو په مدینه باندی دمسلمانانو په خلاف یرغل وکړي. رسول الله ﷺ دهغوی دمخنیوي په خاطر د زرو تنو اصحابو سره له مدینې نه ووت . دشپې په وخت کې به یې سفرکاو اود ورځې به یې ځانونه پټول خو مشرکانو ته معلومه شوه چې رسول الله ﷺ له خپل لوی لښکر سره زموږ په طرف را روان دی. په زړونو کې ویره پیداشوه اوغونډه یې تیت اوپرک شوه. رسول الله ﷺ دومة الجندل پورې لاړ لېکن هلته دښمن یې ونه لید. دهغو په څارویو او شپونیکو باندی یې حمله وکړه نو ځینې یې ونیول او ځینې یې وتښتیدل رسول الله صلی الله علیه وسلم هلته څو ورځې ایسار شو اومنطقې ته یې خپل لښکری واستاولی لېکن هیڅوک یې پیدانکړ.[1]

**اولسم دخندق غزوه دی دی غزاته غزوه احزاب هم ویل کیږي:** داغزوه دهجرت په پنځم کال دشوال په میاشت کې واقع شوېده.

ابوسفیان لـه قریشو نه ، عیینه بن حصن له بنی فزاره نه او حارث بن عوف لـه بنی مره نـه را روان شـول دغطفـان زړه ورجنګیالي هـم وخوځیـدل اودمشـرکانو دټولـو قومونـو پنځه زره لښکر تشکیل شو.کله چې رسول الله ﷺ دهغـوی لـه روانېدونـه خبرشو نو لـه مسلمانانو نـه یې مشوره وغوښته چې دهغـوی پـه خلاف څه ډول تاکتیک وکاروو؟.حضرت سلمان فارسي رضی الله عنه ورتـه مشـوره ورکـړه چـې دمدینـې شاوخوا خندقونه بـاید وکنستل شي. رسـول الله ﷺ دهغـه رضی الله عنه مشـوره ومـنله او مسلمانانو دلسو ورځونـه پـه زیاتـه مـوده کـې خنـدوقونه وکنسـتل. پـه دی وخـت دمسلمانانو ټول تعداد دري زره و.

کله چې مشرکان مدینې تـه راورسېدل نـو یودم ناڅاپه لـه خندقونو سره مخ شول دغطفان لښکر داحدله طرف نه راغې اوقریشوپه مجمع الاسیال ( یعنې دباراني اوبو

---

[1] طبقات ابن سعد : ۲/ ۶۲_ ۶۳

دیو ځای کیدو ځای کې پړاو واړاو ) رسول الله ﷺ اودهغه اصحاب دهغوی دمقابلې لپاره خندوقونو ته راغلل چې شاګانې یې دسلع دغر په طرف . اومخونه یې ددښمن دلښکرو په لورې وو. دواړه لښکرې له شلو ورځونه زیات یودبل په مقابله کې پرتې وې. حضرت علي بن ابی طالب ﷺ له عمروبن عبدود سره مقابله وکړه اوهغه یې وواژه. دواړو خواو یوپربل باندی غشي ویشتلې. ( یعنې دغشو جګړی به هروخت دوام درلود )

په همدغو ورځوکې نعیم بن مسعود الاشجعی په پټه مسلمان شو او هیڅوک دهغه په اسلام راوړلو باندې پوه نه شو. هغه راغې اومحمد ﷺ ته یې خپل خدمتونه وړاندې کړل اوویی ویل ماته چی دهری خبری حکم راکوئ زه ورته تیاریم رسول الله صلی‌الله علیه وسلم هغه ته وفرمایل : چی ته په موږ کې یوتجربه کار سړی یې چې په څه ډول کولی شي دمشرکانو په ضد څه تدبیر او چل ول وکړه او څومره چی کولی شی له موږ نه ځان لری ساته ځکه چې جنګ یوقسم دوکه ده. نعیم له دی‌ځای نه سیده دبنی قریظه یهودو ته لاړ. داسلام راوړلو نه وړاندې له هغوی سره ښه اړیکی درلودلې .

بنوقریظه داسې قوم و چی له رسول الله ﷺ سره یې هم خپل عهد مات کړی و اودمشرکانو لښکرو سره په ائیتلاف کې یو ځای شوي وو .

نعیم بن مسعود دبنی قریظه له مشرسره خبرې اترې وکړې اوهغه ته یې دبنوقریظه هغه خطاګانې وریه یادکړلې چی وړاندی تربنه شوې وې یعنی له رسول الله ﷺ سره دعهد دماتولو خطاء.

هغه ته یې وویل چی دمشرکانو قبیلې خوله بهر نه راغلی دي، هغوی به له جنګ نه وروسته بیرته خپلو خپلو وطنونو ته لاړشي اوتاسی به مسلمانانو ته یواځې پاتی شئ هغوی به تاسي ووژني.

له دی کبله تاته زمانصیحت دادی چی تاسی ترهغه دقریشو اوبنوغطفان مرسته مه کوئ ترڅوپورې چې هغوی خپل څو مخورکسان تاسوته په ضمانت کې درنکړي اودنه تښتیدو ضمانت درکړي دبنو قریظه مشر دهغه رای ومنله.

بیانعیم بن مسعود له دی ځای نه ابوسفیان اودمشرکانو دقبیلو مشرانوته لاړ هغوی ته یې خپل ځان خیر خواه معرفي کړ ورته یې وویل چې بنی قریظه له رسول الله ﷺ سره دعهد په ماتولو پښیمانه شویدي اوهغوی له رسول الله ﷺ سره اتفاق کړیدی چې دمشرکانو دقبیلو غټ غټ کسان به نیسو اوهغوی به وژنو. که چیرته بنوقریظه له تاسونه دسپین ږیرو ضمانت وغواړي چې له هغوی سره ګروي کیږدئ نو ور یې نکړئ ځکه چې هغوی مسلمانانو ته سپاري.

دهفتې په شپه ابوسفیان بني قریظوته یوځوکسه واستول چې سباته تاسې له خپل طرف نه پر مسلمانانو حمله وکړئ اومونږ به له خپل طرف نه حمله ورباندې وکړو. مګربنوقریظه و دنعیم بن مسعود دپلان په مطابق له هغو نه غوښتنه وکړه چې تاسې لومړی خپل ځومخور کسان له مونږ سره دضمانت په توګه ګروي کیږدئ. دمشرکانو قبیلی دافکر وکړ چې رښتیا بنوقریظه له مونږ نه داکسان په دی خاطر ګروي غواړي چې مسلمانانو ته وسپاري اوهغوی یې ووژني. او سرونه یې غوڅ کړی.

دمشرکانو ټولو قبیلویوبل ته وویل چې نعیم ابن مسعود تاسې ته رښتیا ! ویلي وو. په دی خبره دمشرکانو اویهودانو ترمنځ اختلاف پیداشو. الله پاک دهغوی په زړونو کې بی اتفاقي او ویره واچوله او یوبل ته په بدو ردو ویلو شروع شول.

الله پاک دمشرکانو په لښکر باندې په سختویخو شپوکی دبادونو ډیرسخت طوفان والوځاو. دهغوی دیګونه اوکټوه یې په بل مخ واړولې اودخیمو میخونه یې وویستل.

کله چې محمد ﷺ دمشرکانو ترمنځ له اختلاف نه خبرشو نو حذیفه بن الیمان رضی الله عنهما یې ولیږه چې دهغوی له حالت نه ځان خبرکړي. رسول الله ﷺ هغه ته تاکیدوکړ چې هلته خپل ځان چاته ونه ښایي اوپه پټه توګه پکی ورداخل شي. خذیفه رضی الله عنه په دی توره تیاره شپه کې چې یخني هم خورا ډیره وه او باد هم الوته دمشرکانو په لښکر کې ننوت او همغلته غلی کیناست.ابوسفیان هم په لښکر کې موجود و هغه خپل لښکر ته وویل : ای قریشو! داځای زمونږ لپاره نور د اوسیدو نه دي. زمونږ ځناور اوښاروي هلاک شول. بنوقریظه و له مونږ نه لاس واخست ددغې سیلی په وجه زمونږ ناسته ولاړه ګرانه شوېده. زمونږ دخیمو میخونه یي وویستل او

دیګونـه یې پـه بـل مـخ واړول اور نشـوترې بلولای،موږ ته پکار دي چې واپس لاړشو مـادواپس تلو فیصله کړېده. هغه پخپل اوښ باندی سور شو، دهغه په لیدلو سره نور خلک هم پخپلو پخپلو اوښانو باندی سپاره شول. غطفـان قبیله چې لـه قریشو نه خبرشول چې هغوی بیرته ځي نوهغوی هم پـخپـلو اوښانـــو پښې واړولې او روان شول.[1]

اوالله تعـالی مسلمانانو تـه دمشرکینو لـه دی شرنه نجات ورکړ او دا آیت شریف یې نازل کړ:

﴿ وَرَدَّ الـلَّهُ الَّذِيـنَ كَفَـرُوا بِغَيْظِهِـمْ لَـمْ يَـنَالُوا خَيْـرًا وَكَفَى اللَّهُ الْمُؤْمِنِينَ الْقِتَالَ وَكَانَ اللَّهُ قَوِيًّا عَزِيزًا﴾ [ الأحزاب : ۲۵. ]

. الله پاک کافران لـه غصې نه خوتیدونکي په داسې حال ستانه کړل چې هیڅ ګټه یې نه وه ترلاسه کړی . او مومنانوته په جنګ کې یواځې یو الله بس دی. او الله پیاوړې او برلاسې دی .

**اتلسم : دبنی قریضه غزوه** : داپه احراب کې مشرکانو دشکست خوړلو پسې سمدستي رامنځ تـه شوه ځکه چې دشپې په وخت چې مشرکان لـه مدینې نه ووتل نو دسهار پـه وخت مسلمانان بیرته خپلو خپلو کورونو ته راغلل. دماسپښین په وخت جبریل امیـن محمـد ﷺ تـه راغی او ورتـه یـې وویـل : یارسـول الله ! ایـا تاسـو وسـله کېښودلـه ؟ محمـد ﷺ ورتـه وویـل هـو. جبریل امیـن وویـل چې پرښتو لاتراوسه پورې وسله نـده اېښې . ای محمـده! الله تعـالی حکـم کړیـدی چی دبـنوقریظه و پـه طرف لاړشئ زه هـم دهغوی پـه طرف روان یم چی دهغوی قدمونه کمزوري کړم درسول الله ﷺ جار وهونکي اعـلان وکړ چی څوک پـه الله اود آخرت پـه ورځ ایمان لري هغه دی دمازیګر لمونځ بني قریضه و تـه ورسوي.مسلمانان د بني قریضه په طرف روان شول. پـه دی وخت د مسلمانانو ټول شمیره دری زره تنه و. دا واقعه دهجرت پـه پنځم کال د ذی القعده پـه ۲۳ نیټه پېښه شوېده.

---

[1] سیرة ابن هشام : ۳ : ۱۳۷_ ۱۴۰

رسول الله ﷺ بنی قریظه پوره (۲۵) ورځې په محاصره کې وساتل . په بني قریظه و باندې دمحاصرې داحالت ګران تمام شو او الله تعالی دهغوی په زړونو کې ویره واچوله بالاخر د سعد بن معاذ په حکم له قلاګانو نه بیرون ووتل . سعدبن معاذ رضی الله عنه حکم وکړ چې ددوی سړي دی ووژل شي اوښځې اوماشومان دی غلامان کړی شي. ځکه چی دوی له نبی کریم ﷺ سره خپل عهد اوتړون مات کړیدی

نبی کریم ﷺ سعدبن معاذ رضی الله عنه ته وفرمایل چی تاهغه فیصله وکړه کومه چې د اووه آسمانونو له پاسه الله تعالی فیصله کړی وه. مسلمانانو دبنی قریظه تقریبًا له اتونه ترنهه سوه کسانو پورې ژوندي ونیول ، رسول الله ﷺ دمدیني په بازار کې یوه کنده وکنستله هغوی یې دلته راوستل اوهمدلته یې یوپه بل پسې دهغوی څټونه والوځول. په دغوخلکو کې دبنی قریظه مشرکعب بن اسد ، دټولو یهودانو مشر حیی بن اخطب و کله چی حیی بن اخطب راحاضر کړی شو نودهغه دواړه لاسونه دهغه ترڅټ پورې تړل شوي وو. رسول الله صلی‌الله ته یې وویل : په الله قسم چې له تاسره په عداوت کی خپل ځان نه ملامتوم لېکن الله تعالی چی څوک رسواکول غواړي هغه رسواکیږي. لدینه وروسته دهغه څټ ووهل شو اوپه دی ډول په ټولو باندی دڅټونو دپریکولو فیصله وشوه . اومسلمانان دهغوی د زمکو اوکورونو وارثان شول.[1]

(۱۹) **نوولسم : دبنی لحیان غزوه** : داغزوه دهجرت په شپږم کال دربیع الاول په میاشت کې واقع شوېده بنی لحیان هغه قوم دی چی د رسول الله ﷺ له اصحابو حبیب بن عدي.اودهغه له ملګرو رضی الله عنهم سره ټګي کړی وه اوهغوی یې رجیع نومې ځای کی شهیدان کړي وو. رسول الله ﷺ دخپلو اصحابو دانتقام اخستلو لپاره هغوی پسې له خپلو دوه سوه اصحابو سره یوځای راووت. کله چې هغوی خبر شول

[1]ـ المرجع السابق ۳/ ۱٤۱ـ ۱٤۷

چې محمد ﷺ هغوی پسې روان شویدی نو هغوی وتښتیدل اوپه غرونو کې پټ شول نوځکه جنګ ونه شو او محمد ﷺ واپس تشریف راوړ.[1]

**شلم : د ذی قردغزوه:** ذوقرد دمدینې اوخیبر ترمنځ یوځای دی چې هلته اوبه دي اوله مدینې نه تقریباً ددوشپو لارې په فاصله کی دی. رسول الله ﷺ دبنی لحیان له غزوې نه بیرته مدینې ته راستون شوی و، دلته یې څو ورځې یې لانه وې تېر کړی چې عیینه بن حصن فزاري دغطفان قبیلې داس سوارانو سره یو ځای درسول الله ﷺ داوښانو په څرځای باندی یرغل وکړ اودرسول الله ﷺ اوښان یې له ځان سره وی وړل ابن اسحاق رحمه الله وایي چې داواقعه دهجرت دشپږم کال په نیمایي کی پېښه شوې ده .[2]

بخاري مسلم اونورو ویلي دي چې داد حدیبیه دسولې نه وروسته اودخيبر له غزا نه مخکې دهجرت داووم کال په لومړیو کې پېښه شوېده اوداهغه تاریخ دی چې:

ددغې غزوې قهرمان سلمه بن الاکوع بیان کړیدی اوحافظ ابن کثیر پخپل تاریخ کی همدی ته ترجیح ورکړېدی. اوهمدا ډیر راجح دی.[3]

مسلم له سلمه بن الاکوع رضی الله عنه نه دذی قرد حدیث روایت کړیدی هغه رضی الله عنه وایي موږ له رسول الله ﷺ سره یوځای حدیبیه ته راغلو اوموږ ټول څوارلس سوه کسان وو. هغه حدیث بیان کړ او تردی ځای پورې ورسېد چې بیاموږ مدینې ته راغلو. رسول الله ﷺ خپل څاروي ولېږل او ورسره خپل غلام رباح هم ولېږه. زه هم له هغه سره وم. زه پخپله دطلحه رضی الله عنه په اس باندی سور وم. ترڅو یې له اوښانو سره وڅروو اوبیاپه اوبو خړوب کړو .کله چې موږ شپه تېره کړه اوسهار شو نو عبدالرحمان فزاري درسول الله ﷺ په څارویو باندې ډاکه واچوله ټول یې روان کړل او شپونکي یې وواژه.

---

[1]_ المرجع السابق : ۳/ ۱۷٤_ ۱۷۵

[2]_ سیرة ابن هشام ۳/ ۱۷۵.

[3]_ البدایة والنهایة لابن کثیر : ٤/ ۱۵۰

ما رباح ته وویل : دا اس در واخله اوطلحه بن عبيدالله ته يې ورسوه اومحمد ﷺ ته
ووایه چې مشرکانو دهغه په څارویواوښانو باندی ډاکه آچولی او څاروي يې ټول له
ځان سره وړي دي. لدینه وروسته زه دمشرکانو دپښو نښو پسې لاړم پرهغوی باندی
می غشي ویشتل او ويل به مې زه ابن الاکوع یم نن ورځ به معلومیږي چې چا دشریفې
ښځې شدی څکلی دي ؟ دهغوی یوسړي ته نژدی شوم اوهغه می په غشي سره وویشت
غشی دهغه دولو ترمنځ ننوت ماورته آواز وکړ در واخله زه داکوع زوی یم نن ورځ به
معلومیږي چې چادشریفی ښځی شیدی څکلی دي.

په الله قسم چې ماپرهغوی مسلسل غشي ویشتلی اوهغوی می زخمي کول. کله به
چې دهغوی له طرف نه جنګیدونکي زما طرف ته راغلل نوزه به دونو په منځ کی
ننوتلم اوله همغه ځای نه به مې ورباندی غشي ویشتلې.هغوی چې کله ددوه غرونو
ترمنځ له یوتنګ ځای نه تېر شول نوزه دغره له پاسه وختلم اوله بره نه مې ورباندې
کاڼي خوشې کړي هغوی به خپل ځانونه له دغو ګوزارونو څخه بچول او درسول الله ﷺ
اوښان به يې خوشی کول . تردې چې ټول اوښان يې خوشی کړل خومادهغوی تعاقب
پری ښنود اومسلسل مې په کاڼو ویشتل تردی چې هغوی څه دپاسه دیرش څادرونه او
څه دپاسه دیرش نیزې پرزمکه وغورځولې ترڅو بارېي سپک شي اوپه منډه وتښتي.
هغوی به چې هریوشی وغورځاو نومابه پرهغه دکاڼو یوه نښه ودروله ترڅومحمد ﷺ
اودهغه اصحاب دا وپیژني .هغوی ددوه غرونو ترمنځ یوتنګ ځای ته راغلل زه دهغوی
له پاسه دغره په سرناست وم. هغوی ته ابن بدر الفزاري راغې اودسهار په ناشته لګیا
شول. زه دهغوی په سر په غره باندی کیښناستم فزاري پورته وکتل او زه يې ولیدلم هغوی ته
يې وویل . داڅوک دی ؟ هغوی وویل :

موږ دده دلاسه په لوی مشکل اوتکلیف کی اخته یو. په الله قسم چې دسهار له
تربړموی نه موږ پسې دی او په غشو اوکاڼو باندې مو ولي تردې چې له موږ نه يې ټول
شیان واخستل. هغه ورته وویل : له تاسونه څلور کسان دی پسې وخیژئ، هغوی څلور
واړه ماپسي غره ته وختل . کله چې هغوی ماته نژدی شول نو ماورته وویل ایاتاسې
ماپیژنئ ؟ هغوی وویل نه ، ته څوک يې ؟

ماورته وویل : زه سلمه بن الاکوع یم . په هغه لوی ذات می قسم چی محمد ﷺ ته یې عزت ورکړیدی که زه له تاسو نه دڅانیول وغواړم نو نیولی یی شم اوله تاسونه چی څوک زما دنیولو کوشش وکړي نوما نه شي نیولی. له هغونه یو وویل زه همداسی فکرکوم اوبیرته لاړل.

زه له خپل ځای نه نه وم خوځیدلی چی درسول الله ﷺ مجاهدین مې ولیدل چې دونو په منځ کی په آسونو سواره را روان دي. له ټولونه مخکې اخرم الاسدي وهغه پسې ابوقتاده الانصاري اوهغه پسي مقداد بن الاسود الکندي و. ماد اخرم الاسدي داس واګي ونیولې او ورته می وویل چی وړاندی مه زه ډرسول الله ﷺ اودهغه له اصحابو سره دیوځای کیدو انتظار کوه. هغه راته وویل : ای سلمه ! که چیرته په الله او اخرت ایمان لرې اوپدی پوهیږې چې جنت اودوزخ حق دي نوبیا زما اوشهادت ترمنځ خنډ مه جوړیګه . ماهغه پرېښود. هغه عبدالرحمن فزاري پسې ورسید او ددواړو ترمنځ جنګ شروع شو اخرم اسدي دعبدالرحمن فرازي اس زخمي کړ خو هغه دی په نیزه وواهه اوشهید یې کړ. فزاري دهغه اس واخست او روانشو. بیا ابوقتاده الانصاري له عبدالرحمن سره نښته وکړه هغه یې په نیزه وواهه اومړ یې کړ. هغوی پخپل مخه په منډه روان وو اوزه هم هغوی پسې پیاده په منډه روان وم. زه درسول الله ﷺ له لښکر نه دومره لری ووتلم چی هغوی اودهغوی دوړه هم راته نه ښکاره کېده. دلمر پریواته په وخت کی هغوی یوی درې ته ورسېدل هلته اوبه وی چی ذوقرد ورته وېل کیده. هغوی غوښتل چی له دی ځای نه اوبه وڅښي ، هغوی ډیر تږي وو. لیکن زه د هغوی پسې لګیدلی وم هغوی چی وکتل نوپرمایي سترګې ولګیدلی له مانه وویریدل اود اوبوڅکلو نه بغیر له دی ځای نه لاړل، او یو ځاځکې یې هم ونه څاکه هغوی منډی وهلې او خپلې سورلی یې زغلولی ماهم دهغوی تعاقب پرې نښود آن تردی چی دهغوی یوسړی می راګیر کړ او په غشي سره می وویشت اوپه ولي باندی ولګید. ما آواز وکړ داغشی در واخله زه ابن الاکوع یم نن ورځ به معلومیږي چی چادشریفې ښځې شیدې څکلي دي. هغه وویل : واه مور را باندی بوره شه ایاته همغه اکوع یی چی دسهار راهیسی مور پسې یې اونه موپرېږدی. ماوویل دخپل ځان دښمنه هو زه همغه اکوع یم چی سهار راهیسی درپسی یم. هغوی وتښتیدل اوشاته دوه اسونه یی

پرېښودل. ماهغه دواړه آسونه راوستل اومحمد ﷺ ته مې را روان کړل لومړی مې اودس وکړ اوبیامې شیدی وڅکلې. زه رسول الله ﷺ ته راغلم اوهغه په هغو اوبوباندې ناست وچې ما ډاکوان ترې شړلي او زغلولي وو ( ذی قرد ) رسول الله ﷺ هغه اوښان، څادرې اوټول هغه شیان یې ترلاسه کړي وو چې له ډاکوانو نه پاتی شوي وو. بلال رضي الله عنه له هغو اوښانو څخه چې ماله ډاکوانو نه بیرته اړولي وو یوه اوښه حلاله کړی وه اورسول الله ﷺ ته دهغی ینه اوکوب یې په اور باندی وریتول. مارسول الله ﷺ ته وویل : یارسول الله ! ماپرېږده چې زه له مسلمانانو نه سل کسان منتخب کړم چې مشرکانو پسې لاړشو او ټول ووژنو رسول الله ﷺ وخندل تردی چې داوړپه رڼاکې یې غاښونه ښکاره شول. راته یې وفرمایل : ای سلمه ! ایاته داکار کولې شې؟ماوویل هو په هغه ذات قسم چې تاته یې عزت درکړیدی .هغه ﷺ وفرمایل : هغوی اوس دغطفان په زمکه کی خوراک څښاک کوي. موږ ته له غطفان نه یوسړی راغی هغه موږ ته وویل چې فلانـي سړی هغوی ته داوښ یوجونګی حلال کړی و. کله یې چې څرمن یې ترینه ویستله نو یو دوړه یې ولیدله. ورته یې وویل چې مسلمانان درپسې دلته را روان دي هغوی له دی ځاینه هم په ویره لاړل. او وتښتیدل .

کله چې سهار شو نو رسول الله ﷺ وفرمایل : په موږ کی بهترین اس سوار اوشهسوار ابوقتاده دی اوبهترین پیاده جنګیالی سلمه ﷺ دی.

بیارسول الله ﷺ ماته دوه برخی راکړې. یوداس سواري اوبل دپیاده ، دواړه یې راته راکړي. بیایي خپل شاته دالعضباء اوښی باندې سورکړم او مدینې منوری ته روان شوو.کله چې موږ روان وو نوله نصارونه یوسړې ودرید داداسی سړی و چې هیڅا ورسره مسابقه نه شوه کولې. هغه وویل : ایاترمدینی پوری څوک له ماسره مسابقه کوونکی شته ؟داخبره یې څو څو کرته وکړه. ماورته وویل ایا دکوم کریم اوشریف سړي خیال هم نه کوې؟ هغه وویل له رسول الله ﷺ نه علاوه دبل چاخیال نه کوم. ماوویل یارسول الله له تانه دی زما مور اوپلار قربان شي ماپرېږده چې له دی سره مسابقه وکړم. رسول الله ﷺ وفرمایل که ستاخوښه وي . ماسړي ته وویل زه مقابلې ته تیاریم او راغلی یم خپلې پایڅی مې راټولې کړی او له ټوپ سره مې منډه پیل کړه تریو دوو لوړو ځایونو پورې ماځان پاتی کړی و سمه منډی مې نه وهله . بیاورپسې تیز شوم خو

بیامی تردوو لوړو ځایونو پوري ځان پاتې کړ. بیامې تیزه منډه پیل کړه تردې چې وریسې ورسیدلم او ددواړو ولیو په منځ کې مې ګوذار ورکړ او ترینه مخکې شوم او ورته مې وویل ،په الله قسم مسابقه ماوګټله !! په دی ډول زه لـه هغـه نـه مدینې تـه مخکې ورسیدلم.

**یوو یشتم : د نبی المصطلق غزوه** : دعلماو ترمنځ ددی دوخت په اړه اختلاف دی .ځینې علماء وایي چې دهجرت په څلورم کال وه، او ځینې علماء وایي چې دهجرت په پنځم کال دشعبان په میاشت کی دخندق دغزوې نه وړاندې وه اوځینې علماء وایي چی دهجرت په شپږم کال دشعبان په میاشت کې وه.

آخري وینا دابن اسحاق دی.

داغزا دبنی المصطلق په نوم څکه نومول شویدی چی نبی کریم ﷺ دبنی المصلق له قبیلی سره غزا کړې وه. دغه قبیله دمدینې اوسمندر ترمنځ په یو ساحل کې اوسیدله. دیته مریسیع غزوه هم وېل کیږي، مریسیع په ساحل کې دقدید نومې ځای کی داوبو نوم دی. دبنی المصطلق قبیلې خلک ددغه اوبو شاخوا اوسېدل.

ددغی قبیلې مشر حارث بن ابی ضرار و. رسول الله ﷺ تـه خبر ورسید چی ددغې قبیلې خلکو په مدینه باندې دحملې کولو په غرض ډیر لوی لښکر چمتو کړیدی رسول الله ﷺ دخپلو اصحابو سره دهغوی دمقابلې لپاره له مدینې نه هلته تشریف ویوړ هلته مسلمانانو اومشرکانو دغشو ویشتل سره تبادله کړل .خو څه موده وروسته مسلمانانو پرهغوی قوي یرغل وکړه، هغوی ته یې ماته ورکړه، ډیر یې ترینه مړه کړل اوډیر یې ترینه ژوندي ونیول. ډیر زیات څاروي لکه اوښان ، ګډان، غوایان او وزې یې هم په غنیمت ونیول.

اورسول الله ﷺ ددغی قبیلې پاچا حارث ابن ابي ضرار لور جویریه بنت الحارث سره نکاح وکړ.[1]

---

[1] - سيرة ابن هشام : ۳/ ۱۸۲.

**دوه ویشتم :دحدیبیه غزوه** : داغزوه دهجرت په شپږم کال دذی قعده په میاشت کې واقع شوېده . رسول الله ﷺ لـه څوارلس سوه کسو اصحابو سره دبیت الحرام د زیارت او دعمرې د اداکولو په نیت لـه مدینې منورې نه وخوځید . اوهدیې لپاره یې لـه ځان سره اویا بُدني هم روانی کړې وې.

کله چې قریشو درسول الله ﷺ دعمرې لپاره بیت الله شریف ته دراتلو خبره واورېده نو پـه مکـه کی دهغوی دداخلې دمخنیوې لپاره راووتل. رسول الله ﷺ دحدیبیه په سیمه کې پړاو واچوله اوله هغه ځای نه حضرت عثمان ﷺ یې مکې ته ونیږلو ترڅو دهغـه ځای اوسیدونکي دمحمد ﷺ لـه دی ارادې نـه خبرکړي چې هغـه عمرې ته را روان دی.

خودا افواه خوره شوه چې حضرت عـثمان ﷺ وژل شوېدی رسول الله ﷺ لـه خپلو اصحابو نه وغوښتل چې د ونې لاندي لـه محمد صلی الله علیه وسلم سره ددی خبری بیعت وکړي چې پـه جنګ کې به مړ کیږي خوتېښته به نه کوي، دغه بیعت ته بیعت الرضوان ویل کیږي.

درسـول الله ﷺ اود قریشـو ترمـنځ پـه خبرو اتروکې پـه سوله بـاندی اتفاق وشو او دحدیبیه سوله منـځ تـه راغلـه ، اودسهل ابـن عمر سره یې دسولې لوظنامه لاسلیک کړه [1]

**درویشتم : دخیبر غزوه** : کله چې رسول الله ﷺ لـه حدیبیې نه واپس راغې نو په مدینه کې دذوالحجه اودمحرم دمیاشتې څه حصه تېره کړه. بیاد محرم په میاشت کې دهجرت پـه اووم کـال محمـد ﷺ دخیبر پـه طرف لاړ. خیبر یوښار ګوتې و چې پـه کې ګڼې کلاګانې وې اوهلته یهودان اوسېدل.

---

[1] : ۱۹۶/۴

عامربن الاکوع ﷺ یو رجازشاعر و. کله چې مسلمانان دخیبرپه لورې روان وو نوعامربن الاکوع به ورته رجزیه شعرونه ویل. کله چې رسول الله ﷺ دهغه داشعرونه واورېدل نو ورته یې وویل : الله تعالی دی تاوبخښي .

رسول الله ﷺ چې هرچاته دبخښنې دعاکړې الله تعالی به هغه ته دشهادت مرګ ورکړېدی .

کله چې عمر ﷺ له رسول الله ﷺ نه دعامر لپاره داستغفار اوبخښنې الفاظ واورېدل نو ویې ویل : یارسول الله امورته به دی دعامر نه د ګټې داوچتولو موقع راکړې وه.

کله چې مسلمانان خیبر ته ورسیدل نو دیهودو پاچا مرحب راووت اوله مسلمانانو نه یې دمقابلې غوښتنه وکړه. دهغه دمقابلې لپاره عامربن الاکوع راووت هغوی دواړو یوپربل باندې دتورې ګوزارونه وکړل. دمرحب توره دعامر په ډال کې ونښته عامر غوښتل چې دتورې ګوزار وکړي خوتوره یې راتاو شوه پخپله دعامر دزنګانه په سترګه راولګیده اوله همدینه شهیدشو.

دعامر وراره سلمه بن عمرو بن الاکوع ﷺ وایي چې ماله څو اصحابونه واورېدل چې ویل یې : دعامرابن الاکوع عمل باطل شو هغه خپل ځان پخپله ووژه .زه درسول الله ﷺ خواته دژړا په حالت کې راغلم او ورته مې وویل: یارسول الله !

ایا دعامر عمل باطل اوبرباد شو؟رسول الله ﷺ راته وویل : داخبره درته چاکړیده؟م وویل ستاسې څو اصحابو کرامو، رسول الله ﷺ وفرمایل : هغوی دروغ وایي. بلکې هغه لپاره دوه اجرونه دي.دیهودانو پاچا بیا میدان ته راووت او مسلمانانوته یې وویل چې څوک له ماسره مقابله کوي ؟ ایاپه تاسوکې څوک داسې شته چې له ماسره مقابله وکړي ؟رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک ددی مقابلې ته راوځي؟محمدبن مسلمه وویل : یارسول الله ! زه ددی مقابلې ته را اوځم. په الله قسم چې زه ترینه بنه انتقام آخستی شم یهودانو پرون زما ورور وژلې دی. هغه قصاص هم پرې پاتې دی رسول الله ﷺ وفرمایل : الله دی درسره مرسته وکړي ورته پاڅه .کله

چې محمد او مرحب دواړه سره مخامخ شول اودتورو ګوزارونه يې شروع کړل نو په منځ کې يوه ونه راغله، هريوبه دتورې لـه ګوزار نـه دبچ کيدو پـه خاطر دونې ترشاځان پټاو هريوه بـه چې ګوذار کاو نو دوينې څانګې به لګيدلی تردې چې دونې څانګې يې پرې کړې. دمرحب دتورې يو ګوزار په محمدبن مسلمه باندې برابرشو خو هغه داګوزار پخپل ډال باندې دفع کړ او توره په ډال کې ننوتله، هغه کوشش وکړ چې توره لـه ډال نـه راوباسي خوبريالی نه شو، لـه همدی موقع نه محمدبن مسلمه ګټه پورتـه کړه او په مرحب باندی يې دتورې ښه کلک وار وکړه. مرحب ولګيد اوپرزمکه وغورځيد محمد بن مسلمه وړاندی شو اودمرحب دواړه پښی يې دتورې په وارونو سره غوځې کړې اوهمداسې يې پرېښود. مرحب ورته وويل مامړ کړه .محمد ورته په ځواب کې وويـل زه تاهرګز نـه مړکوم. لکـه چې زما ورور محمود بن مسلمه ستاسی دلاسه پـه سختۍ کې مړشوی و. تـه هم همغسی دمرګ سختی وڅکـه لدينه پس حضرت علي ﷺ راغی هغـه يې مړ کړ او ساه ترينه ووتله. کله چې مرحب مړشو نو دهغـه ورور ياسر دمقابلې لپاره راووت اولـه مسلمانانو نه دمقابلې غوښتنه وکړه. دهغه دمقابلې لپاره زبيربن عوام رضی الله عنه راووت.

دزبير ﷺ مور صفيه بنت عبدالمطلب رضی الله عنهما وويـل چې نن ورځ به زما زوی وژل کيږي ، رسول الله ﷺ وفرمايل : نـه داسی نـه ده انشاالله ستازوی بـه هغه ووژني اوبرلاسې به شي.

د دواړو ترمنځ ګرمه مقابله وشوه اوزبير ﷺ دياسر په وژلو برلاسي شو اوهغه يي وواژه.

(( وقد روى البخاري عن انس بن مالك ﷺ قال صلى رسول الله ﷺ الصبح قريباً من خيبر بغلسٍ ثم قال : " الله اكبر، خربت خيبر انّا اذا نزلنا بساحة قومٍ فساء صباحُ المنذرين. [1] ))

---

[1] ـ رواه بخاري في المغازي ۵/ ۷۳

بخاري لـه انس بن مالك ﷺ نه روايت كړيدى چى محمد صلى الله عليه وسلم خيبر ته نژدى دسهار لمونځ په تياره كى اداكړ اوبيايي وفرمايل : الله اكبر. خيبر وران شو. موږ چى كله دكوم قوم په سيمه كې ننوځو نودويرول شويو سهارډير بدوي.

رسول الله ﷺ دخيبر كلاګانى فتح كړې. جنګيدونكي يهودان يې ووژل ښځې او واړه ماشومان يې پريښودل او غلامان يې كړل په دى غزا كې مسلمانانو ډير زيات غنيمتونه هم ترلاسه كړل.[1]

**څلورويشتم : عمرة القضاة** : ځينو دادرسول الله ﷺ په غزواتو كې نه دى حساب كړې.

كله چى رسول الله ﷺ لـه خيبر نه مدينې ته راغى نو هلته شپږ مياشتې تم شو اوله دى ځاى نه به يې دم... امانانو لبكرې استولې. بياد ذى العقده په مياشت كې دهجرت په اووم كال دعمرى دقضـ... داداكولو لپاره لـه مدينې منورې نه ووت ځكه چې دحديبيه په سوله كې لـه قريشو سره په همدى خبره اتفاق شوې و. ديته عمره القضاء وېل كيږي چې داد همغې عمرې بدل دى چې مشركانو تيركال له اداكولو نه منع كړى و.

رسول الله ﷺ لـه خپلو اصحابو سره يوځاى عمره اداكړه اوپه مكه كې درې شپې پاتى شو. دڅلورمې ورځې په سبا آواز كوونكي لـه دى ځاى نه دكوچ كولو اعلان وكړ رسول الله ﷺ لـه خپلو اصحابو سره بيرته دمدينې په طرف راغى.[2]

**پنځه ويشتم : د مكې د فتحې غزوه**:

دا غزوه دهجرت په اتم كال دروژى په مباركه مياشت كى واقع شوېده. ځكه چې قريشو لـه رسول الله ﷺ سره دحديبيه سوله ماته كړه. رسول الله ﷺ دخپلو دولسو

---

[1]ـ سيرة ابن هشام ۳/ ۲۱۵ ـ ۲۱۶.

[2]ـ المرجع السابق : ٤/ ٣ .

زرو اصحابو سره يوځاى دمكې په طرف ور وخوځيد. الله تعالى ورسره مرسته وكړه او مكې ته ورننوتل او مكه داسلام كور وګرځيد.[1]

## شپږ ويشتم : د حنين غزوه:

دحنين غزوې ته دهوازن غزوه هم وايي اودادمكې له فتحى نه وروسته سمدستي دهجرت په اتم كال دشوال په مياشت كى واقع شوى ده. كله چى دهوازن دقبيلى خلكو دا واوريد چى مكه مسلمانانو فتحه كړه نودهوازن پاچا ملک بن عوف النضري دثقيف،هوازن ،نض،جثم اوسعدبن بكر قبيلو خلک يي راجمع كړل .محمد ﷺ دهغوى له دى پلان نه خبر شو نو له خپلو اصحابو سره په هغوى پسى ووتل. كله چى مسلمانان دحنين درى ته راورسيدل نو هوازن له خپلو خپلو كمينونه راووتل اوپر مسلمانانو يي دغشو باران وكړ. مسلمانان وارخطا شول اواخواديخوا وتښتيدل مګر رسول الله ﷺ له څو تنو اصحابو سره پخپل ځاى باندى كلک ودريد. خپل تره عباس ﷺ ته يي وفرمايل : مسلمانانو ته داسى آواز وكړه چى اى انصارو! اى دبيعت رضوان اصحابو! راشئ چيرته ځئ ؟

هغوى بيرته راغلل اوهوازنو سره يې جنګ شروع كړ دلږ وخت جنګ نه وروسته هوازن له ماتى سره مخ شول او ګڼ شمير كسان يې ترينه بنديان كړل. او درسول الله صلى الله عليه وسلم په مخكې يې لاسونه پرې وتړل.

دالله په فضل او مرسته جګړه دمسلمانانو په ګټه وڅرخيدله او هوازن اوثقيف ناكام او نامراده شول.

مسلمانانو له هغوى نه ډير زيات مالونه په غنيمت ونيول چى له هغونه څلور ويشت زره اوښان څلويښت زره ګډان او وزې، اوڅلور زره اوقيه سپين زر ديادولو وړدي.[2]

---

[1] ـ المرجع السابق : ٤/ ٥

[2] ـ سيرة ابن هشام : ٤/ ٦٠ ـ ٦٢.

## اووه ويشتم : د طايف غزوه:

داغزوه دهجرت په اتم كال دشوال په مياشت كى واقع شويده.

كله چى ثقيف او هوازن دحنين په غزوه كې ماته وخوړه نو دطايف په لوريې حركت وكړ او همغلته د طايف په كلاگانو كې يې مورچلې ونيولې. اودطائف دروازې يې بندى كړلى . رسول الله ﷺ هغوى پسې همغلته طايف ته لاړ اودهغوى په خواكې يې خپل لښكر ځاى پرځاى كړ هغوى يې پخپلوكلاگانوكې محاصره كړل. ثقيفو پر مسلمانانو دغشو داسې باران جوړكړ تـه بـه وايـي دملخانو وزرې را روانى دي. دغشو په دغه باران كى دولس تنه مسلمانان شيهدان شول . اوګڼ شمېر ټپيان شول رسول الله ﷺ پرهغوى باندى محاصره اوږده كړه، ځينى تاريخ پوهان پنځلس ورځې، ځينې اتلس ورځې، ځينې له شلونه زياتې ورځې اوځينې څلويښت ورځې يادوي.

رسول الله ﷺ خپلو اصحابو تـه امر وكړ چې دانګورو تاكونه غوځ كړي ، اصحابو دهغو دانګورو دتاكونو پـه غوځولو لاسونه پورې كړل. ثقيفو لـه مسلمانانو نه سوال وكړ چى دالله پـه خاطر يې غوڅ نكړې. نورسول الله ﷺ دالله جل جلاله او رحم دلي په خاطر يي پرېښودل.

درسول الله ﷺ له خوا يو آواز كوونكي اواز وكړ چى له ثقيفو نه چى هريو غلام لـه قلانـه ووځـي اومونږ تـه راشـي هغـه ازاد دى، په دغى اواز سره لـه كلا كانو نه لـه لسو نه زيات كسان لاندى راكوز شول او مسلمانانو خواته راغلل چى دهغوى لـه جملى نه ابو بكرة ( يعنى نفيع ابن الحارث ) هم دى. رسول الله ﷺ هغوى ټول ازاد كړل.

كله چى دطايف فـتح كـول ګران شول نو رسول الله ﷺ لـه نوفل بن معاويه الديلمي رضى الله عنه سره مشوره وكړه او ورته يي وويل چى ستاڅه خيال دى ؟

نوفـل وويـل : ثقيـف دغار ګيدړان دي. كه چيرته ورته ودريږى او ورته ايسار شى نو وبـه يې نيسى اوكه ترينه لاړى نو هيڅ نقصان درته نه شي رسولې. لدينه پس رسول

الله ﷺ حضرت عمرؓ ته حکم وکړ چې مسلمانانو ته اعلان وکړئ چې له دی ځای نه روان شي.[1]

## اتـــه و يشتم : د تبوک غـــزوه :

دتبوک غزوه دهجرت په نهم کال درجب په مياشت کی وه اوداد رسول الله ﷺ آخري غزاده. رسول الله ﷺ ته خبر ورسيد چې روميانو په مدينه باندی ديرغل په خاطر يوائې تياری نيولی دی . رسول الله ﷺ دهغوی دمخنيوي لپاره روم په طرف خپل لښکر روان کړ. دتبوک غزوه په داسی وخت کی پيښه شوې وه چې مسلمانان ډير تنګ لاسي وو او هر لوری وچ کالي اوقحط و. رسول الله ﷺ مالدار او ثروت مندخلک ديته وهڅول چې مجاهدين مجهز کړي اودخوراک څښاک سامان ورته برابرکړي. بدايانو خلکو په ډير خوشالي سره داکار وکړ خصوصاً عثمان بن عفان ﷺ له مجاهدينو سره ډير لوی اوبی حسابه مرسته وکړه. خو منافقانو خپل ځانونه له رسول الله صلی الله عليه وسلم وروسته کړل چې وروسته الله تعالی په سورة التوبة کی هغوی رسوا کړل.

رسول الله ﷺ چې دروم په طرف روانيدو نو ورسره دېرش زره مجاهدين وو. ډير خلک ورته په ژړا راغلل چې موږ ته هم دجنګ سامان راکړئ اوموږ هم دجهاد لپاره له ځان سره بوځئ. هغوی غريبان وو دجهاد سره يې مينه ډيره وه هغونشو کولای چې دجهاد لپاره ساز اوسامان برابرکړي. اوجهاد ته ووځي رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : چې له موږ سره ستاسې دمجهز کولو لپاره هيڅ څيز نشته. هغوی بيرته ترينه لاړل او له سترګو نه اوښکې بهيدلې چې موږ ولی له جنګ نه پاتی شوو. او ولې مو دومره څه پيدانکړ چی جهاد لپاره مولګولي وای. کله چې روميانو ته درسول الله ﷺ د روانيدو خبر واوريد نو هغوی له جنګ نه لاس واخست او غلي کيناستل.

[1]_ طبقات ابن سعد ۲/ ۱۸۵ _ ۱۵۹

رسول الله صلی الله علیه وسلم درومیانو په انتظار کې په تبوک کې له لسو ورځو نه زیاتی تیری کړې خوله چاسره جکړه ونه شوه. رسول الله صلی الله علیه وسلم له دی ځای نه د مسلمانانو څو څو سریې مختلفو سیموته ولیږلی اوددغی ځای له مختلفو سیمونه وفدونه محمدصلی الله علیه وسلم ته راغلل او ورسره ملاقاتونه یې وکړل. لدی نه وروسته محمد ﷺ له خپل لښکر سره بیرته مدینې منورې ته راغی.[1]

پورته چی دځومره غزواتو یادونه وشوه داهغه غزوی دي چی رسول الله ﷺ پخپله پکې شریک شوی اودلښکر قیادت یې کړیدی . چی په ځینو کې جنګ رامنځ ته شوی او ځینو کې جنګ نه دی پیښ شوی

ددغو غزواتو چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په مدنې دور کې کړی ټوله شمیره ۲۸ ده . رسول الله ﷺ په مدینه کې ټول لس کاله تیر کړیدي، مطلب داشو چې دکال په حساب رسول الله ﷺ تقریبا هر کال درې غزاګانو ته تللی دی.



# فــصل

## هغه سریې چې ﷺ وسلم لیږلي دي

علماو درسول الله صلی الله علیه وسلم دسریو دشمیر په باره کې اختلاف کړیدی ، خوپه دی خبره متفق دي چی غتې سریه ، دموته غزوه ده.

### (۱) د موتی غزوه :

د موتی غزوه د هجرت په اتم کال دجمادی الاولی په میاشت کې واقع شویده. رسول الله ﷺ زید بن حارثه له دریو زرو مسلمانانو سره دشام دبلقاء سیمې ته ولیږه.

---

[1]ـ سیرة ابن هشام : ٤ : ١٢٠ ـ ١٢٦.

هغوی ته يي وويل : که چيرته زيد شهيد شي، نوبيرغ جعفر بن ابي طالب ته ورکړئ، که هغه هم شهيد شي نو بيا به يې عبدالله بن رواحه ته ورکړئ.

دمسلمانانو لښکر دشام په طرف وخوځيد اودمعان نومې ښارته ورسېدل همدلته ورته معلوم شو چې هرقل په بلقا کې پړاوآچولی او ورسره يو لک لښکر رومي اويولک لښکر دهغو عربو دي چې له هغه سره دمرستی لپاره راغلی دي.

مسلمانان په دی اړه په فکر کې شول. ځينو وويل چې رسول الله ﷺ ته په دی باره کې بايد خط وليکل شي . يابه هغه دمرستې لپاره نور کسان وليږي اويابه بله لاره چاره موږ ته وښايي.

عبدالله بن رواحه دمسلمانانو د زړه ور کولو په خاطر ودريد اوهغوی ته وويل : تاسی چې کوم شی بد ګڼئ دهمغه لپاره له خپلو خپلو کورونو نه وتلي ياست ، تاسې دشهادت لټون کوئ. موږ له دښمن سره په شمير ، قوت او وسايلو په اندول جنګ نه کوو بلکې موږ دهغه دين لپاره جهاد کوو چې موږ ته يي عزت راکړيدی . تاسی دجهاد لپاره ګامونه واخلئ او مخ په وړاندی لاړشئ. موږ ته به له دوه ګټونه يوه ګټه ضرور ترلاسه کيږي. يابه الله تعالی موږ پرهغوی بريمن کوي اويابه دشهادت لويه مرتبه راکوي.

مسلمانان دجګړې لپاره چمتو شول او ويې ويل : ابن رواحه رښتيا وايي . مسلمان مجاهدين او رومي لښکر دموته په سيمه کې مخامخ شول . دمسلمانانو دری زره لښکر دکفارو د دولکو لښکر په وړاندی دمضبوط غر پشان ودريد.

ابو هريره رضی الله عنه چی پخپله د موته په غزا کی ګډون کړی و وايي چی کله ما دهغوی لوی لښکر، ساز سامان او وسلې وليدلې نو زما سترګو تور وخوړ ، او داسې مې انځوروله چې په دوی هيڅوک برې نشي موندلای ماته ثابت بن اقرم ؓ وويل:

ای ابوهريره ! ؓ ګويا تاډير لښکر وليد؟ ماوويل هو. -

هغه راته وويل : ته له موږ سره دبدر په جنګ کی نه وی شريک شوی حقيقت دادی چی بری په ډيروالي کی نه دی نغښتل شوې.

دمسلمانانو او رومیانوترمنځ جګړه ونښته. زید بن حارثه درسول الله ﷺ تربیرغ لاندی له کفارو سره سخته مقابله وکړه اوبالاخر شهید کړی شو. له هغه ؓ نه بیرغ جعفربن ابی طالب رضی الله عنه راواخست له ډیر ګرم او سخت جنګ نه وروسته دجعفر ؓ اس سور زخمي شو هغه له اس نه لاندی کوز شو اوپیاده وجنګیدو تردی چی ووژل شو. جعفر هغه لومړنی شخص دی چی اس يې دالله په لاره کی زخمي شو. په روایت کی رازي چې جعفر ؓ بیرغ په ښي لاس کی نیولی و کله چی دښمن دهغه ښي لاس غوڅ کړ نوپه ګڅ لاس کی یی ونیوه کله چی دهغه ګڅ لاس هم غوڅ کړی شو نو له سینی سره يې جوخت ونیوه چی پر زمکه ونه غورځیږي. له هغه ؓ نه بیرغ عبدالله بن رواحه رضی الله عنه واخست هغه پخپل اس باندی سور و اوددښمن په طرف په منډه روان شو هغه په زړه کې څه تردد محسوس کړ نوله خپل نفس نه يې جنګ ته د ور ننوتلو مطالبه وکړ او دخپل ځان دزړه ورکولو اوتشجیع لپاره دا شعریې وویل:

اقسمت یانفس لتنزلنّه لتنزلن اولتکرهنه
ان اجلب الناسُ وشدوا الرنّة مالي اراكِ تکرهین الجنة
قد طال ماکنتِ مطمئنّة هل انت الا نطفة في شنة
یانفس ان لاتُقتلي تموتي هذا حمامُ الموت قد صلیت
وما تمنیت فقد أُعطیتِ ان تفعلي فعلهما هُدیتِ
وَاِنْ تَاَخَرْتِ فقد شَقِیْتِ

یعنی ای نفسه ! ماقسم ( لوړه )کړی چې ته به دجنگ میدان ته ورننوځی که خوند درکوي او که نه یې درکوي ( یعنې که ستاخوښه وي او که خوښه دی نه وي داکار به کوې )

که خلک له هرې خوانه دجنگ میدان ته ورننوتل اوله کمانونو نه یې شړک او شړوک پورته کیږي ، نو ته څه بلاوهلې یې چې جنت بدګڼې اونه یې خوښوې .( یعنې دجنگ میدان ته نه وردانګې )

تاخو ډیره اوږده زمانه په ارام او ر احت کې تیره کړه ( نوچې نور صحابه کرام رضی الله عنهم شهیدان کیږي نو ته هم ځان شهید کړه ) ځکه ته دهغوی په وړاندی داسې یې لکه په زړی مشکیزی ( ژی ) کې یو څو څاځکې اوبه.

ای نفسه ! که شهید نشې نو ( په خپل مرګ خوبه ) هرو مرو مړ کیږې ( نوله دی اوس ځان شهید کړه داخورا غوره اوبهتره ده ) ځکه دعزت مرګ ( شهادت ) درته رانژدی شوی دی .

دکوم څیز آرزو او تمنا چې تاکوله ( شهادت ) هغه اوس دتاپه لاس کې ده که ته دخپلو مخکینیو دوو ملګرو ( زید ابن حارثه او جعفر ابن ابي طالب رضی الله عنهما) په شان کار وکړې نو نیکبخته او هدایت موندوونکې به شې . اوکه له جنګ نه دی تیښته وکړه نو ته شقي او بدبخت یې .

لدینه وروسته ابن ر واحه جنگ ته ننوت، دهغه د تره زوی ورته راغې او ورته د غوښې یو ټکړه یې ورکړه چې په دې سره خپله ملا وتړه او سخته یې کړه ( یعنی ویې خوره چې قوت درکې پیداشي ) هغه داغوښه راواخسته اویو خرپ مړه یې ترینه وکړه او ویې ویل : ای نفسه ! ته به ترڅوپه دې دنیا کې یې ؟ بیایې هغه هډوکې وغورځاو او ددښمن په صف کې ننوت اوترهغه یې قتال وکړ ترڅوچې شهید شوې نه و .

په دی ترتیب ټول هغه درې واړه قائدین شهیدان شول چې رسول الله صلی الله علیه وسلم مقرر کړي وو . یعنی زید بن حارثه، جعفربن ابي طالب او عبدالله بن رواحه رضی الله عنهم.

لدېنه وروسته بیرغ ثابت بن اقرم الانصاري جګ ونیو او مسلمانانو ته یې آواز وکړ چې بیرغ لپاره څوک غوره کړئ. مسلمانانو ورته وویل همداته صحیح یې هغه وویل زه داکارنه شم کولې لـه مانه علاوه بل څوک غوره کړئ خلکوخالد غوره کړه. خالد ابن الولید بیرغ اوچت کړ هغه رضی الله عنه صحابه ګوښه او یوه څنګ ته کړل ترڅو تکلیف ورته ونه.ر سیږي بیایې دخپل لښکر نظم ونسق برابر کړ چې کله هغوی منظم شول نو دجنګي حکمت عملي په بناهغوی ته خالد رضی الله عنه دعقب نشیني حکم وکړ او رومیانو ته الله جل جلاله ماته ورکړ .[1]

(( روی البخاری عن انس بن مالك رضی الله عنه ، أنَّ رسول الله ﷺ نعی زیـدا وجعفـر وابـن رواحـه قـبل أن یأتیـه خـبر، فقـا ل " اخذ الرایة زیدٌ فأصیب ، ثـم اخذهـا جعفرٌ فأُصیب ، ثم اخذها ابن رواحة فأصیب ثم اخذ الرایة سیفٌ من سیوف الله حتی فتح الله علیهم." [2]))

---

[1] ـــ سیرة ابن هشام

[2] ـــ رواه البخاري في المغازي : ۵/ ۸۷

ژباړه :امام بخاري لـه انس ﷺ نه روايت كوي چې بيشكه رسول الله ﷺ دزيد ، جعفر اوابن رواحه رضى الله عنهم دشهادت خبر دهغوى دمړيني دخبر لـه رارسيدونه وړاندې وركړ. هغه ﷺ وفرمايل : بيرغ زيد واخست اوهغه شهيد شو بيا جعفر واخست هغه هم شهيد شو بيا ابن رواحه واخست هغه هم شهيدشو بيا بيرغ دالله تعالى لـه تورو څخه يوې تورې واخست او الله جل جلاله ورته برى وركړ.

ابن اسحاق ويلي دي چې كله دادرې واړه شهيدان شول نورسول الله صلى الله عليه وسلم دهغوى دشهادت خبر وركړ . اوويې ويل بيرغ زيد ابن حارث رضى الله عنه اوچت او وجنګيد ترڅو شهيد شو بيا جعفر رضى الله عنه واخست هغه هم بيرغ نيولې و او قتال يې كاو او دشهادت مرتبه يې ترلاسه كړه . بيارسول الله صلى الله عليه وسلم خاموش او چپ شو نو دانصارو دمخونورنګ بدل شو او داګمان يې وكاو چې كيداى شي دعبدالله بن رواحه رضى الله عنه نه څه غلطي شوې وي ځكه رسول الله صلى الله عليه وسلم دهغه يادونه ونكړه .... ديو څه وخت چپ والي وروسته نبي اكرم صلى الله عليه وسلم وفرمايل : بيا عبدالله ابن رواحه رضى الله عنه بيرغ راواخست او جهاد يې كاو ترڅو شهيد شو بيا يې وفرمايل ماته په جنت كې دوى دسرو زرو په تختو ناست راښكاره كړى شول نو مادعبدالله ابن رواحه په تخت كې څه داسې كوږ والې احساس كړ چې ددوه نورو ملګرو په تختونو كې نه و ماپوښتنه وكړه دادڅه په سبب ؟ ځواب راكړې شو هغوى دواړه بې لـه تردد نه جنګ ته ورننول او ده لـه تردد نه وروسته جنګ ته ور ودانګل ( نو داكوږ والې ددى وجهى نه دى .)

(( وروى البخارى عن عبدالله بن عمر ﷺ قال: كنتُ فيهم فى تلك الغزوة فالتمسنا جعفربن ابي طالب فوجدنا ه فى القتلى ووجدنابما اقبل من جسد ه بضعاوتسعين ، بين ضربةٍ ورميةٍ وطعنة )).[1]

بخاري لـه عبدالله بن عمر ﷺ نه روايت كوي هغه وايي چې زه په دغه غزوه كې پخپله موجود وم ، موږ جعفر ﷺ پسې لټه شروع كړه هغه مو دوژل شووخلكوپه منځ

---

[1] ــ رواه البخاري في المغازي ۵/ ۸۷ .

کې ومونډ چې په وجود کې یې له نوي ته زیات ټپونه وو چې په تورو، غشو او نیزو باندې وهل شوی و. اودا ټول زخمونه په مخکې طرف کې وو یو یې هم دشاله طرف نه وو خوړلی ، داهم له حدیث نه ثابت دي چې الله تعالی جعفر ﷺ ته دهغه د دواړو لاسونو پرځای دوه وزرې وزکړیدي چې په جنت کې الوتنه کوي. او دادهغو لاسونو عوض او بدل دی چې ده دالله جل جلاله په لار کې قربان کړیدي . عبدالله بن عمر ﷺ به چې کله دجعفر زوی خواته راتلونو السلام علیکم یا ابن ذی الجناحین به یې ورته ویل . یعنی ای د دوه وزرو والا زویه ! پرتادې سلام وي.

دعلماو ترمنځ په دې کې اختلاف دی چې په غزوه موته کې مسلمانانو ماته خوړلې وه اوکه بری یې ترلاسه کړی و. ځینې علماء وایي چې مسلمانانو ماته خوړلې وه ځکه چې هغوی دوه لکه وو اود مسلمانانو شمیر دری زروته ایله رسیدو. دغوعلماو دعبدالله بن عمرو رضی الله عنهما په دې حدیث باندې دلیل نیولی دی چې وایي:

فلَمَّا لقینا العدوَّ انهزمنا . یعنی کله چې موږ له دښمن سره مخامخ شو نو ماته مو وخوړه موږ څوکسه مدینی ته راغلو او همدلته موځان پټ کړ.بیامو پخپلو کې وویل چې که چیرته موږ درسول الله ﷺ خواته تللي وای نو عذر او معذرت به مو ورته وړاندې کړی و .

نوموږ درسول الله ﷺ حضورته لاړو نو ورته مو وویل : یارسول الله موږ فرارون ( یعنی له جنګ نه تښتیدونکي یو ) رسول الله ﷺ وفرمایل : نه تاسی تښتیدونکي نه بلکې عکارون ( دوباره حمله کونکی یئ ) خوداحدیث ضعیف دی .[1]

نورو علماو ویلي دي چې دموتی په غزوه کې نه شکست و اونه هم بری. له دغو علماو څخه ابن اسحاق هم دی. هغه وایي چې کله خالد بن ولید ﷺ بیرغ واخست نو مسلمانانو هم دجنګ میدان پریښود او رومیانوهم دجنګ میدان پریښود. دمسلمانانو [2] .خو محققین علماء وایي چې دموتی په غزوه کې مسلمانانو بری

---

[1]_ مسند احمد : ۲/ ۱۱۱ ، وسنن ابي داود : ۳/ ۱۰۶ وسنن الترمذي ٤/ ۲۱۵

[2]_ سیرة ابن هشام : ٤/ ۲٤

ترلاسه کړې اوالله تعالی دږومي لښکر په مقابل کې له مسلمانانو سره مرسته کړې او هغوی ته يې بری ورکړيدی.

واقدی، بيهقي او ابن کثير رحمهم الله هم په دی قول کړی دی اودا راجحه هم ده .

واقدی رحمه الله وايي چی کله خالد بن وليد بيرغ اوچت کړنو په لښکر کی يو بدلون راوست ، وروستی لښکر مخکې او مخکيني لښکر وروسته شو، ښي طرف ته ولاړ لښکر کڼ اړخ ته شواوکڼ اړخ ته ولاړښي اړخ ته شول . هغوی چی ناڅاپي د مسلمانانو دلښکر دغه حالت وليدنو پخپلو کی يې وويل : نور مسلمانان مرستې لپاره راغلل دهغوی په زړه کی ويره پېداشوه ، تيت پرک شول او شکست يې وخوړ. مسلمانانو پرهغوی يرغل وکړ اوډير رومي کافران يې ووژل[1] .لدېنه معلوميږي چی دموتی په جنګ کې مسلمانانو دالله په مرسته برې ترلاسه کړې، لکه چې دبخاري له دې حديث نه هم ثابتيږي چی وايي:

((ثم اخذ الراية سيف من سيوف الله حتى فتح الله عليهم )).

بيا بيرغ الهی توری ( خالد بن وليد ) اوچت کړ او الله تعالی ورته بری ورکړ.

رسول الله ﷺ پخپله دغی غزا ته فتح اودالله له طرف نه نصرت ويلي دي. بل دامام بخاري دغه حديث هم چی له عبدالله بن عمر ﷺ نه يی روايت کړيدی اوهغه ويلي دي چی موږدجعفر بن ابی طالب په لټه کی ووتلو اوهغه مو دوژل شويو اصحابوپه منځ کی وليد ، دهغه په مخکينی حصه باندی دتورو غشو اونيزو له نوي نه زيات زخمونه وو.

که چيرته مسلمانانو ماته خوړلې وای نو اصحابو کله کولی شول چی په خپلو شهيدانو پسې وګرځي اوهغوی پيداکړي. آن چی دهغوی زخمونه وشميري چی څومره غشي، تورې او نيزې وربانديی لګيدلي دي.داحديث په دی دلالت کوي چی کله مشرکانو ماته وخوړه او وتښتيدل نو مسلمانانو دخپلو وژل شويو روڼو لټه

[1] _ مغازي الواقدي : / ٧٦٤

شروع کړ. تردی چې تول یې پیداکړل. او ابن عمر رضی الله عنه دهغو خلکو څخه و چې دجعفر رضی الله عنه دبدن نندارہ یې کوله اودهغه زخمونه یې شمېرل.

(( روی البخاری عن قیس بن ابی حازم قال : سمعت خالدبن الولید ﷺ یقول : لقد انقطعت فی یدی یوم مؤتة تسعة اَسیافٍ ،ومابقي فی یدی الا صفیحةٌ یمانیة[١] )).

بخاري لـه قیس بن ابی حازم نه روایت کوي هغه وایي چی ماله خالد بن ولید ﷺ نه واوریدل چی ویل یې: مادموتی په غزوه کې ۹ تورې ماتې کړې اوزماپه لاس کی صرف یوه پلنه یمني توره پاتی شوه.

کـه چیرته مسلمانانو ماتـه خوړلی وای نوداخبره څنګه ممکن کیدای شوه چې خالدبن ولید په جنګ کې ۹ تورې ماتی کړی وای. دغـه شان یو روایت ابوداود هم کړیدی چې په لاندې ډول دی:

(( رواه ابـو داود عن عوف بن مالك الأشجعي رضي الله عنه قل: خرجت مـع زیدبـن حارثـة في غـزوة مؤتـة ، فرا فقني مد دیٌّ من أهل الیمن [الذی یأتي مدَدًا للجیش في الحرب ] لیس معه غیر سیفه .....

ومضـینا فلقـینا جمـوع الروم ، وفیهم رجل علی فرسٍ لـه أشقر، علیه سرج مذهّـب وسلاحُ مُذهَّب ، فجعل الروميُّ یفري بالـمسلمـین [شدیدُ الحربِ عـلیهم والـنکایة فیهم ] فقعد لـه المد دیُّ خلف صخرة ، فمرَّ به الرومي، فعـرقب فرسـه فخـرَّ، وعلاهُ المد دیُّ فقتله ، وحاز فرسه وسلاحَه...فلما فتح الله عـزوجل للمسـلمین ،بعث إلیه خالدُ بن الولید ، فأخذ السلب ...قل :

---

[١]ـ رواه البخاري في المغازي ٥/ ٧٨

عـوف : فـأتيتُ خـالداً ، فقـلتُ لــه : أمـا عـلمتَ أن رسـول الله ﷺ قضـى بالسَّلَبِ للقاتل ؟

قل : بلى. ولكنى استكثرتُه...

قلت : لتردَّنَّه عليه ، أولأ عرفنَّكها عندرسول الله صلى‌الله عليه وسلم !

فأبي خالدٌ أن يردَّه عليه .

قـل عـوف :فلجتمعـنا عندرسـول الله ﷺ فقصصـتُ عليه قصة الـمدد يِّ ، ومافعلَ خالد .

فقل رسول الله ﷺ : (( ياخالد : ماحَمَلَكَ على ماصنعت؟)) .

قـل : لقـد اسـتكثرته يارسول الله !فقال ﷺ : (( ياخالد : رُدَّ عليه ما أخذْتَ منه. [1] )).

له عوف بن مـالک الاشجعي ﷺ نه روايت دی هغه وايي چې زه لـه زيد بن حارثه ﷺ سره يوځـای دموتی غـزوی تـه لاړم. لـه ماسره ديمـن يواوسيدونکی پـه لاره کی راسره ملګری شو اوهغـه دمسلمانانو دمدد لپاره راغلی و اوله هغه سره دهغه لـه توري نـه پرته بل څه نه و. مونږ چې مخکې لاړو نو دورمي لښکر يوه ډلـه زمونږ مخې تـه راغلـه. پـه هغـوی کی يوسړی پـه سورچی مـائل و زيړ والي ته اس باندې سپور و. دهغـه داس زين پـه سروزرو ښکلې شوې و اوپـه وسله کې هم سره زر استعمال شوي وو. دغـه رومـي مسلمانانو تـه ډير زيـان وراړاو اولـه مسلمانانو سره يې ډيره سخته جګړه کولـه کله چې روميانو پـه مسلمانانو باندی يرغل وکړ او کلک جنګ.ونښت نو دغه يمني مجاهد ديوی لويې تيګې ترشا ځان پټ کړ. کله چې دغه رومي دهغه لـه

[1] ــ رواه مسلم في الجهاد ٣/ ١٣٧٤

ځنګ نه تیرشو نویمني پرهغه یکدم حمله وکړه اودهغه داس دپوندی دپاسه پله یې پریکړه هغه له اس نه وغورځید او یمني هغه مړکړ. له هغه نه پاتی شوې اس او وسله یې واخست کله چې الله تعالی مسلمانانو ته بری ورکړ نوخالد بن ولید هغه ته یوسړی ولیږلو اودغه دواړه یې ترینه واخستل. عوف وایي چې زه خالد ﷺ ته ورغلم او ورته می وویل چې ایا تاته داندي معلوم چې رسول الله ﷺ ددې خبرې فیصله کړیده چې کله یو مسلمان کافر ووژني نو دهغه مال د قاتل حق دی .

هغه ﷺ وویل : هوزه خبریم. لاکن داخوزښته ډیرشی دی ( دومره ډیر ځنګه ورکړم ) ماورته وویل یابه یې ورته واپس ورکوې اویابه زه تا محمد ﷺ ته وربښایم .

خالد ﷺ له ورکولو نه انکار وکړ.

عوف ﷺ وایي چې کله موږ درسول الله ﷺ په خواکې راغونډ شو نو ما دیمني مددکوونکي مسلمان شخص کیسه رسول الله ﷺ ته وکړ.

رسول الله ﷺ خالد ﷺ ته وویل : تا داکارولې کړیدی ؟ هغه ﷺ وویل : یارسول الله ! زما په ګومان داډیر و ځکه مې ترینه واخست رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل : ای خالده! تاچی ترینه څه آخستي دي هغه ورته بیرته ورکړئ. له دی حدیث نه هم معلومیږي چې دموتی په جنګ کې مسلمان بریالي واپس شویدي او هغوی له رومیانو نه د غنیمت مال هم ترلاسه کړیدی او عوف ﷺ ددی خبری تصریح او وضاحت کوي چې الله تعالی له مسلمانانو سره دموتې په غزوه کې مرسته کړې او بری ورته په نصیب کړیدی.



# درسول الله ﷺ نورې سریې په لاندې ډول دي

(۲) دعبیده بن الحارث ﷺ ترقیادت لاندې دمهاجرینو سریه ده په دې کې دمسلمانانو ټوله شمیره شپیته تنه وه. اوداد رابغ په طرف تللې وه.

(۳) دسعدبن ابی وقاص ﷺ ترقیادت لاندې سریه ده چې دابواء له غزوې نه مخکې وه.

(۴) دعبدالله بن جحش ﷺ ترقیادت لاندې سریه ده اوداله بدر اولی نه وروسته وه.

(۵) دعمرو بن عدي ﷺ ترقیادت لاندې سریه.

(۶) دسالم بن عمیر رضی الله عنه ترقیادت لاندې سریه.

(۷) دکعب بن اشرف سریه.

(۸) دزید بن حارثه ﷺ سریه ده چې قردة ته تللې وه اوداد احدله غزوې نه وړاندې وه.

(۹) دابی سلمه بن عبدالاسد سریه ده چې له حمرالاسد نه وروسته وه.

(۱۰) دعبدالله بن انیس رضی الله عنه سریه.

(۱۱) دمحمدبن سلمه ﷺ سریه ده چې دخندق له جنګ نه وروسته دهوازن قرظاء ته تللې وه.

(۱۲) دعبدالله بن عتیک ﷺ سریه ده چې دابي رافع یهودي دوژلو لپاره تللې وه.

(۱۳) دسعیدبن زید ﷺ سریه چې عرنیین ته تللې وه.

(۱۴) دعکاشه بن محصن ﷺ سریه چې غمرنومې ځای ته تللې وه دادبني اسد لپاره داوبو ځای و.

(۱۵) دمحمد بن مسلمه رضی الله عنه سریه چې مدینې ته نژدې ذی القصه نومې ځای ته تللې وه.

(۱۶) دابی عبیده بن الجراح ﷺ سریه داهم ذی القصه ته تللې وه.

(۱۷) دزیدبن حارثه ﷺ سریه، دا په جموم کی بنی سلیم ته تللې وه .

(۱۸) دزیدبن حارثه ﷺ سریه دامدینې ته نژدی دعیص نومی ځای ته تللې وه.

(۱۹) دزیدبن حارثه ﷺ سریه دا وادی القری ته نژدی طرف نومی ځای ته تللې وه.

(۲۰) دزید بن حارثه ﷺ سریه چې وادی القری هغې خواته حیمی نومی ځای ته تللې وه.

(۲۱) دزید بن حارثه رضی الله عنه سریه وادي القری ته تللی وه.

(۲۲) دعبدالرحمن بن عوف ﷺ سریه چې دومة الجندل ته تللې وه.

(۲۳) دزید بن حارثه ﷺ سریه چې مدین ته تللې وه.

(۲۴) دعلي بن ابي طالب ﷺ سریه جي فدک ته دسعدبن بکر قبیلې پسې تللې وه .

(۲۵) دزیدبن حارثه ﷺ سریه چې وادی القری ته دام قرفه په طرف تللې وه.

(۲۶) دعبدالله بن رواحه سریه چې اشبر بن رزام الیهودي ته تللې وه.

(۲۷) دعمرو بن امیه الضمري ﷺ سریه.

(۲۸) دعمربن الخطاب ﷺ سریه، چې مکې ته نژدی تربه نومی ځای ته تللې وه.

(۲۹) دابی بکر الصدیق ﷺ سریه چې په نجدکې بنی کلاب ته تللې وه .

(۳۰) دبشیر بن سعدا لانصاري رضی‌الله سریه چې فدک ته تللې وه.

(۳۱) دغالب بن عبدالله اللیثی ﷺ سریه چې میفعی ته تللې وه .

(۳۲) دبشیر بن سعدالانصاري ﷺ سریه چې یمن اوجبار په طرف تللې وه.

(۳۳) دابن ابی العوجاء رضی الله عنه سریه چې بنی سلیم ته تللې وه.

(۳۴) دغالب بن عبدالله اللیثی رضی الله عنه سریه چې په کدید کی بنی الملوح ته تللې وه .

(۳۵) دغالب بن عبدالله الليثي ﷺ سريه چې په فدک کې دبشير بن سعد ملګرو پسې تللې وه.

(۳۶) دشجاع بن وهب الاسدي ﷺ سريه چې بنی غالب په لور تللي وه.

(۳۷) دکعب بن عمير الغفاري ﷺ سريه چې ذات اطلاح ته تللي وه.

(۳۸)دعمرو بن العاص ﷺ سريه چې ذات السلاسل ته تللې وه.

(۳۹) دابی عبيده بن الجراح ﷺ سريه چې سيف البحر ته تللې وه. دی ته دضبط ياعنبر سريه هم ويل کيږي.

(۴۰) دابی قتاده الانصاري ﷺ سريه چې نجد ته نژدې دمحارب سيمې ته تللي وه

(۴۱) دابي قتاده الانصاري رضی الله عنه سريه چې مدينې ته نژدی اضم ته تللې وه

( ۴۲) دابی حدرد الاسلمي ﷺ سريه چې مدينی ته نژدی غابه ته تللې وه.

(۴۳) دخالدبن وليد ﷺ سريه چې نخلی ته دعزی بت د ورانولو لپاره تللي وه.

(۴۴) دابی عامر الاشعري ﷺ سريه چې دهوازن اوطاس ته تللې وه.

(۴۵) دعمرو بن العاص ﷺ سريه چې دسُواع بت دورانولو لپاره نخلة مقام ته تللی وه.

(۴۶) دسعدبن زيد رضی الله عنه سريه چې دمنات بت د دورانولو لپاره تللي وه.

(۴۷) دخالد بن وليد ﷺ سريه چې دکنانو بنی جُذيمه ته تللې وه.

(۴۸) دطفيل بن عمرو الدوسی ﷺ سريه چې د ذی الکفين د بت د ورانولو لپاره تللي وه.

(۴۹) دعيينه بن حصن الفزاري ﷺ سريه چې بنی تميم ته تللي وه.

(۵۰) دقطبه بن عامر ﷺ سريه چې خثعم ته تللي وه.

(۵۱) دضحاک بن سفيان الکلابي رضی الله عنه سريه چې بني کلاب ته تلی وه.

(۵۲) دعلقمه بن مجزز ﷺ سریه چی حبشی ته تللي وه.

(۵۳) دعلی بن ابی طالب ﷺ سریه چی دالفلس دبت دماتولو لپاره طی قبیلې ته تللي وه.

(۵۴) دعکاشه بن محصن ﷺ سریه چی په عذره کی حباب نومی سیمی ته ورغلي وه.

(۵۵) دخالدبن ولید ﷺ سریه چی د دومة الجندل اکیدر ته تللي وه.

داټول پنځه پنځوس سریي دي چی رسول الله ﷺ پخپل ژوند کی استولي دي .



# فصل

## د مسلمانانو ځینی غزاګانې او بریا لیتوبونه یې

دهغوغزاګانو اوسریو په باره کی معلومات وړاندی شول چی یاپخپله رسول الله ﷺ دهغوی قیادت کړی و اویایې بل کوم اصحابی پرهغه مشر مقرر کړی و .

جهاد یواځې محمد ﷺ اودهغه اصحابو پورې خاص نه و. بلکی دا داسې یو واجب دی چی په هروخت ، زمانه دهرځای کې پرمسلمانانو فرض دی.

هیڅ یو مسلمان لپاره روانه دی چی له جهاد نه ځان په ډډه کړي بیادخپل برائت لپاره داعلت او بهانه کوي او وایي چی جهاد یواځې په رسول الله ﷺ باندی فرض و، الله تعالی له هغوی سره دمرستې لپاره پرښتې لیږلي اودهغوی مدد او مرسته یې کوله. هغه صلی الله علیه وسلم ددعوت په رسولو او هغوی سره دجهاد په کولو مکلف و . نو ځکه جهاد ترهغه پورې خاص و. لکه څنګه چې دانه دی ورته روا چې دخپلې ناستې لپاره دادلیل ونیسي چې صحابه و څوځکه جهاد کاو چې هغوی سره نبوي رازونه او محمدي فکرونه او افکارملګري وو؟

جهادپه حقیقت کی داسلام روح او ځان دی. رښتونی مسلمانانو درسول الله ﷺ اودهغه له اصحابوله رحلت نه وروسته هروخت جهاد جاري ساتلې دی اویوې شیبې لپاره هم له جهاد نه غافل نه دي پاتې شوي. دکفارو په خلاف یې ډیر سخت سخت جنګونه کړیدي. ددښمن ډیر غټ غټ جنګیالي یې وژلي او بریمن شویدي . موږ لاندی یوڅومثالونه اونمونی دلته د تاریخ پوه حافظ شمس الدین ابی عبدالله محمدبن احمدبن عثمان بن الذهبی له کتاب ، تاریخ الاسلام څخه محترمو لوستونکوته وړاندی کوو.

درسول الله ﷺ له رحلت او دابوبکر صدیق رضی الله عنه له خلیفه کیدو نه وروسته متصل جهاد بیرته په هغه وخت شروع شو کله چی ډیر عرب داسلام له سپیڅلي دین نه مرتد شول. ابوبکر صدیق رضی الله عنه دهغوی دوژلو پوخ عزم وکړ اوخالدبن ولید یې پر مسلمانانو باندی امیر وټاکه ترڅولاړشي او مرتدین ووژني.خالد رضی الله عنه مرتد طلیحه بن

خویلد الاسدي اودهغه نور مرتدو ملګرو په خلاف وجنګید الله تعالی دمسلمانانو مرسته وکړه او مرتدینو ته یې ماته ورکړه، طیحه بن خویلد بیرته مسلمان شو اود مرتدینو جرړې ووتلې.

بیاپه ۱۲ هجري کال کې خالدبن ولید د میسلمه الکذاب چې په یمامه کی یې دنبوت دعوه کړې وه دوژلو لپاره وخوځید اوپه یمامه کی ډیر سخت جنګ ونښت. ډیر مسلمانان اوصحابه په شهادت ورسېدل اوله مرتدینو نه هم ډیر زیات کسان ووژل شول.

بالاخر داجګړه دمسلمانانو په ګټه تمامه شوه مسیلمه الکذاب په کی خپل سر وخوړ او مردارشو .

ابوبکر صدیق رضی الله عنه په دیارلسم هجري کال دشام دښارونودفتحې لپاره دمسلمانانو لښکرې واستاولې ، عمرو بن العاص ﷺ ته یې لارښوونه وکړه چې فلسطین ته لاړشي، او ابا عبیده بن الجراح او یزید بن ابی سفیان ، شرجیل بن حسنه رضی‌الله عنهم ته یې حکم وکړ چې دشام په طرف لاړشي.

په دیارلسم هجري کال د روم په خلاف داجنادین جګړه د رمله اوبیت جبرین ترمنځ په سیمه کی چې په فلسطین کی ده واقع شوه . همدغه شان دروم په خلاف یوه بله جګړه ددمشق او جولان ترمنځ په سیمه کی وشوه چې دادساراېسیمې "مرج الصفر" په نوم سره شهرت لري .یوه بله جګړه هم دروم په خلاف داردن او فلسطین ترمنځ سیمه کی ترسره شوه داجنګدفحل په نوم یادیږي . ابو بکر صدیق رضی الله عنه وفات شو او عمر ابن الخطاب رضی‌الله عنه په دیارلسم کال دهجرت خلیفه شو . په څوارلسم کال دهجرت بیا دمشق فتح شواو داجګړه په داسې شکل کې مخ په وړاندې لاړ چې خالدبن ولید دلښکر په لومړي صف کې و په دی جګړه کې قیادت داباعبیده په لاس کی و اودرومیانو مشر باهان نومې سړی و.

مسلمانان او رومي لښکر دواړه دمشق ته نژدی مخامخ شول اود دواړو ترمنځ سخته نښته وشوه ، الله تعالی مسلمانانو ته بریې ورکړه، رومیان ددمشق ښارته ننوتل اوپه ځان پسې یې دټولو کلاګانو ټولې دروازې بندې کړې، مسلمانانو ددمشق ښارخوشپې ورځې محاصره کړ. د منجنیق په واسطه یې دکاڼو باران وربانډې

جوړکړ. باهان دماشوم دزيړيدو په وجه يوه لويه ميلمستيا تياره کړې وه. رومي لښکرد ډوډۍ اوشرابو په خوراک څښاک کې مشغول وو . خالد بن وليد له پړونه زينې جوړې کړې. پخپله خالدبن وليد ، قعقاع بن عمرو او مذعور بن عدي رضی‌الله عنهم وړاندې شول دپړونه جوړې کړې زينې يې په ديوالونو کې زړونده کړې اومجاهدين په ديوالونو باندې وختل. دالله اکبر ناره يې پورته کړه. روميان ډير وارخطا اوګډوډ شول. خالد دښار دروازې خلاصې کړې اوپيره داران يې ووژل. مسلمانان له دغو دروازو نه دمشق ته ننوتل. اودښار له بل لورې نه ابی عبيده ﷺ دسولې له لارې ننوت. دواړه ډلې يعنی دخالد اوابي عبيده لښکرې يوبل ته مخامخ شول اوپه دې ترتيب ددمشق ښار نيم دجنګ له لارې او نيم دسولې له لارې دمسلمانانو په لاسوکې پرې وتلو. دهجرت په پنځلم کال ديرموک معرکه وشوه داډيره شديده او عظيمه پيښه وه . په دې جګړه کې روميان درې لکه وو اودمسلمانانو شمير ديرش زره و او اميرېې ابو عبيدة ابن الجراح و. روميانو خپل لښکر ټولې ټولې په زنځيرونو تړلي وو چې تيښته ونکړي کله چې الله جل جلاله روميان له شکست سره مخ کړل همدا زنځيرونه الله جل جلاله ددوی د هلاکت سبب وګرځول هغه په دې ډول چې کله به يو تښتيده نوله خپل ځان سره په زنځير کې تړلي عسکر به يې هم له ځان سره کشول ديرموک دسمې زمکې نه اخوا يوه ژوره ستره کنده وه نودروميانو په لس ګونو زره عسکر په دغه وادي او کندې کې وغورځيدل اوپه خپل مرګ مردار شول په يرموک کې دمسلمانانو واعظ او نصحيت کونکي ابو سفيان رضی الله عنه و دادخپل زوی يزيد تر بيرغ لاندې و . ده به مسلمانانوته په خپل وعظ کې داويل . داورځ دالله جل جلاله له نعمتونو څخه يو نعمت دی نو په ازموينه کې ځانونه ښه بريمن کړئ اوله الله جل جلاله نه به يې پدې الفاظو دعا غوښتله " يانصرالله اقترب " ای دالله مرستې او نصرته راننه او رانږدې شه . دهجرت په پنځلسم کال په عراق کې دقادسيه جګړه وشوه. په دې جګړه کې دمسلمانانو شمير اته زره و اوسعدبن ابی وقاص يي اميرو، ددښمن شمير شپيته زره او مشر يې رستم و.

الله تعالی مسلمانانو ته دقادسیه په جنګ کې لوی بری ورکړه اودښمنانو سخته ماته وخوړه رستم اودهغه زرګونه جنګیالي ووژل شول. مسلمانانو له هغوی نه ډیر زیات دغنیمت مالونه ترلاسه کړل. دقادسیه جګړه دفارس دښارونو دفتح کولو لپاره دکنجي کار وکړ.

په شپاړلسم هجري کال دجلولاجګړهٔ وشوه. داجګړه د اتش فرست فارسیانو په خلاف دجلولا دنهر له هغه لوری نه چې ددجلې نهرته وتلی ده شروع شوه. الله تعالی فارسي لښکر ته لویه ماته ورکړه. اوتقریباً دیولک شاوخوا جنګیالي یې ووژل شول او مسلمانانوپه لویه پیمانه د غنیمت مال ترلاسه کړ.

له دیارلسم هجري کال نه نیولی ترشپاړلسم هجري کال پورې مسلمانانو دکسری اوقیصر په حکومتونو او تختونوباندی قبضه وکړه. اودومره غنیمت یې ترلاسه کړه چې لدینه مخکی دومره غنیمت یې چیرته نه و ترلاسه کړې، اونه چاددومره غنیمت ترلاسه کول اوریدلي وو .دغنیمت په مالوکی سره زر سپین زر، ورېښم، جواهرات بنګلې او ښارونه او نور ډیر قیمتي شیان شامل وو.

په شپاړلسم هجري کال عمربن الخطاب ﷺ دشام په طرف تشریف یو وړ اوبیت المقدس یې له جنګ نه پرته د روغې جوړې له لاری فتح کړ.

په شلم هجري کال مصرله ډیر سخت قتال اوجنګ نه وروسته دمسلمانانو په لاس فتح شو همدغه راز په شلم هجري کال کی تستر هم فتح شو چی مسلمانانو دابو موسی الاشعري ﷺ ترقیادت لاندی دیوکال راهیسی محاصره کړی و، اوددښمن لښکر قائد هرمزان هم هلته دمحاصرې په حالت کی و اوپه کلاکې یې ځان پټ کړی و له کافرانو نه یوسړی په پټه حضرت ابوموسی اشعري ﷺ ته راغی او ورته یی وویل : که تاسی ماته زماله کورنۍ سره امان راکړئ نو زه به تاسو ته په تستر( ښار) کی دننه کیدو پټه لاره ګودره وښایم.

حضرت ابوموسی اشعري ورسره ومنله. هغه وویل : تاسی له ماسره یو پوه لامبو وهونکی هوښیار سړ ی ملګری کړئ. حضرت ابوموسی اشعري ﷺ مجزاة بن ثور ﷺ ورسره ملګری کړ. دواړه داوبو له لاری دديوال په پناه کی دبطخو پشان کله په

لامبو او کله په خاپوړو هلته ورسېدل او ټوله لاره یې وپیژندله. هلته یې هرمزان هم ولید دهغه دوژلو اراده یې وکړه خوبیا په دی وجه وروسته شو چی هسې نه راز فاش نه شي. مجزاة رضی الله عنه بیرته ابی موسی اشعري رضی الله عنه ته راغی اوله ځان سره یې پنځه دیرش نور مجاهدین هم ملګري کړل دغه کسان دبطخو پشان دلامبو په ذریعه ښارته ورسېدل هلته یې ددښمن له لښکر سره جنګ یې شروع کړ، پخپله مجزاة بن ثور رضی الله عنه ددښمن دلاسه ولګید اوشهیدشو.مسلمانانو ته دسهار دلمونځ د اداکولو فرصت دسختی جګړې له کبله پیدا نه شو اودسهار لمونځ یې له ماسپښین سره وکړه.

هرمزان دعمربن الخطاب رضی الله عنه په حکم سره له کلانه کوز شو، اسلام یې راوړ او مدینی منوری ته لاړ.

په کال یوویشتم کی عمروبن العاص رضی الله عنه اسکندریه فتحه کړه .

له قبطیانو او رومیانو سره یې سخته جګړه وکړه او له ماتی سره یې مخامخ کړل او دمقوقس څخه یې په زور ونیوله او په ښار باندی یې د مسلمانانو پېره داري مقرره کړه لدېنه وروسته عمروبن العاص رضی الله عنه مصرته راستون شو دهر قل زوی قسطنیطن درومي بحري قواوو سره په اسکندریه باندې یرغل وکړ او ترخپلې ولکې لاندی یې راوستله اوپکې موجود مسلمانان یې ټول ووژل عمرو ابن العاص رضی الله عنه د۱۵ زره کسیزه لښکر سره چې ښه په وسلو سمبال وو ورباندی یرغل وکړ او ددوهم ځل لپاره یې فتح کړه ، همدغه راز په یوویشتم هجري کال دنهاوند جګړه وشوه، داډیره سخته جګړه وه. په دی جنګ کې کافرانو خپل ځانونه په زنځیرونو کی تړلي وو چی چیرته دمسلمانانو دمقابلی نه ونه تښتي ، مسلمانانو له کافر لښکر سره ډیر سخت اوکلک جنګ وکړ په زمکه دانسانانو دوینی ویالی بهیدلې دمسلمانانو مشر نعمان بن مقرن رضی الله عنه داس پښې وښوېدلې کافرو په غشي وویشت او شهیدشو. مشري حذیفه بن یمان رضی الله عنه ترلاسه کړ.

الله تعالی مسلمانانو ته بری اودښمنانو ته سخته ماته ورکړه ، په دی جنګ کې تقریباً یولک نه زیات کافران ووژل شول.

دهجرت په اووه ویشتم کال معاویه بن ابی سفیان ﷺ دقبرص دجزیری دفتح کولو لپاره غزا وکړه. له هغه سره عباده بن الصامت رضی‌الله عنه هم ملګری و، خوقبرص دجنګ پرځای دسولې او روغې له لاری دمسلمانانو په لاس کی پری وت. په همدی ۲۷ کال عبدالله ابن سعد بن ابی السرح په افریقا کې له کفارو سره وجنګید عبدالله ابن الزبیر رضی الله عنه دهغوی پاچا "جرجیر" وواژه پدې سره الله جل جلاله کفار له ماتې سره مخ کړل او مسلمانانو ته يې فتحه وربه نصیب کړه. او ډیر غنیمتونه دمسلمانانو لاس ته راغلل.

په همدی کال عبدالله بن عامر ﷺ داصطخر ښار یې له ډیر سختی جګړې نه وروسته ونیو. ددښمن زیات کسان ووژل شول اوګڼ شمیر نور یې تېپیان شول. له فارسیانو سره یې سخته نښته رامنځ ته شوه چې دفارسیانو په ماتې او دمسلمانانو په بری پای ته ورسیده.

دهجرت په ۳۷ کال عبدالله بن حازم السلمي په ترکستان (افغانستان) کی کفاروته ماته ورکړه او بادغیس، هرات، مروه او نورښارونه یې فتح کړل.

په هیدغه کال حارث بن مره الفهري هندوستان فتح کړ اوله همدې ځای نه دبلوچستان مکران سیمې ته او دقیقان غرونو ته ورسېدل.

په څلور څلوېښتم هجري کال کی مهلب ابی صفره په هندوستان کی غزاوکړه، په دری شپېتم هجري کال کی عقبه بن نافع الفهري رحمه الله افریقی ته لاړ او هلته یې له دصلیبانودکسیله نومی پاچاسره جهادوکړ. پخپله عقبه بن نافع او دهغه څوتنه ملګري شهیدان شول. دهغه نائب بن زهیر بن قیس البلوي دهغوی انتقام واخست کسیله یې وواژه او په بربریانو( په غربي افریقاکې یو قوم دی ) باندی غالب شو. په کال څلور اتیاوم هجري کی موسی بن نصیر داندلس ښارونه فتح کړل.

په اووه اتیاوم هجري کال کی قتیبه ابن مسلم په بخارا کې جهاد وکړ اوهغه یې فتح کړ. په کال اته اتیاوم هجري کی مسلمه بن عبدالملک د روم په ښارونو کې غزا وکړه او الله تعالی ورته په ډیرو غزاګانو کی فتح وکړه.

قتیبه بن مسلم له ترکانو سره هم جهاد وکړ ترکانو او سُغد ته یې کلکه ماته ورکړه
. په کال نوي یم هجري کی قتیبه بن مسلم دطالقان په ښار باندی قبضه وکړه .

په کال دری نویم هجری کی قتیبه بن مسلم سمرقند ته راغی دلته له ترکانو سره
یی سخت جنګونه وکړل بالاخرئې هغوی ته ماته ورکړه اودسمرقند په شمول شاوخوا
ډیری سیمې یې ونیولې.

په کال ۹۸ وم هجري کال یزیدبن المهلب بن ابی صفره دطبرستان دنیولو لپاره
جهادوکړ. دهغه ځای خلکوته یې ماته ورکړه اوزیات غنیمتونه یې ترلاسه کړل .

په همدی کال سلیمان بن عبدالملک ډیرلوی لښکر دقسطنطینه د نیولو لپاره برابر
کړ . دلښکر قیادت دمسلمه بن عبدالملک په لاس کې و .

مسلمانانو قسطنطینه دیرش میاشتې محاصره کړه په دی وخت کی مسلمانانو
ډیره لوږه تنده او تکلیفونه ولیدل خود قسطنطینه په نیولو باندی بریالي نه شول
کله چې عمربن عبدالعزیز دخلافت واکي په لاس کی ونیولې نو اسلامي لښکر یې
له قسطنطینې نه راوغوښتل.

جهاد اوفتوحات دعباسیانو په دورکې هم دشرق په مختلفو علاقو اوسیمو
هندوستان اوچین کی جاري و. همدغه راز په شمالي جبهو کی لکه روم اوپه غربي
جبهو کې لکه په اروپای کې اندلس او نورو ځایوکې روان و.

کله چی په شام کی له صلیبیانو سره دمسلمانانو جنګ ونښت نو مسلمانانو
دسلطان نورالدین زنګي په مشري له صلیبیانو نه ګڼ ښارونه آزادکړل، همدغه راز
سلطان صلاح الدین ایوبي هم له صلیبیانو سره ګڼ جنګونه وکړل چی دحطین جنګ
ډیر زیات مشهور دی ځکه چی ددغه جنګ په نتیجه کې بیت المقدس آزاد شوی و.

کله چی تاتاریانو دمسلمانانو په خلاف جنګونه شروع کړل اوترشام پورې ورسېدل
نو مسلمانان په پوره بهادری او جرائت سره دهغوی مقابلې ته ووتل. الله تعالی
مسلمانانو ته بری ورکړ اوپه ګڼو محاذونو کې یې ورته ماته ورکړه چی عین جالوت
جنګ پکې زیات مشهور دی دجهاد دروازه دمسلمانانو په وړاندی دقیامت
تروړځې خلاصه ده داسلام ژرنده چالانده ده اوله کفارو سره قتال نه دی بند شوې
اونه به بندشي .

# د ري دېرشم باب

# د قوت اوبهادرۍ مدح (ستاينه) اود بزدلۍ او كمزورۍ مزمت

پررسول الله ﷺ به قوي اوغښتلې مومن ډېر ګران و. لكه چې په حديث كې دي .

(( عن أبى هريرة رضي الله عنه قال : قال رسول الله ﷺ : (( المؤمنُ القوي خيرٌ وأحبُّ إلى الله من المؤمن الضعيف ، وفي كلٍّ خير، احرص على ما ينفعك ، واستعن بالله ولاتعجز ))[1]

له ابى هريره رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايى چى رسول الله ﷺ وفرمايل:
غښتلې مؤمن له ضعيف مومن نه ډير غوره اوپه الله تعالى باندې ډيرګران دى.
اوپه هريو كې خير دى ، دهغه څيز حرص كوه كوم چى تاته (ديني) ګټه رسوي له الله تعالى نه مرسته وغواړه او كمزوري مه ښايه.

(( روى البخارى ومسلم عن أنس بن مالك رضي الله عنه أن رسول الله ﷺ كان يقول : (( اللهم إني أعوذبك من الهم والحزن ، وأعوذبك من العجز والكسل، والجبن والهرم والبخل، وأعوذبك من عذاب القبر )).[2]

له انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دى چى رسول الله ﷺ به داسى دعاء كوله .

---

[1]ــ رواه مسلم في القدر : ٤/ ٢٠٥٢

[2]ــ رواه مسلم في الذكر والدعاء : ٤/ ٢٠٧٩ والبخاري في الدعوات : ٧/ ١٥٩

ای زماربه ! زه له تانه دپریشانی او غم نه پناه غوارم ، ای الله! په تاباندې له کمزوري اوسستی نه پناه غوارم ، له بزدلی زیات بوډاوالي بخل او دقبر له عذاب نه پناه غوارم.

دبخاري په یو روایت کی داسی راغلی دي :

(( اَللهُمَّ اِنّی اعوذبك من الهم والحزن والعجز، والکسل، والبخل والجبن ، وضلع الدين وغلبة الرجا ل. ))

ای زماربه! زه له تانه پناه غوارم له فکر او غم نه، له کم همتی اوسستی نه ، له شومتوب او بزدلی نه، دقرض دبوج اودخلکو له غالب کیدونه.

رسول الله ﷺ پخپل تعوذ کې د هم او حزن ترمنځ څومره ښکلې یوځاې والی راوستلې دی. ځکه چې له هم نه عبارت هغه ویره ده چې د راتلونکو حالاتو په وجه راځي. او له حزن نه مراد هغه غم افسوس دي چی وړاندې تیرشوې څیزوي.

رسول الله ﷺ پخپل دعاکې کمزوري اوسستي دواړه سره جمع کړل ، ځکه چې دکمزوري معنی ده کم همتي یعنی یوسړی چی څه کول غواړي دهغه دکولو توان پخپل ځان کی نه ویني. اودکسل ( سستي ) معنی ده په بندګانو باندی چی دکومو واجبي کارونو اداکول ضروري دي په هغه کی دی سست وي اوکولو ته یې بدن مړوي. رسول الله ﷺ بزدلی او بخل جمع کړل، ځکه چې بخل عبارت دی دمال په ورکولو کې شومتیا کول اودجبن مطلب دی په جهاد کې دخپل ځان له ځارولونه ډډه کول او وروسته کیدل.

همدغه راز محمد ﷺ پخپل دعاکې قرضداري اود خلکو غلبه دواړه یوځای کړل، ځکه چې قرضداري دانسان په باطن حمله اوبوج راوړي اودخلکو غلبه عبارت دی په ظاهر بدن باندی استیلا اوبرتري پیداکول او انسان دهغوی محکوم کیدل . ددغو شیانو ترمنځ داښکلې اجتماع اویوځای والی راوستل دهغه صلی الله علیه وسلم په حق کې ځکه عجیبه خبر نده چې هغه ته جوامع الکلم ورکړی شوی دی .

((و روى البخاري ومسلم عن مصعب بن سعد بن أبي وقاص قل : كان سعدٌ يأمرنا بخمسٍ، ويذكرهن عن رسول الله ﷺ ، أنه كان يأمرُبهن : (( اللهم إني أعوذبك من البخل، وأعوذبك من الجبن ، وأعوذبك أن أرد إلى أرذل العمر، وأعوذبك من فتنة الدنيا _ يعنى فتنة الدجال – وأعوذبك من عذاب القبر.)) [1]

له معصب بن سعدبن ابى وقاص نه روايت دى هغه وايي چې سعد ﷺ به موږ ته دپنځوشيانوامر كاو اوموږ ته به يې ويل چې ددى حكم رسول الله ﷺ كړيدى.

هغه پنځه شيان دادي:

اى الله ! زه پناه غواړم پرتاله بخل نه ، پناه غواړم پرتاله بزدلۍ نه، پناه غواړم پرتا لدينه چې زه دبوډاتوب بدترين عمر ته ورسيږم ، پناه غواړم پرتا ددنياله فتنې نه يعنى ددجال له فتنې نه او پناه غواړم پرتا دقبرله عذاب نه.

(( عن زيدبن ارقم ﷺ قال : لاأقول لكم إلاَّ كما كان رسول الله ﷺ يقول: ألـلهم إني أعوذبك من العجز والكسل والجبن والبخل والهرم وعذاب القبر.)) [2]

له زيدبن ارقم ﷺ نه روايت دى هغه وايي : زه تاسوته هغه څه وايم چې رسول الله ﷺ فرمايلى دي : هغه ﷺ به فرمايل :

اى الله! زه پرتا پناه غواړم له ناتواني، سستي، بزدلۍ، بخل، له بوډاتوب اودقبرله عذاب نه.



[1]ـ رواه البخاري في الدعوات: ٧/ ١٥٨ ومسلم في الذكر والدعا : ٤/ ٢٠٨٨

[2]ـ رواه مسلم في الذكر والدعاء : ٤/ ٢٠٨٨

# فصل

## له ځان نه دبزدلۍ دویستلو طریقه

په شه چې بزدلي دبهادرۍ ضد دی، او شجاعت پخپل کار کې دزړه ثبات او استقامت ته اړیل کیږي. زړه دټولو کمالاتو او داوچتو مرتبو دترلاسه کولو لپاره یو بنسټیز څیز دی . دزړه ثبات دعقل او مزاج له سلامتیا نه پرته ممکن نه دی. دزړه کمزورتیا په قوت کې کمي راولي اودغه کمزورۍ دبزدلۍ سبب ګرځي.

اوکه چیرته قوت په زړه کی ډیر زیات والې راولي او د اعتدال له حدنه یې وباسي نودا دبی پروایي سبب ګرځي، بزدلۍ اوبی پروایي دواړه بدڅیزونه دي ، په دی کی مطلبي څیز دزړه اعتدال دی چی له افراط اوتفریط نه پاک وي اوهمدغه اعتدال دبهادرۍ سبب ګرځي.

په بزدلو خلکو باندی واجب دي چی دخپلې بزدلۍ علاج وکړي اودا علاج په هغه صورت کی کیدی شي چی دبزدلۍ علتونه اوسببونه لرې کړې شي ، کله کله د جبن اوبزدلۍ علت جهل او ناپوهي وي خو جهل په تجربې سره لری کیږي. کله کله دبزدلۍ علت ضعف وي اوضعف هله لری کیږي چی هغه کارونه بیا بیا وکړي له کومو کارونو نه چې ویریږي. ترڅوله دغوکارونو سره عادي شي اوویره یې ختمه شي

موږ ډیر هغه کسان لیدلي دي چی په لومړی ځل دمناظرې، امامت، وعظ او یا دپاچا په وړاندې دخبرو لپاره ودریږي، دهغوی ژبه وچیږي پښې اولاسونه یې ریږدي اوزیات وارخطا کیږي داځکه چې داکار هغه لپاره په لومړي ځل پیښ شوې وي اوکله چې داکار بیابیا وکړي نوټوله ویره یې ختمیږي اوبیا په بهادرۍ سره داکارونه ترسره کوي.

په طبعي اخلاقو کې تغیر او بدلون راتلای شي اوپه دی باندی دلیل دادی چې تاسې به دمداریانو واړه زامن لیدلي وي چی غټ او ویروونکي مار په ډیر زړه ورتوب سره نیسي مګریو بهادر سړی نه شي کولې چی مارته لاس قدرې نژدې کړي. ددی وجه داده چی ماشوم له دی کار سره عادي شوې وي او هیڅ قسم ویره ترینه نه

کوي. همداماشوم به ګوري چې دچندخې نه به هم کله کله ویرېږي ځکه چې ورسره عادت به نه وي.

همدغه شان ډېر خطرناک اوداړوونکي ځناور انسان پخپل مینې او انس سره په لږوخت کې ځانته تابع کوي. اوداکار له څه مشق او تمرین نه وروسته ترسره کیږي. همدغه راز لږغوندې خواري نه وروسته موږ د دوه دښمنو حیواناتو ترمنځ هم الفت او مینه پیداکولی شو لکه دلیوه او خرګوش، دپیشو او موږک ، سپي او پیشو ترمنځ دوستي او مینه ، او موږ ددې مثالونه ډېر زیات لیدلي دي. چې پیشو اوسپي دواړه په یو تخته باندې ویده وي همدغه راز موږک په پیشو باندې سور وي اوپیشو ورته څه نه واي، همدغه راز لیوه او خرګوش هم په یوځای کې اوسیږي خویوبل ته هیڅ نه وایي خوداهله چې کله ددواړو ترمنځ اوږده زمانه الفت راشي لکه چې حیوانات له مشق او تمرین نه وروسته له یوبل سره مینه کولی شي او خپل عادتونه پرېږدي نو انسان خوپه طریقه اولی سره دتعلیم اثر ښه قبلوي اوله هرقسم جبن او بزدلۍ اونورو نه وتلی شي.په دې خبره ځان پوه کړئ قوت دنفس او کلک عزم په غلبې اوبرې باندې برې سبب ګرځي. چاله حضرت علي ﷺ نه پوښتنه وکړه چې تاسي غټ غټ بهادران څنګه راپرزوئ ؟ هغه ﷺ وفرمایل : کله چې زه له چاسره مقابلې ته را اوځم نوزه له مخکې نه دانیت کوم چې دابه زه خامخا لاندې کوم او وژنم به یې او هغه هم دځان سره داسنجولی وي چې دی به مارا لاندې کوي او وژني به مې نو زمانفس اودهغه نفس دواړه دهغه په خلاف زمامرسته کوونکي جوړشي ځکه خو ځینو پوهانو دالارښوونه کړې ده چې په جنګ کې جرائت له خپلو زړونو سره جوښت او پیوست ګرځوي ځکه داد برې او کامیابي سبب دی دپخوانیو مشرانو متل دی چې هرچاخپل دښمن وویراو هغه دځان لپاره لښکر تیار کړ که چیرته موږ دپخوانیو خلکو ددغو خبروته دتجربې په نظر وګورو نو موږ ته به دامعلومه شي چې په جنګ دپرمختګ کوونکو په نسبت تیښته کوونکي خلک زیات مړه کیږي.

هغه انسان خپل مقصود او مرام ته رسیدلی شي چې له زړه نه وهمونه او وسوسې لرې کړې اوپه پوره زړه ورتیا سره پرمخ تګ وکړي لکه شاعر ویلي دي من راقب

الـناس مات هما وفاز باللذة الجسور يعنی څوک چې له خلکو وویرید هغه به لـه غم څخه مړشي اوشجاع او زړه ورسړي په لذتونو او خوندو نو برى مندكيږي. لـه جنګ نـه تېښتـه كـول دمـرګ يودسترخوان دی اوپـه همـدې سره ددښمـنانو حوصلې هـم مزبوتيږي. او تښتيدونکي رسواکوي كه څوک غواړي چې بهادر شي نوپه زړه کې چې كومې وسوسې او وهمونـه راځي هغه بايد يواځې اويواځې دميړانې او بهادرۍ لـه لارې لـه زړه نـه وباسي. مثلاً يوسړی غـواړي چی لـه خپـل مال نـه څه خيرات اوصدقه وركـړي نوكـه ايمـان يـې ضـعيف وي نوپـه زړه كې يـې خـړه اوپريشـاني پيداكيږي، شيطان ورتـه فقر مخامخ كوي او ورته وايي چی که تاخپل څه مال خرچ کړ نوپخپله به محتاج شې لكه چی الله تعالى فرمايي:

﴿الشيطنُ يعدكُمُ الفقر ويأمركم بالفحشاء﴾ ( البقرة :٢٦٨ ).

شيطان تاسې ته فقر وړاندې كوي اوتاسوته دبدۍ امركوي.

پس چاچی خپل مال دالله په لاره كې په پټه صدقه كړه نودابهادر اوقوي دی.

لدېنه مراد دانـه دې چې ددی بدن ډيرقوي دی بلکی لدينه دهغه دزړه قوت مراد دی چی دالله تعـالى اوامـر ترسره كـوي اوله نواهيونه يې ډډه كوي يو انسان كاميابي اولـه بدونـه ځـان ژغـورل صرف اوصرف دزړه په قوت سره ترلاسه كولې شي ځكه چی هغه بهادري اوشجاعت ته هڅوي .

امـام ابوبكر طرطوشي پخپـل كتـاب سراج الملوک کې ويلي دي چې دزړه په قوت سره انسـان دالله حكمونـه پـوره اولـه نواهيوڅخه مـنع كيداى شي. د زړه په قوت سره انسـان هرډول فضائل ترلاسـه كولاى شي، همدغه راز دزړه په قوت اواستحكام سره انسـان دخپلو نفسـاتي غوښتـنو اورذائلو څخه ځان خلاصولې شي دزړه په قوت سره مشـكلات اوتكـاليف همدغـه راز دخلكوبى وفايي زغملاى شي دزړه په قوت انسان دراز په سـاتلو قـدرت پيداكـوي اولـه ځان نه شرم او عاردفع كوي دزړه دقوت په وجه انسـان دګـرانو كـارونو پـه طرف مخـه كـوي اوترسره كـولاى يې شي. اونفس تـه دنـا خوخوشـيانو درانـده پيتـی اوچتوي دزړه دقـوت پـه وجـه انسان دخپل عقل او سوچ هره اراده پـوره كولـې شي، همدغـه راز دزړه پـه قـوت سره يـو انسـان پـه ظاهره

دخپـل دښمـن پـه وړاندې خندلې شي اګرکه په زړه کې ورسره ډېر سخت عناد اوکينه ولري. دهمدغه زړه په قوت دخلکو په ناوړه اخلاقو او خويونو صبر کولی شي.

ابودرداء ﷺ وايي چې موږ دځينو خلکو په وړاندې خاندو خو زموږ زړونه پرهغوی لعنت وايي.

اوعلي ﷺ وايي چې موږ لـه ځينوداسې لاسونو سره مصافحه کوو چې دهغوی دلاسونو غوڅول غواړو.

واقعي چې په جائزو حالاتو کې داسي کول ډېر ګران کار دی ځکه چې بزدله سړې بې حوصله کيږي اوډ زړه ټولې خبرې باهر وباسي اوخپل مقصد ته نشي رسيدلې.

طرطوشي وايي چې مېړانه اوشجاعت په درې ډوله دي :

لومړی داچې يوسړی د دوه صفونو ترمنځ ودريږي اودښمن تـه چيلنج ورکړي اودا آواز وکړي چې ايا څوک داسې شته چې له ماسره مقابلې ته ووځي ؟

دويـم داچې سړی ددښمـن لـه لښکر سره دسخت جنګ پـه وخت کې چې خلک له ويرې نه پـه لړزان وي هم شجاع مطمئن اوحاضر دماغ واوسي، خپل زړه قوي وساتي او هوش حواس لـه لاسه ورنکړي. اودعادي حالاتو په شان په خپل واک کې وي .

دريم کـه مجاهدين عقب نشيني وکړي نو ددښمـن پـه وړاندې ودريږي. او وهل ورسره پيـل کړي اوکله دخپلو ملګرو خواته راځي دخپلو ملګرو زړونه قوي او جرئت ورتـه ورکړي، کمزوری ملګري مطمئن کړي اوغيرت په کې راولي ، کوم يو ملګری چې وغورځيږي هغـه پاڅوي اوڅوک چې لـه تللونه پاتې شي هغه په شاکړي اوڅوک چې لـه اس نـه وغورځيږي هغـه اوچت کړي او مرسته ورسره وکړي ترڅو دښمنان نا اميده اوپـه شاشي. ددغـه دريـم شجاعت دستاينې وړده اوپـه ټولـو بهادرانو افضل اوغوره دی

داسلافو وينـاده چـې دتښتيدونکوشاته جنګيدونکي دغافلينوپه منځ کې شاته داستغفار کوونکی پشان دي.

(( عـن ابـی هریرة ﷺ عن رسول الله ﷺ قال: "لیس الشدید بالصُّرعة انما الشدید الذی یملك نفسه عندالغضب".)) [1]

لـه ابی هریره ﷺ نـه روایت دی چی پهلوان هغـه څوک نـه دی چی څوک ځملوي بلکی پهلوان هغه دی چی دغصې په وخت کې پخپل ځان قابو راولي.

عمربن الخطاب ﷺ فرمایلی دي چې دیـو انسـان عزت دهغه تقوی ده، دین دهغه شـان دی، مـروت اوښـه سړي تـوب دهغـه اخلاق دي جـرئت اوجبن غریـزې اوطبعي خویونه دي چی الله تعالی چاته وغواړي ورته ورکوي یې. پس بزدل سړی لـه خپـل مور اوپلار نـه تښتـي. اوجري سړی لـه هغه څخه دفاع کوي چې خپل ځای ته یې درسیدو امکان نـه وي اومـرګ لـه مقروشیانو څخه یو مقررشی دی . اوشهید هغـه دی چی دخپل ځان احتساب وکړي . ( یعنې نیت یې خالص وي )

په دی اړه یو شاعر ډیر ښه ویلي دي

یَفِرُّ جبَانُ القومِ عن ام نفسـه ویحمیْ شُجاع القوم من لایناسب

یعنی ډارن خلک لـه خپـل سوري نـه ډاریکي اوتیښتـه ترې کوي او شجاع وبهادر خلک دهرچا حفاظت او ساتنه کوي اګرکه خپل یې هم نه وي .

لـه همدی کبله عـربو ویـلي دي چی بهـادري اومېړانـه ډال اومحـافظ دی اوبـزدلي دخپل ځان لپاره هلاکت دی اودا ډیر بدترین خصلت دی .

(( روی ابـوداود وابـن حبان عن ابي هریرة رضی الله عنهم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم قال مشرمافی الرجل شح هالع . وجبن خالع .)) [2]

لـه ابو هریـره رضـی الله عـنه نـه روایـت دی چې رسول الله صلی الله عـلیه وسـلم فرمایلي دي پـه سړي کې دادوه خویونـه ډیربددي یو غمجنوونکی بخل ( یعنی هغه

---

[1]– رواه البخاري في الادب : ۷/ ۱۹ ومسلم في البر والصلة : ٤/ ۲۰۱٤.

[2]_ رواه ابو داود فی الجهاد ۳/ ۲٦ وموارد الظمان صفحه ۲۰۷ والحدیث صحیح.

**بخل چې سړی دواجبي حقونو داداء کولونه بی پروا کړي ) اوبل هغه بزدلي اوډارنتوب چې په سړي کې دومره مضبوطه وي اوداسې غلبه يې ورباندی کړی وي چې دډارله وجهې يې زړه ووځي .**

يوپوه شخص ويلي دي چې تاسې پخپل ځان باندې سخيانو اوبهادرانو صحبت لازم وګرځوئ ځکه چې ددوی په الله باندی ډير ښه ګمان وي.

بزدل سړی په حقيقت کې دالله تعالى په قضا او قدر باندی شک اوبدګماني کوي .

کوم سړی چې دايقين لري چې دمرګ نيټه نه وروسته کيږي اونه مخکې کيږي نوهغه په هيڅ حالت کی بزدلي نه کوي نه ډاريږي اونه دجنګ له ميدان نه تښتي.

الله تعالى پخپل کلام کی فرمايلی دي :

﴿فاذا جاء اجلهم لايستأخرون ساعة ولايستقدمون ﴾ ( النحل: ٦١)

کله چې دهغوی دمرګ وخت راشي نو يوساعت نه وروسته کيږي اونه مخکې کيږي اوداهغه څه دي چې رسول الله ﷺ دهغه پوره وضاحت کړيدی.

(( عن ابن عباس ﷺما قال: كنت خلف النبى ﷺ يوماً فقال: (( ياغلام : إني أعلمُكَ كلمات: احفظ الله يحفظْك ، احفظ الله تجده تجاهَك ، إذا سألت فأسألِ الله ، وإذا استعنت فاستعن بالله ، واعلم أنَّ الامَّةَ لو اجتمعت على أن ينفعوكَ بشى، لم ينفعوك إلاَّ بشى ءٍ قدكتبه الله لك ، وإن اجتمعوا على أن يضروك بشى لم يضروك إلاَّ بشى قدكتبه الله عليك ، رفعت الأقلام ، وجفَّت الصحف .)) [1]

له ابن عباس ﷺ نه روايت دی هغه وايي چی زه يوه ورځ دنبی کريم ﷺ شاته روان وم. هغه ﷺ راته وفرمايل : ای هلکه ! زه تاته څوکلمې درښايم . دالله جل جلاله

---

[1]ـ رواه الترمذي في صفة القيامة : ٤/ ٦٦٧ والحديث صحيح .

داحکامو حفاظت او رعایت کوه هغه به ددنیا او آخرت له شرونو څخه ستاحفاظت وکړي دالله جل جلاله داحکامو حفاظت او ساتنه کوه هغه به ته مخامخ ووینې کله چې څه غواړې نوله الله نه یې وغواړه کله چې مرسته غواړې نوله الله نه مرسته وغواړه ، پوه شه چې که ټول امت په دې خبره راغونډ شي چې تاته ګټه ورسوي نو هغوی صرف دومره ګټه در رسولی شي څومره چې الله درته لیکلې دي اوکه هغوی ټول دې لپاره راغونډ شي چې تاته ضرر ورسوي نو هغوی به تاته صرف دومره ضرر ورسوي چې الله تعالی درته لیکلی وي. قلمونه پورته شویدي او صحیفې وچې شویدي.



# فصل

## د رسول الله ﷺ د شجاعت په باره کې

رسول الله ﷺ له ټولو خلکونه زیات شجاع اودقوي اوثابت زړه خاوندو .

رسول الله ﷺ له داسې ډیرو سختو مشهورو واقعاتو سره مخامخ شویدی چې له هغوی نه ډیر غټ غټ بهادران تښتیدلي دي خو محمد ﷺ له خپل ځای نه نه دی خوځیدلې اوکلک ولاړ دی. او هغه صلی الله علیه وسلم داسې پرمخ تلونکي وچې نه یې شا اړولې اونه هم له خپل ځای نه لرې شوې هغه کله هم له جنګ نه تیښته نده کړې هغه له تیښتې نه بالکل منزه و. لکه چې دبخاري او مسلم په یو حدیث شریف کې راغي.

(( عن أنس بن مالك ﷺ قال : كان رسول الله ﷺ أحسن الناس، وكان أجود الناس، وكان أشجع الناس! ولقدفزع أهل المدينة ذات ليلة ، فأنطلق ناس قبل الصوت ، فتلقاهم رسول الله ﷺ ، وقد سبقهم إلى الصوت ، وهو

عـلى فرسٍ لأبي طلحة عُرْيٍ ، وفي عنقه السّيف ، وهويقول: (( لم تُراعوا... لم تُراعوا ..)). [١]

لـه حضرت انس بن مـالک ﷺ نه روايت دى هغه وايي چې رسول الله ﷺ لـه ټولو خلکـونه زيات ښکلې ، لـه ټولو نه زيات سخي او لـه ټولونه زيات بهادر و . يوه شپه دمدينې اوسيدونکو يوه خطرناکه او ويريدوونکي آواز واوريد هغوى چې دهغه آواز په طرف لاړل نوګوري چې محمد ﷺ را روان دى محمد ﷺ لـه ټولـو نـه وړاندې هغه ځاى ته ځان رسولې و. هغه ﷺ دابى طلحه اس باندى لـه زين نه بغير سورشوى و، په غاړه کې توره ځوړنده وه اوخلکوته يې ويل : مه ويريږئ هيڅ خبره نشته ، مه ويريږئ هيڅ خبره نشته.

دبخاري په يوبـل روايت کې داروايت داسې راغلى دى چې خلک وويريدل رسول الله صلى الله عليه وسلم دابو طلحه رضى الله عنه په سست اوشاته پاتې کيدونکي اس باندى کيښناست اس باندى يې خپلې پښې وهلې او زغلاوئې او دپيښې ځاى ته ئې ځان يواځې ورساوه خلکو ورپسې ورروسته خپـل اسونه وزغلول رسول الله صلى الله عليه وسلم سره په لارکې مخ شول هغه ورته وويل مه ويريږئ هيڅ خبره نشته ( درسول الله صلى الله عليه وسلم دسوريدو په برکت ) دابو طلحه رضى الله عنه اس داسې تيز او چابک شو چې په ژوند کې بيا بل اس نه شو ترې مخکې کيداى .

((عـن عـلي بـن أبـي طـالب رضـي الله عـنه ، قـال : كنَّا إذا اشتدالبأس ، واحـمـرت الحـلق ، أتَّقيـنا برسول الله ﷺ ، فما يكون أحدٌ أقرب إلى العدوِّ مـنه!ولقد رأيتني يوم بدر، ونحن نلوذُ بالنبى ﷺ ، وهو أقربنا إلى العدو، وكان من أشدُ الناس يومئذ بأسا.)) [٢]

---

[١]ـ رواه البخاري في الجهاد : ٣/ ٢٢٨ ومسلم في الفضائل : ٤/ ١٨٠٣.

[٢]ـ رواه مسلم في الجهاد : ٣/ ١٤٠١

له علي ابن ابی طالب ﷺ نه روایت دی هغه وايي کله به چې جنګ ډیر سخت ګرم شواوسترګې به سری شوې نو موږ به دنبی کریم ﷺ په څنګ کې پناه اخستله. له موږ نه به بل هیڅوک له نبی کریم ﷺ نه زیات دښمن ته نژدی نه و. موږ دبدر په ورځ هم دنبی کریم ﷺ پناه آخستې وه هغه ﷺ زموږ له ټولو نه دښمن ته زیات نژدی و. په دی ورځ هغه له ټولونه سخت جنګ کړی و. (هغه سړی به ډیر بهادر و چې رسول الله ﷺ ته به زیات نژدې و څکه چې محمد ﷺ به دښمن ته زیات نژدې و.)

((عن أبی اسحاق السبیعي قال : سأل رجل البراء بن عازب رضی الله عنه : أفررتم عن رسول الله ﷺ يوم حنين ؟ قال البراء: لكنَّ رسول الله ﷺ لم يفر. وكانت هوازن يومئذ رماة ، وإنّا لما حملنا عليهم انكفوا ، فأقبلنا على الغنائم، فاستقبلونا بالسهام .ولقد رأيت رسول الله ﷺ على بغلته البيضاء وأبوسفيان بن الحارث آخذٌ بلجامها ، وهويقول : (( أنا النبيُّ لاكذب ، أنا ابنُ عبدالمطلب )). [1]

له ابی اسحاق السبیعي نه روایت دی هغه وايي چې یوسړی له براء بن عازب ﷺ نه پوښتنه وکړه چې ایاتاسې له محمد ﷺ نه دحنین په ورځ تښتیدلې وئ ؟

براء ورته وویل : لیکن رسول الله ﷺ نه وتښتېدلې . په دی ورځ هوازنو ډیرزیات دغشوباران جوړ کړې و. اوکله چې موږ پرهغوی حمله وکړ نو هغوی ماته وخوړه موږ دغنیمت دټولولو لپاره راغلو نو هغوی واپس شول اوپر موږ يې غشي وورول. په دی وخت مارسول الله ﷺ په سپینې قچرې باندی سور ولید. او ابوسفیان بن الحارث دهغه واګې نیولې وې. محمد ﷺ په زوره ویل : ای خلکو! زه نبی یم اوپه دی کی هیڅ دروغ نشته ، زه دعبدالمطلب زوی یم .

---

[1] ـ رواه البخاري في المغازي : ٥/ ٩٩ ومسلم في الجهاد : ٣/ ١٤١.

((عـن العـباس ﷺ أنـه قـال عـن شجاعة رسول الله ﷺ يوم حنين : فلما الـتقى الـمسلمون والكفار، ، ولى الـمسلمون مدبرين، فطفق رسول الله ﷺ يـركضُ بغلـته نحـو الكفـار، وأنـا آخـذٌ بلجامها أكفُّها ، إرادة أن لا تسرع ، وأبوسفيان بن الحارث آخذٌ بركابه ، ثم قال:ياعباس:ناد أصحاب السَّمُرَة.[1] ))

مسلم لـه عباس ﷺ نه روايت كړيدى چي هغه دحنين په ورځ دمحمد ﷺ دشجاعت په بـاره كې وويـل : كله چي مسلمانان اوكافران پخپلو كې سره مخامخ شول اوجنګ ونښت نو مسلمانان په شاشول. مګر رسول الله ﷺ خپل قچر ددښمن په طرف چوكاو اومادهغه واګي كلكى كړې وې ترڅو ډيره منډه ونه هي. او ابوسفيان بن الحارث دهغـه ركاب ( داس سوار دپښو دكيښودوځاى ) نيولې و. بيايي وفرمايل : اى عباسه ! اصحاب السمره ( سمره دهغى ونى نوم دى چې په صلح حديبيه كې اصحاب كرامو دهغى لاندى درسول الله صلى الله عليه وسلم سره په مرګ باندى بيعت كړى و) ته اواز وكړه او را ويي بله.

همدغـه راز محمد ﷺ داحدپـه ورځ كلك ثبات اوبهادري ښكاره كړه. ابى ابن خلف پخپـل اس بـاندى سورشـو او دمحمـد ﷺ دوژلو لپاره يې حمله وكړه. مسلمانان دهغه مخې تـه ودريدل مګر رسول الله ﷺ هغوتـه وفـرمايل : چي لـه مخې نه يې لرى شئ اوپريږدئ چي زماطرف ته راشي. رسول الله ﷺ پرهغه نيزه وويشتله اوسيده دابى بن خلف په څټ باندې ولګيده هغه له اس نه لاندى وغورځيد. ابى بن خلف قريشوته لاړ، هغـه ډير سخت ويريدلې و او ويل يې چي زه محمد ﷺ وژلې يم دهغه قوم ورته وويـل څه خاص تكليف او زخم درته نه دې رسيدلې. هغه وويل : محمد ﷺ ماته ويلي وو چې زه بـه تـاوژنم اوهغـه رښتونى دى. پـه الله قسم كـه چيرته هغـه پـرمالاړې هم ګوزار كړى واى نوزه به يې وژلى وم. ابى بن خلف مكې ته د رارسيدو په وخت كې په

[1] ـ رواه مسلم في الجهاد ۳/ ۱۳۹۸

لاره کې مړشو. درسول الله ﷺ دبهادري اوشجاعت کيسې دومره مشهورې دي چې دبيان محتاج نه دي. که بياهم څوک وربانديې پوهيدل غواړي نودهغه ﷺ سيرت اومغازي کتابونو ته دې رجوع وکړي.

د رسول الله ﷺ شجاعت، دهغه دزړه ثبات دهغه دزړې رواني، دهغه دزړه اطمنان لدينه ښه معلوميږي چې هغه ﷺ داسراء ( معراج ) په شپه دلوی رب په وړاندې ودريد. اوداڅه معمولي خبره نده.



# فــــصل

## د دغه امــت مشهُور قهرمانــان

دمحمد صلى الله عليه وسلم په امت کې دقهرمانانوشمير بې حسابه دی خو اصحا کرام رضوان الله تعالى عليهم اجمعين له رسول الله صلى الله عليه وسلم نه وروسته په ټول امت کې زړه ور او قهرمانان وو لکه چې الله تعالى دهغوی صفت په قرآنکريم کې کړيدی اوفرمايلی يې دي:

﴿مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ﴾ .

[ الفتح : ۲۹]

محمد رسول الله دی اوهغه کسان چی ورسره دي پرکفارو ډېر سخت اوپخپلو منځونو کې ډير مهربان دي.

ددغه امت له مشهورو قهرمانانو څخه څو په لاندې توګه دي:

**(۱) ابوبکر صديق** ﷺ : درسول الله ﷺ لومړی خليفه اوله هغه ﷺ نه وروسته له ټول مخلوق نه غوره او افضل دی.

دهغـه رضی الله عنه په باره کې علي رضی الله عنه ګواهي کړیده چی ابوبکر صدیق ﷺ لـه ټولو خلکونه زیات بهادر اوقهرمان دی.

یوه ورځ علي بن ابی طالب ﷺ دخپل خلافت په زمانه کې پوښتنه وکړه چې په خلکو کې لـه ټولو نه زیات قهرمان اوبهادر څوک دی؟

خلکو ورتـه وویـل ای امیرالمونینه ! همدا تـه لـه ټولوخلکونه بهادر یې. هغـه ﷺ وویـل ماچې لـه هرچاسره مقابله کړیده هغه مې لاندې کړی اوماته می ورته ورکړیده .لیکن په ټولوخلکو کی زیات بهادر ابوبکرصدیق رضی الله عنه دی. دبدر دجنګ په ورځ موږ درسول الله ﷺ لپاره یوخېړی جوړ کړ او ومو ویل چې څوک به لـه رسول الله ﷺ سره ودریږي چی مشرکان ورته ځان ونه رسوي.

په الله قسم چې په موږ کې لـه ابوبکرصدیق رضی الله عنه نه علاوه یوکس هم هغه خېړې تـه ورنغې. هغـه درسول الله ﷺ دساتنې او حفاظت په خاطر توره په لاس دهغه په څنګ کی کلک ولاړ و .

یـوه ورځ پـه مکـه کې مشـرکان لـه رسـول الله ﷺ نـه راتـاو شـول چـایو خـوا راکـاږل اوچابل خوا تـه چاپړ مخې راغورځاو او ورته یې ویل : همداتا له ډیرو خدایانو نه یو خدای جوړکړیدی ؟

پـه الله قسـم چـې لـه مـوږ نـه یـوه هـم هغـوی تـه دنـژدی کېـدو زړه ونکـړ مګـر ابوبکرصدیق ﷺ لاړ اودمشرکانو په وهلویې لاس پورې کړ. یو به یې وهلو اوبل ته به یې ټیله ورکوله یوبه یې یوخواته راکاږه اوبل به یې بلې خواته. او ورته ویل به یې : هلاکت دی وي تاسولپاره ایاهغه سړی وژنی چې وایي الله یودی.

بیاعلي ﷺ وویـل : تاسویه الله قسم درکوم چې ایا دفرعون په آل کې هغـه سړی غوره دی چی ایمان یې راوړې و اوکه ابوبکرصدیق ﷺ ؟

خلـک غـلي شـول، عـلي ﷺ وویـل ایاتاسـې ځـواب نـه راکـوئ؟ پـه الله قسـم چـې دابوبکرصدیق ﷺ دژونـد یوساعت وخت دفرعون په قـوم کې لـه ایمان راوړونکي

کس نه دټولې ځمکې لـه ډکیدونـه افضـل دی. هغـه سړي خوخپـل ایمـان پټ کړې و لېکن ابوبکرصدیق خپل ایمان ښکاره اعلان کړه.

بیشکه حضرت ابوبکرصدیق ﷛ لـه محمد ﷺ نه وروسته لـه ټولو خلکونه زیات بهـادر اوقهرمان و. لـه ټولـو خـلکونه دهغـه زړه ډېـر کـلک و حوصله یـې مـزبوته. او حواس یې پخپـل ځـای وو، دهغـه په ثبات قلبي او بهادرۍ باندی دادلیل کافی دی چې دبدر په ورځ یې رسول الله ته وویل یارسول الله ، درب وعده تاته کافي ده هغه بـه ارو مـرو تاسره کـړی وعـده پـوره کـوي. دهغـه ﷛ دبهادري ثبوت غزوه احد ، غزوه خندق اوصلح حدیبیه کې ترسترګوکیږي.

دابوبکر صدیق ﷛ دبهـادري او استقامت برکت و چې دستری پیښی غټ مصیبت چې هغـه درسول الله صلی الله عـلیه وسلم مـرګ په وخت یې خپل ثبات او استقامت څرګند کړ او درسول الله ﷺ لـه وفات نه وروسته ټولو مشکلو اوسختو حالا تویاندې قـابو راوست. کلـه چې رسول الله ﷺ دوفـات خبرخپور شـو نـو اصحابو دغـم دلاسه خپلې حوصلې لـه لاسه ورکړې ، د ډیرو خلکو عقل اوحواس ځواب ورکړ اوپښې یې وریږدیدلې، مګرابوبکر صدیق ﷛ په دغـو ټولـو حـالاتو کی ثـابت پاتې شو نه بې حوصلې شـو اونـه هـم وارخطا ، بلکې په ډېره ښه توګه سره یې ددغو سختو حالاتو مقابلـه وکـړه او هـرڅه یـې سنبال کـړل. کـه چیـرته پـه دی ورځ دابوبکرصدیق ﷛ زړه دټول امت لـه زړونو سره تـلل شـوې وای نودابوبکر صدیق ﷛ زړه به ترینه مزبوت ختلې و.

کله چې ابوبکرصدیق ﷛ تـه دخلافت درونـد بـار وسپارل شو نـو هغـه لـه ټولو نه وړاندې دمرتدینوپه خلاف جهاد وکړ آن تردی چی هغوی بیرته داسلام دین ته غاړه کېښـوده همدغـه راز لـه زکـات نـه مـنکرو خلکوسره یـې جنـګ وکـړ اوهغـوی تـه یـې شکست ورکـړ کـه دهغـه ددغـو ورځـو شجاعت او میړانه دټولی نړۍ په بزدلو او ډارنو خـلکو ویشـل شـوی وای نو ټول بـه یـې زړه ور کـړی وای . پـه خدای قسم چې داهغه شجاعت دی چې دهغـه پـه وړانـدی غټ غټ بهـادران هیڅ دي او هغه همت دی چې داوچتو همتونو خاوندان ورته لاس په سلام ولاړ دي . لدینه دابوبکرصدیق رضي الله

عـنه دحوصـلې اوبهـادرۍ ثبوت ترلاسـه کيـږي چـې هغـه څومـره زړه ور اوبهـادر شخصيت و.

(۲) **حضرت عمر** ﷜ :دعمر ﷜ شجاعت اوبهادري تردی حده رسېدلې و چې شيطان به له هغه لارې نه تښتيدو په کوم لاره به چې حضرت عمر ﷜ روان و.

(( روى البخاري ومسلم عن سعدبن أبي وقاص رضي الله عنه ، أنَّ رسول الله ﷺ قـال لعمـر: ((يـا ابن الخطاب : والذي نفسي بيده ما لقيك الشيطان سالكاً فجًا إلاَّ سلك فجًا غير فجَّكَ))[1].

بخاري او مسلم لـه سعدبن ابی وقاص ﷜ نه روايت کړيدی چی رسول الله ﷺ عمر ﷜ ته وفرمايل : ای دخطاب زويه ! ، په هغه لوی ذات می قسم چې زما روح دهغه په اختيار کې دی چیکله شيطان په لاره کی لـه تاسره مخامخ کيږي نودی هغه لاره پريږدي په کومه چې ته روان يې اوپه بله لاره روانيږي.

کله چې عمر ﷜ اسلام راوړ نوالله تعالی په هغه سره اسلام او مسلمانانو ته غلبه او عزت ورکړه .

عبدالله بن مسعودرضی الله عنه وايی چی موږ په کعبه کې دلمونځ اداکولو قدرت نه درلود. کله چی عمر ﷜ اسلام راوړ نو لـه قريشو سره يې قتال اوجنګ وکړ هغه پخپله يې هم په کعبه کې لمونځ ولوست او موږ هم ورسره يوځای لمونځ ولوست.

بخـاري دابـن مسـعود ﷜ لـه خـولی نقـل کـوي چـې کلـه عمـر ﷜ اسلام راوړ نومسلمانان عزت مندل شول. دعمر﷜ دشجاعت مثالونه نور هم ډير دي.

(۳) **حضرت علي** ﷜ :

---

[1]ــ رواه البخاري في مناقب الصحابة : ٤/ ١٩٩ ومسلم في فضائل الصحابة : ٤/ ١٨٦٤ ؟

علی کرمه الله وجهه دزمري پشان زړه ور ، د وريدونکي باران پشان و. دمشرکانو دلښکرو تيت پرک کوونکی و اودشجاعت دډول داسې کارنامو ښکارندوی و چی تعجب کوونکي ورته ګوته په خوله پاتې کيدل .

حضرت علي ﷺ له تبوک نه علاوه په نورو ټولو غزاګانو کې له محمد ﷺ سره ملګرتيا کړيده. دتبوک په غزوه کې ځکه نه و حاضر شوې چې محمد ﷺ هغه په مدينه کې خپل نائب او خليفه ټاکلې و. لکه چې په حديث کی راځي .

(( روی مسلم أنَّ رسول الله ﷺ ان رسول الله ﷺ استخلف عليا يوم تبوك على المدينة، وقال له: " أَنْتَ مِنِّي ، بمنزلة هارون من موسى الا انه لانبی بعدی". [1] ))

امام مسلم روايت کړيدي چې رسول الله ﷺ دتبوک په ورځ علی ﷺ په مدينه کې خپل خليفه وټاکه، او ورته يې وويل چې ته زما له پاره داسی يې لکه هارون دموسی عليه السلام لپاره و. مګر دومره خبره ده چې له مانه وروسته بل نبي نشته.

(( وروى البخاري عن سهل بن سعد، ومسلمٌ عن سلمة بن الاكوع ان النبى ﷺ قال : يوم خيبر" لاعطين الراية رجلاً يحب الله ورسوله ويحبُّهُ الله ورسوله. ليس بفرَّارٍ، ويفتح الله على يديه. ثم دعا بِعَلِيٍّ. وهو أرمد فتقل فى عينه فبرأ واعطاهُ الراية ، ففتح الله على يديه." [2] )).

امام بخاري له سهل بن سعد او مسلم له سلمه بن الاکوع نه روايت کوي چی نبی کريم ﷺ دخيبر دغزا په ورځ وويل چی زه بيرغ هغه شخص ته ورکوم چې له الله اورسول سره مينه لري او الله اودهغه رسول هم له هغه سره مينه لري. هغه له ميدان تښتيدونکې نه دی الله پاک به دهغه په لاس فتح موږ ته په نصيب کړي .

---

[1]ـ رواه مسلم في فضائل الصحابة : ٤/ ١٨٧٠

[2]ـ رواه البخاري في الجهاد : ٤/ ٥ ومسلم في فضائل الصحابة : ٤/ ١٨٧٢

بيايي علي ﷺ راوغوښت حال داچې دهغه سترګي خوږيدلې، رسول الله ﷺ دهغه په سترګو خپلې لاړې سولولې نوښې شوې. بيايي ورته بيرغ ورکړ اوالله تعالی ورته بری ورکړه.ابورافع ﷺ درسول الله صلی الله عليه وسلم غلام دخيبر په ورځ دحضرت علي رضی الله عنه دشجاعت په هکله فرمايي چی کله محمد ﷺ دخيبرپه غزا کې بيرغ حضرت علي ﷺ ته ورکړ نوموږ هم له هغه سره روان شوو. کله چی ددښمن کلاته نژدی شوو نو له هغې نه يهودان راووتل. علی ﷺ له هغوی سره سخته مقابله وکړه اوله يهودانو نه يوسړی په حضرت علي رضی الله عنه باندی ګوذار وکړ . په دی وخت کې د علي ﷺ له لاس نه ډال وغورځيد او مات شو نو هغه ﷺ فوراً د کلا دروازه راواخستله او دخپل ځان لپاره يې له هغه نه دډال کار واخست ترڅو پورې چې جنګ روان و دکلا دا دروازه دعلي رضی الله عنه په لاس کې وه کله چې الله تعالی مسلمانانو ته بری ورکړ نو علي ﷺ هغه په زمکه وغورځوله.

لدينه پس موږ اووو کسانو ددغې دروازې په بل مخ اړول وغوښتل خو پرې کامياب نشو.مصعب الزبير روايت کوي چې علي ﷺ په جنګ کې ډير هوښيار، تيز او چالاک و. خپل مقابل سړی به يې په سخته غلطی کی اچاو دحملې کولو په وخت کې به يې هر لورې خيال اوفکر کاو .همداوجه وه چې په هغه ﷺ باندې هيڅا قابو نشوراوستلې. دعلي ﷺ په زغره به يواځې دهغه سينه پټه وه او شابه يې لوڅه وه. چاترينه پوښتنه وکړه اياتاسې دشاطرف دحملې نه نه ويريږئ هغه ﷺ ورته وويل : هله چې دښمن زما په شاباندې دحملې کولو موقع ومومي. نوخدای جل جلاله دی زمادښمن هم نه پاتی کوي چې ماپريږدي او څه راته ونه وايي .

## (۴)حضرت طلحه بن عبيدالله ﷺ :

طلحه بن عبيدالله ﷺ دهغو لسو اصحابو له جملې څخه دی چی الله تعالی ورته په ژوند کې دجنت زيرې ورکړيدی، نوموړی ددغه امت لوی قهرمان اوبهادر اصحابي تيرشويدی. او ددی امت دنوميالو اس سوارانو اوپياده جنګيدونکو څخه و.

دده دلوړ او اوچت شجاعت یوه بیلګه داحدپه ورځ درسول الله ﷺ دفاع ده چې پکی حضرت طلحه ته دوه اویا ټپونه رسیدلي وو.

عائشه ﷞ فرمایي چې کله ابوبکرصدیق ﷛ داحد دجنګ ورځ یادوله نو فرمایل به یې چې دغه ورځ خوټوله د طلحه په نوم ده.

زه چې کله له ټولونه وړاندې درسول الله ﷺ په طرف لاړم نو ګورم چې یوسړی درسول الله سره یوځای اوړه په اوږه له کفارو سره په جنګ کې مصروف دی. ما وویل دابه طلحه بن عبیدالله وي زه چې هغه ته نژدی شوم نوطلحه بن عبیدالله و، اودهغه په بدن کې له اویاونه زیات د تورو، غشو او نیزو ټپونه جوړشوي وو. لاس یې پرې کړی شوې و اوموږ دهغه درملنه وکړه .

رسول الله ﷺ به چې کله له لوړځای نه داحدپه ورځ دمشرکینو په طرف کتل نو طلحه ﷛ به ورته ویل یارسول الله زما مور اوپلار دی له تانه قربان شي تاسې پورته مه خیژئ هسې نه چې پرتاسو غشې ولګیږي زما ځټ ستاسې دځټ لپاره د ډال په ځای حاضر دی .

قیس بن ابی حازم وایي چې موږ دطلحه ﷛ لاس ولید چې شل شوې و ځکه چې په دی لاس سره هغه درسول الله ﷺ داحدپه ورځ دفاع کړې وه.

**(۵) زبیر بن عوام ﷛ :**

زبیر رضی الله عنه دهغو اصحابو له جملې څخه دی چې په ژوندون کې ورته دجنت زېرې ورکول شویدې یعنی له عشره مبشره و څخه دی. دلوړی مرتبې خاوند دازمری به دجنګ په لومړي صف کې جنګیدو، داپه مسلمانانو کې لومړی شخص دی چې داسلام په خاطر یې توره اوچته کړه.

نوموړې داسلام په لومړیو ورځوکې په مکه مکرمه کې اوسیده. یوه ورځ دا افواه خوره شوه چې رسول الله ﷺ اختطاف شویدې زبیربن العوام چې داخبره واورېده نو توره یې واخسته او دهغوی په لټې پسې ووت، رسول الله ﷺ سره یې دمکې په پورتنۍ حصه کې ملاقات وشو، هغه ﷺ ترینه پوښتنه وکړه ای زبیره چیرته روان

يې ؟ هغه ﷺ وويل: زه خبر شوم چې تاسې چا تېښتولي يې ، زه په دی خاطر ووتلم چې هغوی پيدا کړم اوجنګ ورسره وکړم.

رسول الله صلی الله عليه وسلم دهغه ﷺ لپاره دعاوکړه.

زبير ﷺ ډير زړه ور اوبهادر مجاهد وو اودجنګ په وخت کې به له ټولونه مخکې ... ن و.

(( روی البخاري عن الزبير ﷺ قال: لقيتُ يوم بدر عبيدة بن سعيدبن العاص، وهومدجَّجٌ لايرى منه اِلاَّ عيناهُ، وكان يكني اباذات الكرش، فقال: انا ابوذات الكرش !

قال الزبير: فحملت عليه بالعنزة ، فطعنتهُ في عينه فما ت. [1] ))

امام بخاري لـه زبير ﷺ نه روايت کوي چې هغه ﷺ وويل : زه دبدرپه ورځ عبيده بن سعيد بن العاص سره مخامخ شوم هغه خپل مخ پټ کړی وله سترګونه پرته نور مخ يې نه ښکاره کېده دهغه کنيت اباذات الکرش و. هغه وويل زه ابو ذات الکرش يم. په دی وخت ماپرهغه حمله وکړه په سترګو کې مې په نيزې سره وواهه اومړشو.

(( وروى البخاري عن عروة بن الزبير ﷺ ان الزبير اشترك فى معركةِ اليرموك ، فقال له اصحاب النبى ﷺ الاتشُدُّ فَنَشُدُّمعك! فحمل الزبير عليهم ،فضربوه ضربتين على عاتقه ، بينهما ضربةٌ ضُربها يوم بدر!قال عروة : فكنت ادخل اصابعي فى تلك الضربات العب بها وانا صغيرٌ. [2] ))

بخاري لـه عروه بن الزبير ﷺ نه روايت کوي چې زبير ﷺ ديرموک په غزوه کې ګډون کړی و. هغه رضی الله عنه ته دنبی کريم ﷺ اصحابو وويل:

---

[1]ـ اخرجه البخاري في المغازي ٥/ ١٤

[2]ـ اخرجه البخاري في فضائل الصحابة : ٤/ ٢١١

ته حمله نه کوې چې مور هم له تاسره یوځای حمله وکړو؟

زبیر ﷺ په دښمن باندې حمله وکړه ، هغوی په زبیر ﷺ باندی دتورې دوه ګذارونه وکړل اوهغه یې په ولې کی زخمي کړ. ددغو دواړو زخمونو ترمنځ یوبل زخم وچې دبدر په ورځ ورته لګیدلې و. هغه زخم دومره ژور و چې مابه پکې خپلې ګوتې منډلې اولوبې به مې ورسره کولې زه په هغه وخت ماشوم وم.

عروه ﷺ وایي چې زبیر ﷺ ډیرلوړ اودنګ و کله به چې په اس سوریدو نو پښې به یې پرزمکه لګیدلې . دسرو ېښتان یې ګن اوزیات وو. مابه دوړوکتوب په عمر کې دهغه ویښتان په لاس نیول چې دهغه په ولوباندی به پراته وو.

دجمل په جنګ کې مجرم عمروبن جرموز هغه وواژه او توره یي علي ﷺ ته راوړ.
علي ﷺ چې دهغه ﷺ توره ولید نو ویی ویل : دغه تورې تر ډیر وخت پورې درسول الله ﷺ غمونه لرې کړي وو. ابن جرموز یې وراته او ورته یې وویل تاولې زبیر ﷺ واژه ؟!!

## (۶) سعد بن ابی وقاص ﷺ :

نوموړې دهغو لسو اصحابوله ډلې څخه دی چې په ژوندون کې ورته دجنت زېرې ورکول شوی دی، سعدبن ابی وقاص ﷺ داسلام لوی سپاهي تیرشویدی اودالومړی اصحابي دی چې دالله په لاره کې یې غشی استعمال کړ.

داحد په ورځ یې له ټولونه زیاته قهرمانی ښودلې تردی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته دشاباسی په وخت کې وویل : ای سعده زمامور اوپلار درنه قربان شه دغشویاران جوړ کړه.

علي بن ابی طالب ﷺ وایي چې ماله رسول الله ﷺ نه نه دي آوریدلي چې چاته دخپل مور اوپلار نومونه دواړه یوځای جمع کړې وي. ما واوریدل چې رسول الله ﷺ سعد ته داحدپه ورځ ویل : ای سعده ! زما مور اوپلار درنه قربان شه غشي وله .
همدغه راز محمد ﷺ هغه ﷺ لپاره دعاوکړه او ویې ویل ای الله ! ددی غشې په

صحیح نښه باندې ولګوې او دعاګانې یې پخپل دربار کې قبولې کړې. نوپه سعد بن ابي وقاص باندې درسول الله ﷺ دعاولګیده اوهمداسې وشو.

سعدبن ابي وقاص له هغو بهادرانو څخه و چې په غزواتو کې یی درسول الله ﷺ حفاظت کاو.

حضرت علي ﷺ پخپل خلافت کې دفارس دجنګ امیر مقرر کړ، نوموړي دقادسي دجنګ قهرمان و اودفارس ډیر ښارونه یې فتح کړل،چې پکې دفارس پایتخت هم شامل ده نوموړي دبصرې اوکوفې ښارونه هم آباد کړل.

زهري وايي چې کله سعدمرګ ته نژدی شو نو خپل هغه زړه وړینه چپنه یې وغوښتله چې دبدر په جنګ کې یې دغنیمت په توګه نیولې و. بیایې وصیت وکړ چې کله زه مړشم نو دازمالپاره کفن جوړکړئ زه په دی کې دبدر په ورځ دمشرکانو سره جنګیدلی یم اودامادهم لباره ساتلې وه.

**( ۷) ابوعبیده بن الجراح رضی الله عنه.**

دابوعبیده رضی الله عنه اصلي نوم عامربن عبدالله بن الجراح دی، نوموړې هم دهغولسو اصحابو له جملې څخه دی چې په دنیاکې ورته دجنت زیرې ورکول شویدی، اودادغه امت امین و، په هرجنګ کې له رسول الله ﷺ سره شریک شویدی.

داحد په ورځ داووسپنیزی ټوپی هغه دوه کړی یې په خپلو غاښونو سره رااویستلې چې درسول الله ﷺ په مبارک مخ کې ننوتې وې، ددغو کړیو دویستلو په وخت دابوعبیده مخکیني دوه غاښونه مات شوې وو. اوپه دی سره دهغه خوله ډیره ښکلې شوه اوښه ښکاره کېده، آن چې خلکو به ویل چې موږ دابوعبیده دخولې پشان بله ښکلې خوله چیرته نه دی لیدلې. داهم ویل کیدل چې دقریشو هوښیاران ابوبکرصدیق او ابوعبیده دي.

عمر ﷺ هغه دشام دنیولو لپاره امیر مقرر کړ اوکله چې شام فتح شو نو دهغه ځای والي یې وټاکه. دیرموک په جنګ کې دمسلمانانو قائدو.نوموړی په شام کې دعمراس طاعون په مرض کی وفات شو.

## (۸) حضرت حمزه بن عبدالمطلب رضي الله عنه :

حضرت حمزه رضي الله عنه دالله اودهغه درسول زمری و. نوموړی مشهور بهادر اومعروف قهرمان و. دبدر دورځې په ازمووینه کې بری مندشو ځکه خپله قهرماني يې وښودله او ډير مشركان يې ووژل

کله چې اميه بن خلف دبدر په ورځ دمسلمانانو په لاس قيدی شو نو له عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه نه يې پوښتنه وکړه چې په تاسو کې هغه سړی څوک و چې دهغه په سينه باندې دشترمرغ ښکی وي ؟ هغه ورته وويل هغه حمزه رضي الله عنه و. اميه وويل دغه سړي خو موږ ډير زيات خراب تراب کړواحد په معرکه کې يې هم خورا زياته ميړانه څرګنده کړه او دمشرکانو په خلاف په پوره شجاعت سره وجنګيد.

دابی سفيان ښځې هنده بنت عتبه لـه خپل مری وحشي سره په دی خبره اتفاق کړې و چې که تا په احد کې حمزه پخپل نيزه وواژه نوزه به تا آزاد کړم.

وحشي چې حمزه رضي الله عنه لـه کفارو سره دجنګ په حالت کې وليدنوپخپله نيزې سره يې په حضرت حمزه رضي الله عنه باندی کلک ګوزار وکړ اوهغه يې وواژه. بيايي ګيډه څيرې کړه اوځيګر يې دهندی په وړاندې پيش کړ هغی دحمزه رضي الله عنه ځيګر په خوله چی وجوو لـه اوبيرته يې له خولې نه و غورځولو.

کله چې رسول الله ﷺ دحمزه رضي الله عنه مړی وليد چی مشرکانو مثله کړيدی نوډيرزيات غمګين شو اوله سترګونه يې اوښکې لاړې اوډير زيات پريشان شو.

## (۹) جعفربن ابی طالب رضي الله عنه :

نوموړې له خپل ورور علي رضی‌الله عنه نه لس کاله مشرو اودموتی په غزوه کې په شهادت رسېدلې دی. د زيد بن حارثه رضي الله عنه لـه شهادت نـه وروسته بيرغ حضرت جعفربن ابی طالب آخستی و اولـه روميانو سره جنګيدو بېرغ يې په ښي لاس کې نيولی و کله چې دهغه ښي لاس پرې کړی شو نوپه ګڅ لاس باندې يې ونيو کله يې چې ګڅ لاس هم غوڅ کړی شو نو بيرغ يې له سينې سره ونيو او غورځيدو ته يې پری

نښود. هغه له کفارو سره دمخامخ جنګ په حالت کی شهید شو. دهغه دبدن په مخکنی خوا کې له اویاونه زیات دتورو، غشو اونیزو ټپونه جوړشوي وو.

**(۱۰) معاذ بن عمرو بن الجموع ﷺ :**

نوموړې ډیر قوي او زبردست قهرمان و.

داهغه نومیالی مجاهد دی چی دبدر په ورځ یې ابوجهل وواژه. هغه ﷺ وایي چې دبدر په ورځ ماابوجهل خپل هدف ګرځولی و چې څنګه مې ولید نو په توره باندې مې یرغل ورباندی وکړ او پښه مې ورته له نیمې پنډۍ نه غوڅه کړه دهغه زوی عکرمه زماپر اوږو باندې دتورو ګوزار وکړه اوزمالاس یې غوڅ کړ زمادغه لاس زماله ډډی سره په څرمن کې ځوړند پاتی شو. مادهغه پروا ونکړ اوله مشرکانو سره مې ټوله ورځ جهاد جاري وساته. کله چې هغه زه ډیر تنګ کړم نو پښه مې ورباندې کېښوده او په یوی جټکې سره مې وشلولو او پرزمکه مې وغورځولو.

**(۱۱) براء بن مالک ﷺ :**

نوموړې دانس بن مالک ﷺ ورور دی. داد اسلام له ځانګړو قهرمانانو څخه یو دی چی خلک دهغوی دبهادرۍ اوشجاعت مثالونه پیش کوي. په یواځې ځان سل کسه کافران یې دتورې په ګوذار په جنګ کی وژلي دي. داشمیره له هغو کسانو نه علاوه ده چی له بل چاسره یې په ګډه وژلي دي. دیمامې په جنګ کې مسلمانانو دمیسلمه لښکر په باغ کې دننه محاصره کړل، ددې باغ دیوالونه ډیر زیات اوچت وو اومسلمانانو نشو کولې چی له دیوالونو نه واوړي براءبن مالک مسلمانانو ته وویل چې تاسې ماپخپلو نیزو باندې دیوال ته اوچت کړئ اودننه په باغ کی می وغورځوئ. هغوی همداسې وکړ. براء بن مالک په باغ کې ددننه ددیوال ترشا له مدافعینو سره سخت جنګ وکړ او مسلمانانوته یې دباغ دروازه خلاصه کړه. مسلمانان چې ورننوتل هغه ډیر کافران وژلي وو.هغه ته یې چی وکتل نو په بدن کې یې دنیزو او غشو له اتیاونه زیات ټپونه جوړ شوي وو. بیاله دارو اودرمل نه وروسته بیرته ښه شو. براء دفارس دښارونو په فتوحاتو کې هم ګډون درلود .

دتستر په سخت جنګ کې مسلمانانو براء بن مالک ته وويل چې مسلمانانو ته له الله نه دنصرت اوفتحې دعا وغواړي. ځکه چې براء مجاب الدعوات و.

براء رضی الله عنه دعاوکړه چې ای الله مسلمانانو ته بری ورکړئ اوماته ستا په لاره کې دشهادت مرګ په نصيب کړئ. الله تعالی مسلمانانو ته بری ورکړ اوهغه پخپله دشهادت اوچته مرتبه ترلاسه کړه.

**(۱۲) سماک بن خرشة ﷛ :**

نوموړې ابودجانه په نوم مشهور اوډیر لوی قهرمان و.

داحد په ورځ ده لوی بهادري او قهرماني ښودلې وه. داحد په ورځ نبی کریم ﷺ اعلان وکړ چې څوک ددغې تورې حق اداکولې شي ؟ ډیر کسان دهغې د آخستلو لپاره ودریدل مګر محمد ﷺ هغوی ته ورنکړه. ابودجانه ودرید او پوښتنه ئې وکړه چې ددی حق څه دی؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : ددی حق دادی چې په دی باندې دومره مشرکان ووژلی شي چې داتوره کږه شي. هغه وویل : یارسول الله ! زه ددی حق اداکولې شم ماته یې راکړئ. رسول الله ﷺ توره هغه ته ورکړه .

هغه ﷛ ډیر شجاع او زړه ور و اودجنګ په وخت کې به دښمن ته دوکه ورکوله. زبیر بن عوام ﷛ فرمایي چې ماپه خپل زړه کې داخبره ګرځوله چې رسول الله ﷺ ماته توره رانکړه او اباد‌جانه ته یې ورکړه.

ماوویل په خدای قسم زه به وګورم چې ابودجانه څه کوي؟

زه هغه پسې شوم هغه خپل سورپټکی راواخست اوله خپل سرنه یې تاوکړ. کله چې انصارو هغه ولیدنو ویی ویل چې ابودجانه دمرګ پټی تړلې ده. هغه په مشرکینو باندې یې بریدوکړ اوهر کافر به یې چی مخې ته راته هغه به یې واژه .

دیمامې په جنګ کې چی دمسلیمه الکذاب پرضد وه ابودجانه خپل ځان باغ ته دننه ورګوذار کړ او ورتوپ یې کړ . اودپښو هډوکي یې مات شو. مګرهغه ﷛ په ماته پښه له کفارو سره خپل جنګ ترهغه جاري وساته ترڅو پخپله په شهادت ورسید.

## (۱۳) ابوطلحه الانصاري رضي الله عنه :

دنوموړي رضي الله عنه اصلي نوم زيدبن سهل الانصاري رضي الله عنه دی:هغه رضی الله عنه دمحمد ﷺ په وړاندې په ګونډو کیناست خپله وسله یې مخې ته کیښوده او خپله چانته به یې ورته پرانستله اومحمد ﷺ ته به یې ویل : زما مخ ستادمخ دحفاظت اوزما ځان ستادځان لپاره قربان دی.

نوموړی دحنین په ورځ زبردست قهرمانې وښوده،له مشرکانونه یې شل تنه مړه کړل سامان یې ترینه غنیمت کړ.

## (۱۴) خالدبن الولید رضي الله عنه:

داد الله تعالی لوڅه توره اودجاهلیت او اسلام په زمانه کې دقهرمانانو قهرمان و. په ډیرو زیاتو جنګونو او واقعاتو کې شریک شوېدی. کله یې چی اسلام راوړ نومحمد ﷺ داسونو واګي ورته ورکړی اوجهاد ته یې وړاندې کړ. بیاابوبکر صدیق رضي الله عنه له مرتدینو سره دجنګ لپاره دلښکر مشر وټاکه. دفارس اوروم په جګړو کې یې دقهرمانی زیات اثار موجود دي.

قیس بن ابی حازم رضي الله عنه وایي چې خالد رضي الله عنه ته چاویل: له عجمیانو ځان ساته هسې نه چیرته زهر درنکړي .

چاورته زهر راوړ او مخې ته یې ورته کیښودل،هغه وویل داڅه دي ؟ خلکو ورته وویل دازهر دي خالد رضي الله عنه لومړی بسم الله الـذی لایضر مع اسمه شی فی الارض ولافی السماء وهوالسمیع العلیم. ولوست اودغه زهر یې وڅکل مګرهیڅ ضرر یې ورته ونه رساو!!

کله چې مرګ ته نژدی شو نو هغه رضي الله عنه وویل : زه له سلونه زیاتو جنګونو کې شریک شوی یم خوافسوس چې زه پخپل بستره کې داوښ پشان مړکېږم . نو الله جل جلا له دی بزدلو او ډارنو خلکو ته خوب نه وروليږ. هغه رضي الله عنه پخپل بستره کې دشپیته کالو په عمر کې له دنیانه رحلت وکړ دهغه په ټول بدن باندې د تورو ، نیزو اود غشو

دزخم داغونه ووپه بدن کې يې يوځای هم بې له زخم نه و پاتې اوپرهغه رضي الله عنه دشهيدانو اثار له ورايه ښکاريدل.

### (۱۵) سلمه بن الاكوع رضي الله عنه :

نوموړی داسلام اود مسلمانانو لوی قهرمان و اودغشو دويشتلو ماهرو.ورانديې دهغه رضي الله عنه دبهادري او شجاعت په اړه هغه معلومات تيرشويدي چې کله يې له هغو مشرکانو سره مقابله وکړه چې درسول الله ﷺ په څرځای اوهلته دڅريدونکو اوښانو او آسونوباندې ډاکه آچولې ده اوټول يې له ځان سره وړي وو. سلمه بن الاكوع له هغه مشرکانو سره په يوائې ځان جنګ وکړ اوټول اوښان او آسونه يې له هغوی نه خلاص کړل. اودا واقعه ذی قرد په غزوه کې مخی ته راغلې وه رسول الله ﷺ دهغه ستاينه او صفت وکړ او ويې فرمايل چې نن ورځ زموږ په ټولو پياده جنګيالو کې سلمه بن الاكوع زيات غوره دی.

### (۱۶) هشام بن العاص رضي الله عنه :

نوموړی دعمروبن العاص ورور او ډير ستر قهرمان و.

عمروبن العاص رضي الله عنه وايي چې زه اورور مې دواړه ديرموک په جنګ کې شريک شوو. موږ ټوله شپه الله ته دعاوکړه چې موږ ته دشهادت مرګ په نصيب کړي، سباته چې جنګ شروع شو نو الله تعالی هغه شهيد کړ اوزه محروم پاتی شوم.

روايت دی چی هشام بن العاص رضی‌الله عنه ديرموک په ورځ په رومي لښکر باندې يرغل وکړ اوګڼ روميان يې ووژل. په اخيرکې پخپله هم شهيد او داسونو پښو لاندې ميده ميده شو، دهغه ورور عمروبن العاص دهغه غوښې راغونډې اوپه خاورو کې يې ښخې کړې.کله چی عمر رضي الله عنه دهغه دشهادت خبرورسيد نو هغه رضي الله عنه وويل:

الله تعالی دیورباندې رحم وکړي داسلام دسرلوړی لپاره لوی مرستندوی و.

### (۱۷) عکاشه بن محصن رضی الله عنه :

نوموړی بهادر او زړه ور اصحابي و. دغابه په غزوه کې عمروبن آبار اودهغه پلار يې وليدل چې دواړه په يواوښ باندې ناست دي هغه دواړه په يوغشي سره وويشتل او خيني هغه اوښان يې ترينه ونيول چې هغوی تښتولي وو.

## (۲۸) خوات بن جبير الانصاري رضي الله عنه:

نوموړی داحدپه جنګ کې ګډون کړی و اوپه هغه کې يې خپله ځوانمر دي ښکاره کړی وه وړور يې عبدالله بن جبير رضي الله عنه داحد دغزوه په کنډو کې دغشو ويشتونکي ګروپ (ټولی) اميرو هغه دشهادت لويه درجه ترلاسه کړی ده.

خوات بن جبير وايي: ماداسي درې کارونه کړيدي چې بل چانه دي کړي. ماپه داسې وخت کې خندلي دي چې په دی وخت بل هيچانه دي خندلي. په داسی ځای کی می بخل کړيدی چی بل هيچا نه دی کړی، اوپه داسې ځای کی ويده شوې يم چی بل هيڅوک په داسي ځای کی نه دي ويده شوي.

داحدپه ورځ ماخپل وړور وليد چې مشرکانو شهيد کړيدی، دهغه ګېډه يې څيری کړی وه او کولمی يې ترينه بهر ويستلې وی. مادخپل يوملګري په مرسته دهغه کولمی په ګېډه کې دننه کړي اوپخپله پګړۍ سره مې دهغه ګېډه کلکه وتړله، ما اوزما ملګري دهغه لاش له دی ځای نه روان کړ. مشرکان له مونږ ګردچاپېره تاو وو لږ غوندې روان شوي وو چې موږ دهغه له ګېډی نه يو آواز واوريد کله چې زماملګري له ويرې نه چيغې وکړې نومادخپل وړور مړې په زمکه کېښود او ومې خندل. بيا روان شوو اوپه يوځای کې مې دوروړ لپاره پخپل قوس (ليندۍ) سره دزمکې په کينستلو شروع وکړه په لنيدۍ تاروو. مالدينه بخل وکړ چې هسې نه دامات نه شي، قبر مو ورته وکنست اوپکې ښخ موکړ. اودازما بخل و، کله چې وړاندې روان شوم نو ګورم چی يومشرک جنګيالی زماپه طرف خپله نيزه سيده کړيده او غواړي چې ما ووژني. په دی وخت په ماباندې خوب راغی زه په داسي ځای کی ويده شوم چی په داسې ځای کی بل هيڅوک نه دي ويده شوي.

## (۱۹) عمروبن معديکرب رضي الله عنه:

نوموړی مزبوت، کلک اوقوي قهرمان و.دفارسیانوپرضد دهغه جنګي کارنامې مشهور ې دي.هغه ﷛ دقادسیه په غزوه کې دلښکر په مشرانو باندې یرغل وکړ اوله هغوی نه ډېر مشرکان یې وویشتل. دصفین په جنګ کې له حضرت علي ﷛ سره ملګری و په دی وخت دهغه عمر ۱۵۰ کاله و.

**(۲۰) عکرمه بن ابی جهل ﷛ :**

نوموړی دجاهلیت په وخت کې دسربازانو سردار و بیا یې چې اسلام راوړ نو ډېر ښه مسلمان ثابت شو.

دیرموک په غزوه کې دمشرکانو په خلاف دومره سخت وجنګید چې مسلمانانو به ورته ویل : ای عکرمه ! پخپل ځان باندی رحم وکړئ. هغه وویل : دجاهلیت په زمانه کې می دلات او عزی په خاطر جنګیدم اوپخپل ځان باندی می خیال نه کاو. ایا اوس دالله اودهغه درسول لپاره خپل ځان قربان نه کړم؟

بیارومیانوته مخاطب شو او ویې ویل : زه هرچیرته او هر وخت له رسول الله ﷺ سره جنګیدلې یم. ایانن ستاسې له مقابلې نه وتښتم ؟ په الله قسم چې داسې هرګزنه شي کیدلې.

بیایی وویل څوک له ماسره دمرګ بیعت کوي ؟ حارث ﷛ او ضرار بن الازور ﷛ ورسره دځلور سوه زړه ورو مسلمانانودمرګ بیعت وکړ.

له رومیانو سره له سختې جګړې نه وروسته په شهادت ورسېد اودهغه په بدن باندې له اویاونه زیات دغشو ، نیزو اوتورو زخمونه جوړ شوي وو.

**(۲۱)طلیحه بن خویلد الاسدي ﷛:**

نوموړی ډیر لوی قهرمان او زړه ور اصحابي وو. اوهغه په قوت اوشجاعت کې له زرو تنو جنګیالیو سره برابر ګڼل کیدو .

دقادسیي په جنګ کې ډیر لوی کارنامې ترسره کړیدي . حضرت عمر ﷛ سعد بن ابی وقاص ته ولیکل چې ماتاته دوه کسان درلیږلي دي یو عمروبن معدیکرب اوبل

طليحه بن خويلد ﷺ ددغو دوارو قوت له دوه زرو جنګيالو نه زيات دى. تاسې له دغو دوارو نه په جنګى امورو کې مشوره کوئ خودجنګ اميران يې مه جوړوئ.

دقادسيه لـه جنګ نـه لږساعت مخکى طلحه بن خويلد ﷺ ډير پـه زړه پورې کارنامه پريښې ده.

طليحه بن خويلد ، عمرو بن معديکرب، اوقيس بن المکشوح دفارس دلښکر دجاسوسي پـه خاطر لاړل. قيس او عمر دوارو ځينې عسکرله ځان سره راوستل چې مسلمانانو ته دهغوى نه دلښکر پـه باره کې معلومات وکړي. خو طليحه ﷺ ډير وړاندې لاړ تردې چې درستم لښکر ته يې ځان ورساو، او هلته يې ځان پټ کړتردى چې شپه شوه دلښکر مشر خيمې ته ورسېد ددى شاوخوا نورې زياتې خيمې لګيدلې وې چې دخپل مشر حفاظت وکړي. دمشر دخيمې په مخ کې يوه اصيل اوقيمتي اس تړل شوې و. طليحه بن خويلد الاسدي ددغه اس پړې پرې کړه اودخپل اس په رسې يې وتاړه او دمسلمانانو پـه طرف روان شو. دلښکر خلکوته چې معلومه شوه نو طليحه پـه سې پـه منډه شول. يوجنګيالى ورته نژدى شو نوطليحه ﷺ هغه فوراً په نيزه وواهه او مړ يې کړ، دهغه اس يې هم له ځان سره روان کړ. لږ وړاندې نه ورسيدلې چى ددښمن بل جنګيالې ورپسې ورسيد نو هغه يې هم وواژه اواس يې ترينه لـه ځان سره روان کړ. ورپسې ددښمن دريم جنګيالي ورسيد پرهغه يې هم حمله وکړ او راګير يې کړو. هغه ته يې دتسليميدو بلنه ورکړه هغه له وېرې نه خپله وسله وغورځوله او تسليم شو. حضرت طليحه ﷺ قيدي اولـه اسونه سره يوځاى دسعدبن ابى وقـاص خواتـه راورسېد. دمسـلمانانو مشـران راغونډشـول چى دبـندي مشرجنګيالي خبرې اترې واوري. سعد ﷺ لـه هغه نه غوښتنه وکړه چې خبرې اترې وکړي هغـه وويـل : ماډير جنګونه کړيدي اولـه لويـو لويـو بهادرانو سره مې مقابلې شـويدي اوډيـرو بهـادرانو کيسـې مـې اوريدلـې دي او ورسـره يوځـاى شـوې يـم خودطليحه پشان بهـادر مې نه چيرته ليدلى اونه مى چيرته آوريدلى دى. داله داسې دولښکرونه راتيرشوچې هلته هيڅوک دورننوتلو جرائت نشي کولاى اوپه يوداسې لښکر کې يې شپه تيره کړه چې هلته اويـازره مجهز جنګيالي موجود وو لـه هغه ځاى نه يې خالي لاس وتلو تـه زړه ښه نکړ بلکې دلښکر دمشر اس يې هم لـه ځان

سره روان کړ. موږ دی په سې شوو تر دی چی زموږ یو تکړه جنګیالي چی زموږ دزرو عکسرو هومره یي قوت درلود ده ته، ځان ورساو خوپه رسیدو سره سم ده دلاسه ووژل شو. بیا زموږ دویم جنګیالی ورپسې ورسېد. داهم له مخکیني جنګیالي نه په قوت اوبهادري کی کم نه ومګر دايې دسترګو په رپ کې وواژه. بیازه ورپسی ورسیدم. زه ګمان نه کوم چې په لښکر کې دی زما پشان بل بهادر موجود وي خوماهم خپل مرګ ده په لاسو کې ولید او تسلیمیدوته مې غاړه کېښوده. دغه قیدي جنګیالی سعدبن ابی وقاص ﷺ ته وویل چی دفارس دلښکر شمیره یولک اوشل زره دی اوهمدومره ورسره نور شاته دکومک او خدمت لپاره لښکر موجود دی. دغه جنګیالی لدینه پس اسلام راوړ اود مسلمانانو لپاره یې ډیرې غټې کارنامې ترسره کړې.

( ۲۲) **عبدالله بن زبیر** ﷺ:

نوموړی پخپله هم قهرمان و، پلار یې هم لوی قهرمان یعنې قهرمان ابي قهرمان و او پهلوان ابن پهلوان و.

عبدالله بن زبیر ﷺ په باره کې داهم مشهور دي چې نوموړې په عبادت او شجاعت کې دټولو سرخیل و. دمصر دافریقې په فتوحاتو کې یې لویه ونډه درلوده دافریقا پاچا جرجیر دهمده ﷺ دلاسه وژل شویدی. دیزید بن معاویه له مرګ نه وروسته عبدالله بن زبیر په مکه کې دخلافت مرکز جوړ وکړ ډیرو اسلامي هیوادونو دده امارت ومانه لېکن په دمشق کې مروان بن الحکم سره بنی امیه و بیعت وکړ. دهغه اقتدار ورځ په ورځ پراخیدو آن تردی چی له هغه نه وروسته عبدالملک بن مروان یولښکر دحجاج بن یوسف ترمشرۍ لاندې له ابن الزبیر سره دجنګ لپاره ولیږه. ابن زبیر یې په مکه کې محاصره کړ په کعبې باندی یې دمنجینق په ذریعه دکاڼو ویشتل پیل کړل اوهغه یی واژه.

عمروبن دینار المکی وایي چې ابن زبیر دکعبې په یوطرف کې په لمانځه ولاړوو، دحجاج دلښکر له لورې نه به د منجنیق کاڼي ددې شاوخوا لګیدلې مګر په عبدالله بن زبیر باندې به هیڅ اثر نه کیده اوپه پوره اطمینان سره خپل لمونځ کی لګیاو. یوې خواته اوبلې خواته یې نه کتل.

عثمان بن ابي طلحه وايي چې لـه عبدالله بن الزبير سره په درې شيانو کې هيڅا سيالي نه شوه کولې، يوپه بهادري او زړه ورتوب کې، بل په عبادت کې اوبل په بلاغت کې.

**(۲۳) عبدالله بن الزبير بن عبدالمطلب ﷺ :**

نوموړې درسول الله ﷺ تره زوې و، دحنين په جنګ کې له رسول الله ﷺ سره کلک ولاړ و، په فلسطين کې داجنادين په جنګ کې ددېرشو کلو په عمر کې په شهادت ورسېد. داجنادين په جنګ کې د رومي کافرانو لـه مشرانو څخه يومشر جنګيالی راووت اوله مسلمانانو نه يې دمقابلې غوښتنه و کړه. عبدالله بن زبير ﷺ دهغه دمقابلې لپاره ووت او هغه يې مړ کړ، بيايوبل جنګيالی قوماندان دمقابلې لپاره راووت ابن زبير ﷺ هغه هم وواژه. بياوروسته درېيم جنګيالی قائد دمقابلې لپاره راغی ابن زبير ﷺ هغه هم وواژه لدينه وروسته عمومي جنګ شروع شو ابن الزبېر دروم په صفونو ورننوت هغه يې ډيرې کړل پخپله هم په شهادت ورسيد. په دې جنګ کې مسلمانان بريالي شول او روميانو ماته وخوړه.

دعبدالله بن زبير ﷺ مړی دلسو رومي جنګياليو دمړوپه منځ کې پروت و چې لـه شهادت نه وړاندې يې وژلي وو. توره يې امانت په لاس کې وه اوپرمخ باندې يې لـه ديرشونه زيات ټپونه ښکاره کېدل.

**( ۲۴)عبدالله بن حنظله ﷺ :**

نوموړی دحضرت حنظله غسيل الملائکه ﷺ زوی و. حضرت حنظله په غسيل الملائکه سره ځکه ملقب شوی و چې هغه ته دشهادت نه وروسته ملايکو غسل ورکړې و. هغه چې کله داحد جنګ لپاره اعلان واورېد نو دی جنب و. غسل ته ايسارنه شو اود احد دجنګ په طرف را روان شو.لـه کفارو او مشرکينو سره يې سخته جګړه وکړه او بالاخر په شهادت ورسيد. رسول الله ﷺ دهغه ﷺ په باره کې خبر ورکړ چې ملائکو ورته غسل ورکړيدی.

دهغه زوی عبدالله هم دمسلمانانو یو ستر قهرمان اوعبادت گزار شخص و.د حره په جنگ کې چې دمدینې دخلکو اویزید بن معاویه ﷺ ترمنځ اوشو په شهادت ورسېد.

**(۲۵)ضحاک بن سفیان بن عوف ﷺ:**

نوموړې درسول الله ﷺ په زمانه کې له زړه ورو مجاهدینو څخه یو وو.

هغه ﷺ به درسول الله ﷺ په څنګ کې دهغه ﷺ دحفاظت لپاره توره په لاس ودرید اودهغه ﷺ پیره داري به یې کوله. دی له سلو اس سوارانو سره په قوت کې برابر و دفتح مکې په ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت ضحاک دبني سلیمو امیر ټاکلې و .

**(۲۶) ضرار بن الازور ﷺ :**

ضرار بن الازور ﷺ دیمامې په جنګ کې شریک شوې و اوپه دی ورځ یې اوچتې کارنامې ترسره کړې. دنوموړي په اړه یوقول دادی چې په همدغه دیمامې په جنګ کې په شهادت رسېدلی دی. خوبل قول دادی چې دشام په فتوحاتو کې هم شریک و اود دمشق په فتح کې هم وړاندې و.

دیرموک په جنګ کې یې هم ګډون درلود. په دی جنګ کې هغه ﷺ ډیر عجیب اوغریب واقعات اوکارنامې پرېښی دي.

**(۲۷) ضرار بن الخطاب بن مرداس الفهري رضی‌الله عنه:**

کله چې مکه فتحه شوه.نو ضرار بن الخطاب بن مرداس سمدستي اسلام راوړ د مسلمانانو په خلاف د احدپه جنګ کې شریک و اوګڼ مسلمانان یې وژلي وو.

یوه ورځ ضرار بن الخطاب ابوبکرصدیق ﷺ ته وویل : موږ له تانه قریشو ته زیات ښه وو. موږ هغوی جنت ته ولیږل اوتاسې دوزخ ته.

یعنې موږ مسلمانان ووژل اوجنت ته موو ولیږل، اوتاسې مشرکان ووژل او دوزخ ته مو ولیږل .

یوه ورځ انصارو ته دټوقو په اندازکې وویل ما داحدپه ورځ ستاسې دیوولسو سړو نکاح له حور عین سره وکړه.

**(۲۸) جلیبیب الانصاري ﷺ:**

نوموړی دانصارو لوی قهرمان اوبهادر اصحابي و.

له رسول الله ﷺ سره په یوه غزوه کې شریک شو. په پوره بهادری سره وجنګید اوشهید شو. جنګ د مسلمانانو په ګټه تمام شو اودښمنانو ماته وخوړه . رسول الله ﷺ خپلو اصحابو ته وویل : ایا له تاسونه څوک ورک دي؟هغوی وویل نه . رسول الله ﷺ وفرمایل : جلیبیب ﷺ نشته دهغه په لټې پسې وګرځئ، هغوی دهغه ﷺ په لټون په سې ووتل اود اووه کسو مشرکانو په منځ کې یې دهغه مړی پیداکړ.

رسول الله ﷺ وفرمایل چی لوموړی جلیبیب رضی الله عنه اوه تنه مشرکان ووژل او بیامشرکانو هغه شهیدکړ. هغه ﷺ له مانه دی اوزه له هغه نه یم.

دهغه سریې پخپلو لاسوباندې ترهغه کیښود ترڅو چې قبرورته نه و تیار شوې کله چی قبریې جوړشو نو اوچت یې کړ اوپکې کیښود. څو غسل یې ورته ورنکړ.

**( ۲۹) عبدالله بن سعدبن ابی سرح رضی‌الله عنه:**

نوموړې داسلام لوی قهرمان اوعظیم عقلمندمجاهد و.دافریقې فاتح اوهلته داسلام خپورونکی دی، مسلمانانو په افریقه کې زیات غنیمتونه ترلاسه کړیدي.نوموړې دذات الصواری په غزوه کې هم دمسلمانانو قائد اومشرو. دادروم پرضد لومړې بحري جنګ و چې مسلمانان یې دروم په خلاف چمتو کړي وو.

عثمان ﷺ هغه دمصر والي مقرر کړی وو اوڅو کلونو پورئ هلته دوالیتوب دنده اجرا کړیده،کله چې دعثمان ﷺ په زمانه کې فتنه اوچته شوه نوعبدالله بن

سعد داوظیفه خوشي کړه اودفلسطین په رمله ښار کې دیره شو تردې چې همغلته وفات شو.

هغه ﷺ الله تعالی ته سوال وکړه چې زما خاتمه په په لمانځه کې کړي. کله چې هغه دسهار لمونځ لوست نو لومړي سلام یې وګرځاوو اوله دویم سلام نه وړاندی وفات شو .

## (۳۰) القعقاع بن عمرو التمیمي:

نوموړې د مسلمانانو یو زړه ور مجاهد و دفارس په فتوحاتو کې یې لویه ونډه درلوده، اودقادسیه په جنګ کې دهغه کارنامې مشهورې دي.ابوبکر ﷺ به ویل چې په لښکر کې دقعقاع آواز له زرو سړونه غوره دی . دقادسیه په جنګ کې له فیلانو نه دنجات په ترلاسه کولو کې دهغه اودهغه د ورور عاصم ابن عمرو لوی کوښښ شامل و. دعلي ﷺ اود عثمان ﷺ دخلافت په زمانه کې له اختلافاتو نه خپل ځان لری کړې و.

## (۳۱) حکیم بن جبلة العبدي :

نوموړې دیانت دار، زړه ور او فرمانبردار تابعي و.

له نبی کریم ﷺ سره یې ملاقات لیدنه اوکتنه نه دې شوی عثمان ﷺ هغه دسند دفتحې لپاره واستاو او ډیرې کارنامې یې ترسره کړې.

## (۳۲) سُوید بن غفله الجعفي:

نوموړې دفیل په کال کې زیږیدلې دی دجاهلیت اوږده زمانه یې تېره کړیده. درسول الله ﷺ په ژوندکې یې اسلام قبول کړ. مګراصحابي ورته ځکه نشي ویل کیدی چی له نبی کریم ﷺ سره یې لیده کاته نه دي شوي .

دقادسیه په جنګ کې شریک شوې اودبهادرۍ اوچتې کارنامې یې ترسره کړي دي .نوموړې دیوسل اوشلو کلو په عمر کې له یوی پېغلې سره واده کړی وو .

**(۳۳) یزید بن معاویه بن ابی سفیان:**
نور چې هر رنګه و خو نوموړی داسلام دلاري مشهور بهادر او زړه ور مجاهد و.

**(۳۴) عبدالله البطال:**
نوموړی په تابعینو کې لوی بهادر انسان و اوخلکوبه دهغه دبهادرۍ مثالونه اومتلونه ویل . دروم په جنګ کې دهغه اوچت مقام دی.

**( ۳۵) ابوالغادیة :**

د معاویه ﷺ په زمانه کې په مسلمانانو کې یو زړه ورمجاهدو.

**(۳۶) ابن الجزري:**
دهارون الرشید په زمانه کې داسلام اودمسلمانانو قهرمان مجاهدو. لـه رومیانو سره یې په جنګ کې ډیرې سرې تودې زغملي اوپه پوره مېړانه سره جنګیدلې دی.

**(۳۷)حضرت موسی ابن نصیر رحمه الله:**

نوموړی‌مشهور زړه ور مجاهد و اودجهاد په سنګرونو کې یې اوچتې کارنامې پریښې دي . ستر امام و داندلس فاتح او فرنګیانو ته شکست ورکوونکی و.

**( ۳۸) المهلب بن ابي صفرة**:نوموړی ډیربهادر اور زړه ور و په جنګونو کی دنوموړي مشهورې قصې دي .

**( ۳۹) حضرت ابو ا لولید ابن فتحون رحمه الله:**

نوموړی په اندلس کې داسلام او مسلمانانو مشهور اومعروف مجاهدو، دابی بکر الطرطوشي دمور ماماو چی‌دسراج الملوک دکتاب مولف دی.

**(۴۰) حضرت المعتصم ابن الرشید: امیر المومنین رحمه الله:**

له مامون نه وروسته عباسي خليفه و. ډير زړه ور اوبهادر و. د رومیانو پرضد يې په ګڼو جنګونو کې شرکت کړيدې چې دعموريه جنګ يې زيات مشهور دی .
دروم پاچاورته يوخط ولېږه چې په هغه کی يې ډير زيات تهديد کړی و، خو هغه ترينه بالکل وېره ونکړه. او امر يې وکړ چې دروم دخط شاته دی په داسې ځواب وليکل شي : ته دخپل خط ځواب نه لولې بلکې پخپلو سترګوبه وګورې،( يعنې زه به عملي ځواب درکوم په خبرو ځواب نه درکوم ) کفاربه ډېر ژر پوه شي چې دآخرت کور دچاليپاره دی. دروم په خلاف يې لوی لښکر ويستلو اودهغه په خلاف يې زبردستې کارنامې ترسره کړې.

## (۴۱) حضرت الهادي اميرالمؤمنين رحمه الله:

دنوموړې نوم موسى الهادي اودهارون الرشيد ورور دی. له هارون الرشيد وړاندې اميرالمومنين او لوی بهادر و.

## (۴۲) حضرت الامين اميرالمؤمنين:

نوموړی دهارون الرشيد زوی اوله خپل پلار نه وروسته دمؤمنانو اميرو.

## (۴۳) احمد بن اسحاق السرماري البخاري رحمه الله:

نوموړې دمسلمانانو امام ، زاهد زړه ور مجاهد و اود امام بخاري پشان دبهادر عالم استاد و په نړی کې دده پشان بهادران دګوتو په شمېر دي امام بخاري دده په اړه ويلي دي چې مونږ ته داخبره نده رسيدلې چې دده پشان زړه ورچېرته په اسلام ياجاهليت کې تير شوی دی ابراهيم بن شماس رحمه الله وايي چې ماله احمدبن اسحاق سرماري سره خط او کتابت درلود. هغه ماته وليکل چې کله ته دبندیانو داخستلو لپاره تللې نوماته هم خبر راکړئ. ماورته خط وليږه چې تاسې له ماسره راشئ. هغه رحمه الله راغی زه اوهغه دواړه روان شوو. کله چې دسمرقند پاچاته زموږ دراتلو خبر ورسيد نوهغه دخپل لښکر له يوې لوې ډلې سره زموږ ښه راغلاست لپاره راغې اوزموږ ګرم استقبال يې وکړ، دبنديانو دآخستلو نه ترفارغېدو پورې له هغوی سره ديره وو. يوځل دهغوی له سړونه يوسړی راغی دهغه يې ډير زيات صفت او بهادري يې بيان کړ،احمد

السرماري پوښتنه وکړه چې داڅوک دی ؟ ويې ويل : دايوجنگيالی دی چې له زرو جنگياليو سره برابر قوت لري، سرماري رحمه الله وويل چې زه ددی مقابله به کوم سباته دوارو ترمنځ مقابله وشوه اوسرماري رحمه الله هغه وواژه، دهغه له ملگرو څخه پنځوسو کسانو په سرماري رحمه الله باندی يرغل وکړ خوهغوی يې هم يويو داوسپنې په هغی ډنډی سره ووهل چې ده به په خپل لستوڼی کې ساتله اومړه يې کړل ، داوسپنيزی ډنډی دروندوالي تقريباً شپږديرش رطله و. کله چې سرماري بوډا شو نو دهغه وزن يې څلور ويشت رطله کړه هغه رحمه الله به ويل : ماپخپله په دی توری سره زر ترکې کافران وژلي دي ، که ژوندې پاتی شوم نوزر کسه کافران به نور هم وژنم. نوموړې په دوسوه يوڅلويښتم هجري کال پخپل بستره کې لدې دنيانه سترگې پټې کړې او تل پاتې دنياته يې کوچ وکړ.



# د کتاب پا ی

## هغه مسا ئل او احکام چې له جهادسره تعلق لري

پوه شه چې دعلم میدان ډیرپراخ دی اودپیښنو تلې يې په حصرکې نشي راوستلې، اوددې نادر احکام ټول نشي لیکل کیدی...

دهریوفن لپاره دهغه مناسب یوموضوع دې. لیکن دابتدائې ( دلومړنی زده کړو) علم دترلاسه کولو لپاره جهل دعذر په توګه نشي وړاندې کېدې. اولدینه خلاصې نشته چې دمسائلو اصول وپیژندل شي ،لدېنه پس که ممکن وي نو دهغه په فروعاتو او نوادرو باندې دې ځان پوه کړي. چې دهغو بیا خپل ځایونه دي او خانګړي کتابونه لري چې په هغو کی دامسائل ځیرل کیږي ځایونه راځي په هر مسلمان باندی لازم او واجب دي چې ضروري علم ترلاسه کړي ، او داهغه علم دی چې دټولو عملونو صحت دهغه په معرفت باندی موقوف دی. لاندی به موږ هغه مسائل او احکام وړاندې کړو چې دمجاهدینو لپاره پرهغه پوهېدل لازمي او ضروري دي ترڅو جهاد يې صحیح اومقبول وګرځي.



## فصل

## مجاهد دی لاندینې احکام ضرور زده کړي

دمسلمانانو امیر اودهغه دنائب له اجازې نه پرته جهاد مکروه دی خوحرام نه دی. خوپه ځینو حالاتو کې دامیرله اجازې نه پرته هم جهادضروري دی. هغه حالات په لاندی توګه دي :

لومړې : ګوم سړی یاکومه ډله چې له کافرانو سره جنګیدل غواړي اوله هغوی سره جنګیدل ضروري هم وي نو په داسی حالت کی هغوی پاچاته داجازت دترلاسه کولو لپاره راځي نودجهاد مقصد له لاسه اوځي حال داچې جهادپخپل ځای ضروري دی او اجازه اوتاخیر ته يې ضرورت نشته.

دویم که چیرته دمسلمانانو حاکم جهادپریښي وي هغه اودهغه پوځونه ددنیا په مینه کې غرق شوي وي لکه چې نن سبالیدل کیږي نوپه داسی حالت کې دپاچاله حکم نه پرته جهاد مکروه نه دی ځکه چې هغه جهاد پریښي دی اومجاهدین دجهاد حق اداکوي او نه یې پرېږدي.

ذریم : که چیرته مجاهد ددی وخت نه لري چې له پاچا نه دجهاد اجازه وغواړي یا پوه وي چې که اجازه وغواړي هم نو پاچاورته اجازه نه ورکوي نو په داسی حالت کې هم جهاد کول مکروه نه دي. ( مغنی المحتاج ۴/ ۲۲۰ )

علامه ابن قدامه رحمه الله وایي چې که دمسلمانانو امام یاحاکم نه وي نودهغه دنشتوالي په وجه جهاد نشي وروسته کېدی ځکه چې په دی سره دجهاد مقصد له لاسه اوځي.[1]

(۱)

امیرلپاره داسنت دي چې له لښکر نه دابیعت واخلي چې ددښمن له مقابلې نه به تېښته او عقب نشیني نه کوي لکه چې رسول الله ﷺ دحدیبیه په ورځ له خپلو اصحابو نه بیعت واخست.

امیر لپاره داهم سنت دي چې ددښمن دقوت دمعلومولو لپاره جاسوسان ولیږي او هروخت دهغوی له حالاتو نه خپل ځان خبر وساتي.

امیر لپاره داهم سنت دی چی د پنجشنبی په ورځ سهار وختي خپل لښکر یاګروپ روان کړي، که ورته ممکن وي ، بیرغونه دی ورته جوړکړي او هریو ګروپ دی دخپل خپل بیرغ لاندې روان کړي، هریوګروپ ته دی دپیژندلو مخصوص شفرونه ورزده کړي ترڅویوبل پخپلوکې سره وپیژني او په غلطۍ کې یوبل ونه وژني.

پردښمن باندې دی دخپل رعب واچوي دخپلو کمزورو په وسیله دی د مدد اونصرت دعاوکړي. له دښمن سره دمقابلې او مخامخ کېدو په وخت کې دی له الله تعالی نه دبری دعا وغواړي، مجاهدین دی دجنګ لپاره چمتو اوتیار وساتي او دصبراو استقامت نصیحت دی ورته وکړي، جنګ دی ترهغه وخته پورې وروسته کړي ترڅولمر زوال وکړي دماسپښین

[1] - المغنی : د ۱: ۲۷٤

په وخت کی او هواګانې وچلیږي دجنګ په وخت کې دی په ډیر تیز غږ سره دالله اکبر ناره نه اوچتوي.[1] یعنې دتکبیر ناری دی وهي خوپه ډیر زور سره دی نه وهي .

امام قرطبي دالله تعالی ددغه قول :

﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا لَقِيتُمْ فِئَةً فَاثْبُتُوا وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴾ الأنفال: ٤٥ .

ترجمه : ای مومنانو! کله چې ددښمن له کومې ډلې سره مخ شوئ نو ټینګ مو کلکی اوالله ډیر یادوئ ښایي بری مو په برخه شي .

په تفسیر کې وایي چې ددی حکم دادی چې خفیه اوپه کلاره دی وویل شي. دجنګ په حالت کې دیو سړي آواز اوچتول ردي بلکې مکروه دی خو داهله مکروه دی چې یو نفر داکار کوي که یوه ډله او ګروپ په زوره نارې تکبیر ووایې نوداښه کار دی ځکه چی په دی سره ددښمن لاسونه اوپښې کمزوری کیږي.

درسول الله ﷺ اصحابو به دجنګ په وخت کې آواز اوچتول مکروه ګانه .[2]

(٢)

مسلمانو مجاهدینو ته پکار دي چې کومو خلکوته داسلام دعوت نه وي رسېدلی نوهغوی ته دې لـه جنګ نه وړاندې داسلام دعوت اوبلنه ورکړي اوپه دین باندې یې پوه کړي. اوکه چیرته وړاندې ورته داسلام دعوت ورکړل شوی وي نوبیا لـه جنګ نه وړاندی دوباره داسلام دعوت ورکول ضروري نه دي خوکه وریې کړي نودا مستحب اوښه کار دی، ځکه چی کیدی شي هغوی اسلام ومني اوله وژل کیدو اودوزخ له اورنه خپل ځانونه وساتي، خوکه چیرته دښمن جنګ شروع کړي نوبیا داسلام په طرف تبلیغ کول ساقطیږي ځکه چې ددښمن یرغل په شاتمبول اوهغوی ته شکست ورکول ضروري دي.

کومه سریه چې دکافرانو دسردارانو دوژلو یادبل کوم مهم معین هدف لپاره وتلی وي هغوی باندې دالازم نه دي چې لومړی هغوی ته داسلام بلنه ورکړي ځکه چې هغوی دیوخاص موقف لپاره وتلي وي ( ځکه که دوی دعوت ورکوي نو هغه خاص او معین هدف

---

[1] ـ مغني المحتاج ٤ ، ٢٢٠

[2] ـ تفسیر القرطبي : ٨ / ٢٤

پاتې کیږي .) لکه چې مجاهدینو یوی ډلې ابن ابی الحقیق کعب بن اشرف اوددی په شان نور خلک یې اسلام ته له بلنې نه مخکې وژلي و..[1]

(۳)

مجاهدین به اهل کتابو یعنی یهودانو اونصاراونه جزیه قبلوي او پخپل دین باندې به یې پریږدي که هغوی دجزیې ورکولو ته تیاروو خوکه جزیه نه ورکوي نوبیابه ورسره جنګ کوي ترڅو جزیه ورکولو اویا اسلام منلو ته غاړه کیږدي.

همدغه راز له مجوسیانو نه به هم جزیه قبلوي اودیهودانو او نصاراو په شان به ورسره معامله کوي. له یهود، نصارې او مجوسیانو نه پرته دی له بل چانه جزیه نه قبلوي، یعنی دبت پرستانو نه به جزیه نه قبلوي بلکې ترهغه دی ورسره وجنګیږي ترڅوپورې چې اسلام یې نه وي منلې.[2]

په دښمن باندې دشپې په تیاره کې حمله کول جائز دي. اګرکه په کې ښځې، ماشومان او مسلمانان موجود وي څکه چې داد جهاد له ضرورتونو څخه دی.[3]

کله چې کافران د مسلمانانو په وطن باندې حمله وکړي اودهغوی مقابلې لپاره مسلمانان له خپلو کورونونه اونه وځي نوپه کورونو کې دهغوی کیناستیدل داسې دي لکه چې له جنګ نه تیښته کول. داهله چې له دښمن نه زیات وي اوکه چیرته له دښمن نه کم وي نوبیا وربانډې ګناه نشته، هغوی ته پکار دي چې دنورو مجاهدینو تر راتلو پورې پخپلو خپلو مورچو کې کیني.[4]

کله چې امام یوسړي یایوی ډلې خلکوته ددښمن په خلاف دجهاد کولو حکم ورکړي نوپه دغه سړي او ډلې باندې جهاد د امام دامر دمنلو او اطاعت په خاطر فرض عین ګرځي. اګرکه جهاد فرض کفایه وي.[5]

---

[1]_ مغني المحتاج : ٤/ ٢٢٣ والمغني : ١٠/ ٣٨٥ وبداية المجتهد: ١/ ٤٠٣

[2]_ حاشية ابن عابدين : ٤/ ١٩٨ . والمغني : ١٠/ ٣٨٧ . ومغني المحتاج : ٤/ ٢٤٤.

[3]_ كشاف القناع ٣/ ٤٧

[4]_ مغني المحتاج ٤/ ٢١٩

[5]_ المغني ١٠/ ٣٦٦

که چیرته امیر ظالم وي نودهغه د ظلم په وجه جهاد نشي پرینبودې. که کوم مشر شرابي اویاد نورو ګناهو نو مرتکب وي نودهغه ترقیادت لاندې هم جهاد کول روا دي ځکه چې داد هغه خپله ګناه ده، اصل مقصدي شی له کفارو سره جهاد دی .[1]

(۴)

په جنګ کې دښځو او ماشومانو وژل حرام دي، خوکه هغوی دمسلمانانو په خلاف جنګ کاو نودهغوی وژل له څه شک نه پرته جائز دی .[2]

که چیرته بوډا، ضعیف ، ړوند ، دیولاس اویادیوی پښې شل کافر د مسلمانانوپرضد کې شریک وي نو دعلماو په اتفاق د دوی وژل هم روا دي. همدغه شان دهغو ړندو بوډاګانو کمزورو، شلانو او ګوډانو وژل هم روا ده‌ي چې د رای خاوندان اومشاورین وي. او که له مسلمانانو سره نه جنګیږي او کفارو ته مشوره هم نه ورکوي نو دجمهورو علماو په نزد دهغوی وژل روا نه دی .[3]

د جمهورو علماو په نزد دهغو راهبانو اوعابدانو وژل روانه دي چې په کنیسو اوګرجاګانو کې ناست وي اودمسلمانانو په خلاف جنګ کی شریک نه وي.همدغه راز د جمهور علماو په نزد دهغو خلکو وژل هم ناروا دي چی له مسلمانانو سره جنګ نه کوي لکه تجاران، کسب ګر او مزدوران.[4]

په منجنیق سره دکفارو ویشتل همدغه راز په هغوی باندې دکانو او اورونو ویشتل او اوبه وربانذې ورپریښودل چې ترلاندی شي او مړه شي جائز دي. اګرکه له هغوی سره مسلمانان هم بندیان وي ځکه چې داد جنګ له ضرورتونو څخه دی.[5]

(۵)

په دارالحرب کې دکفارو فصل او ونې په درې ډوله دي :

لومړې : هغه ډول فصلونه دي چې مسلمانان دهغوی دریبدلو اوپرې کولو لپاره مجبور دي نوپه دې صورت کې مسلمانانو ته دهغو فصلونه اوباغونه ریبدل اوپرې

---

[1]ـ المرجع السابق : ۱۰/ ۳۷۱

[2]ـ بدایة المجتهد :۱/ ۴۰۰

[3]– المرجع السابق ۱/ ۴۰۰

[4]ـ کشاف القناع ۳/ ۵۰ و مغني المحتاج : ٤/ ۲۲۳ .

[5]ـ مغني المحتاج : ٤/ ۲۲۳

کول روا دي مثلاً داسې فصلونه اوباغونه چې دجنګ په وخت کې دمسلمانانو په نقصان تمامیږي لکه دهغوی دکلاګانو سره نژدی فصلونه چې دښمن پکې پټیږي یا لاره تنګه وي نو دلارې دازادولواو فراخولو لپاره هم دفصل ریبدل جائز دي، اویاکافران د مسلمانانو فصل اوباغونو ته نقصان رسوي نو مسلمانانو لپاره هم جائزدي چې دهغو فصلونو او باغونو ته نقصان ورسوي.

دویم : هغه قسم فصلونه اوباغونه دي چې مسلمانانو ته ضرر رسوي نو دیته نقصان رسول روانه دي ځکه چې ددغو فصلونو اوباغونو فایده پخپله مسلمانانو ته رسیږي مثلاً پخپله هم خوراک ترینه ترلاسه کوي اوخپلو آسونو ته ګیاه ورته برابروي.

دریم هغه قسم فصلونه اوباغونه دي چې مسلمانانو ته نه ګټه لري اونه نقصان نوکه چیرته دیته په نقصان رسولو کې دکفارو نقصان کیږي او هغوی مرعوب کیږي نوبیا جائز دی.[1]

(۶)

امیردی مخذل ( بی‌زړه کوونکی‌سړی ) جنګ ته نه پریږدي اوکه له لښکر سره ووت نو بیرته واپس دې ولیږي خوکه په جنګ کې شریک شي او کوم کافر ووژني نو هغه ته به دسزاپه توګه دهغه وسله او سامان نه ورکوي. اونه دی په غنیمت کې برخه ورکوي مخذل هغه چاته وېل کیږي چې دمسلمانانو په زړونو کې ویره پیداکوي. لکه داسی وایي : زموږ دښمن له موږ نه په تعداد اوقوت کی زیات دی زموږ اسونه کمزوري دي اوموږ له هغوی سره دجنګ توان نه لرو.مرجف هم مخذل ته نژدی دی. داهغه دی چی افواګانې ښوروي او وایي چې ددښمن لښکرې دفلان فلان ځای نه خوځیدلی دي، له دښمن سره دمرستې لپاره دومره دومره خلک راغلي دي اوداسې نور.[2]

[1]ـ كشاف القناع : ۳/ ۴۹ ومغني المحتاج : ٤/ ٢٢٦.

[2]ـ المغني ۱۰/ ۳۷۲

علماو په مزدوري سره دغزاکولو ..اره کې اختلاف کړیدی چې امیر یوسړي ته په دی خاطر پیسې ورکړي چې دهغه په ځای جهاد ته لاړشي. مثلاً یا ډارن وي یاپه بل کار اوکسب کی مشغول وي، هغه بل چاته په دی خاطر پیسې ورکوي چې ددی پرځای جهاد ته لاړشي، ځینې علماو ددی په جواز باندې فتوه ورکړیده ځکه چې دمدینې خلکوبه داکار کاوه. او نور علماء وایي چې دانارو ا دی.

امام شافعی رحمه الله وایي یوسړي ته دا روانه دي چې دمزدوري په بدل کې جهاد وکړي اوکه چا مزدوري آخستی وي نوهغه دی واپس کړي خوله پاچانه مزدوري آخستل روادي.

صحیح خبره داده چې پاچا اوپه غیر پاچاهر چا ته دا روانه دي چې مسلمان ته دجهاد په بدل کی اجورت ورکړي ځکه چې کله جهاد فرض کفایه وي اویو مجاهد دجنګ ډګر ته ووځي او جنګ ونخلي نو جهاد په هلته موجود هر مسلمان باندی فرض عین ګرځي او په فرض عین باندی اجورت آخستل روا نه دی . مغني المحتاج۴/ ۲۲

امام نووي وایي : دفې کوم مال چې مجاهدینو ته ورکول کیږي هغه مزدوري نه دی .[1]

امام احمد وایي کوم غازي ته چه څه مال دغزا دمرستې په توګه ورکړې شي نو له هغه نه دی خپل اهل ته څه نه پریږدي ځکه چه دا هله مالک ګرځي چه دغزا میدان ته ورسیږي . کله چه دغزا میدان ته ورسید نو بیادامال خپل کورنۍ ته لیږلې شي ځکه چه هغه ددغه مال مالک ګرځي .

(۷)

مجاهد لپاره جائز دي چې زکات واخلي اګرکه غني وي ترڅودخپل کور ضروري نفقه، د آغوستو لباس . دتګ اوراتګ مصارف، ځان لپاره آس او وسله برابرکړي. کوم زکات چې ...ده ته ورکول شوې دهغه مالک دی اولدینه خپل کورنۍ ته هم ورلیږلې شي او...ل چاته هم.[2]

---

[1] الروضه للنووي ۱۰/ ۲۴۰_ ۲۴۱

[2] المجموع للنووي : ۶/ ۲۳۷_ ۲۳۸

امام قرطبی د (فی سبیل الله) په تفسیر کې وایي چې لدینه مراد غازیان اود سرحدونو پیره داران دي په جهاد کې دلګولوپاره دوی ته زکات ورکول جائز دي برابره خبره ده چې غنیان وي اوکه غریبان.

ابن عبدالحکم وایي چې داسلام ددفاع لپاره دوسلو د آخستلو او دمسلمانانو په سیمو او وطنونو باندی د دښمنانو دیرغلونو دمخنیوي لپاره دزکات مال مصرفول صحیح دی.[1]

(۸)

که چیرته کافران مسلّمان اویاد مسلمانانو ماشومان د ډال لپاره استعمالوي نوپه دی صورت کې موږ ته دیته کتل پکار دي چې که چیرته په کفارو باندې دوسلو د استعمالولو اودهغوی دویشتلو خاص ضرورت نه وي نود مسلمانانو دحفاظت په خاطر دی ورباندې درنه وسله استعمال نکړو، اوکه چیرته پرهغوی یرغل ضروري وي، لکه دسختې جګړې په وخت کی اویاموږ پوهیږو چی که ورباندی حمله ونکړو او وسله ورباندی استعمال نه کړو نو هغوی پرموږ غلبه ترلاسه کوي. یاموږ ته زیات نقصان اوتکلیف رسوي. یادهغوی مورچلې نشو نیولی نو په دی صورت کې ورباندی یرغل اودهرقسم وسلو استعمالول جائز دي خود ډزو په وخت کی دی مجاهدین پوره کوشش اوخیال وکړي چې هغه مسلمانان ونه لګیږي چې کافران یې دخپل ځان لپاره د ډال په توګه استعمالوي.[2]

ځینو علماو په مطلق ډول دهرقسم درنو اوسپکو وسلو داستعمالولو اجازه ورکړېده خود امکان ترحده به کوشش کوي چې مسلمانان ورباندی ونه لګیږي. که چیرته دمسلمانانو په جنګي بیړۍ کې کافران اور ولګوي نو مسلمان دې پوره کوشش وکړي چې اور ووژني او یالدینه په سلامتي سره ووزي خوکه چیرته ددی امکان نه وي نوبیاپه اوبوکې دانګل ورته جائزدي.[3]

---

[1]_ تفسیر القرطبي : ۸/ ۱۸۵ _ ۱۸۷

[2]_ مغني المحتاج : ٤/ ۲۲٤س

[3]_ المغني لابن قدامة : ۱۰/ ۵۵٤

(٩)

که چیرته دکفارو تعداد د مسامانانو دتعداد لـه دوبرابری نه هم زیات وي نو مسلمانانو ته بیا تېښته کول جائز دي اوکه لـه دی تعداد نه کم وي نوبیا ورته تېښتيدل جائزنه دي. علماو په دې مسئله کې اختلاف کړيدی چی ایاپه جنګ کې لـه مشرکانو نـه مرسته غوښتل جائزه ده اوکه نه؟ ځینو علماو ویلي دي :په دی شرط ترینه مرسته غوښتل روادي چې دخیانت نه کولو ضمانت ورکول شوې وي ، اوځینو علماو ویلي دي چی صرف دخدمت اوداسې نورو وړو کارونو کې ترینه مرسته غوښتل جائز دي .او ځینو علماو ویلي دي چی په مطلق ډول ترینه مرسته غوښتل روا نه دی .[1]

(١٠)

دعلماو ترمنځ پـه دی خبره اختلاف دی چی ایـا مجاهد دهغـه کافـر د سامان دآخستلو مستحق دې چې ده پخپلو لاسو وژلې وي ؟

ځینې علماء وایي چې په څو شرطونو سره دهغه دسامان مستحق کېدلی شي :

لومړی داچې وژل شوې کافرپه جنګ کې شریک وي اودجنګ کولو قوت ولري.

دویم داچې ویې وژني . اویایې داسې زخمي کړي چې دپاڅیدو نه وي او دمړي پشان شي . دریم داچې دخطر پـه ځای کې بـه یې وژلې وي لکـه دمقابلې پـه صورت کې یادکفارو په منځ کې ورننوتلې وي او هلته یې ووژني .

ځینو علماو ویلي دي چی کوم مجاهد کافر وواژه نودهغه ټول سامان دمجاهد دی اګر که کافریې مخامخ وژلی وي اویادتیښتې په حالت کې، ځکه چې لـه وړاندې نه همدغه طریقه روانه ده اورسول الله ﷺ هم له سلمه بن الاکوع سره همداسې کړي و، [2]

لهذا دوژل شوي کافر سامان دهغه دوژونکي مجاهد دی.دځینو علماو په نزد دپاچا اویا دامیر دا اعلان شرط دی. چی چاکوم کافر وواژه نودهغه ټول سامان دهغه دی

---

[1]ـ المجموع : ١٨/ ٢٢ والمغني : ١٠/ ٤٥٦

[2]ـ الروضة للنووي : ٦/ ٣٧٢ـ ٣٧٣

که هغوی اعلان کړې وي نود وژل شوي کافر سامان دهغه دقاتل حق دی .اوکه امیر داسې نه وي ویلي بیایې ورته اخستل نه دي روا.

خو ځینو علماو داشرط نه دې لګولې ، هغوی وایي چې که امام اعلان هم نه وي کړې بیاهم دوژل شوي کافرد سامان حقدار دهغه قاتل دی.[1] ځینی علماوایي چې دوژل شوي کافرسامان به لـه غنیمت نه دخمس لـه ویستلو نه وړاندې دهغه قاتل ته ورکول کیږي، خو ځینې علماء وایي چې لومړې به خمس ورکول کیږي اوبیابه دوژل شوي کافر سامان دهغه قاتل ته ورکول کیږي .[2]

او ځینوعلماو دوژل شوي کافـر نـه جامې ویستل او دهغه بربنډ پرېښودل مبـاح ګرځولي او ځینو نورو لدینه منع کړی ځکه چه پدې سره دمړي شرم ګاه ښکاره کیږي .[3]

(۱۱)

د وژل شوي کافر سامان نه مطلب دهغه لباس، بوټان، دجنګ وسله اوسامان لکه زغره جنګي ټوپۍ. دهغه سورلۍ لکه آس، اوښ، داس زین، واګې اوداسې نور سامان، دهغه ډال توره دهغه قیمتي بنګړي او هار، همیانۍ ،ګوتمۍ، پیسې، اوپه اس باندی چې کوم سامان باروي ځینو علماو پدی کې اختلاف کړی او ځینې هغو شیانو ته چې مونږ ذکر کړل سلب نه دي ویلي . (الروضة: ۶/ ۳۷۵).

که چیرته قـاتل دمقتول دمال د آخستلو نه لاس په سرشي بیاهم دهغه حق نه ساقطیږي ځکه چې داد همغه حق دی.[4] ځینو علما وایي چې ترهغه دی قاتل دمقتول سامان نه آخلي ترخوچې ګواهـان یې نه وي تیر کړي، خو ځینو نورو علماو ددی جواز ورکړیدی چې له ګواه نه دی پرته دهغه سامان ورکړي. دجمهورو علماو رای داده چې دامام د اجازی نه پرته دې نه آخلي.[5]

---

[1]_ الروضة : ٦/ ٣٧٦ . والمغني . : ١٠/ ٤٢٦

[2]_ المجموع : ١٨/ ١١٥ . والمغني : ١٠/ ٤٢٥ _ ٤٢٦

[3]_ المغني : ١٠/ ٤٣١

[4]_ نهاية المحتاج ٨/ ٧٦

[5]_ شرح النووي على مسلم : ١٢/ ٥٩

(۱۲)

کله چې پاچا دا اعلان وکړي چې هرڅوک په جنګ کې څه مال ونیسي داد هغه دی ددی دجوازپه هکله کې دعلماو ترمنځ اختلاف دی، ځینو ددی په جواز فتوه ورکړېده خو ځینو نورو ددی له آخستلو نه ممانعت کړیدی ځکه چې نبی کریم ﷺ اوراشده خلفاو به غنیمتونه له جمع کولو نه وروسته ویشل، امام لپاره داجائز نه دي چې دغنیمت مال له ویشل کیدونه وړاندې چاته زیاتي مال ورکړي خودخمس له ویستلو نه وروسته ورکولې شي.

نورو علماو پاچاته اختیار ورکړیدی چې که هغه وغواړي نو له خُمس نه وړاندې مجاهدینو ته زیاتي سامان ورکولې شي.[1]

(۱۳)

د غنیمت له مال نه باید لومړی دغنیمت دمال ساتوونکو او نقلونکو برخه ورکړي اولدینه پس دی په پاتی مال کې خمس وباسي. خمس دېته وېل کیږي چې د غنیمت مال په پنځو برخو وویشل شي څلور برخې دی مجاهدینو ته ورکړي اوپنځمه حصه دی په پنځو حصوباندی وویشل شي، یوه حصه دی الله او رسول ته ورکړی شي اوهغه دی دمسلمانانو دخیر اوښیګڼې په کارونو کې ولګول شي، لکه دسرحدونو دمحافظینو لپاره نفقه، بیرکونه او کلاګانې جوړول، مسجدونه مدرسې ،پلونه اوداسې نور کارونه .دوهمه حصه دی درسول الله ﷺ خپلوانوته ورکړی شي لکه دبنو هاشم او بنو عبدالمطلب دکورنۍ خلکوته . که هغوی مالداري یا غریبان وي ښځې وي که نارینه . دریمه حصه دی هغویتیمانو ته ورکړي چې هغوی غریبان وي،څلورمه حصه دی مسکینانو ته اوپنځمه حصه دی مسافروته ورکړي.دفیء مال دی په بیت المال کې جمع کړي اومجاهدینو ته دې هیڅ شی ورنکړي.

فی هغه مال ته وېل کیږي چې کفارونه له جنګ نه پرته په لاس راغلی وي. خو ځینو علماو دپورتني تقسیم مخالفت کړیدې .[2]

---

[1]ـ المغني ۱۰/ ۴۶۲

[2]ـ المجموع : ۱۸/ ۱۵۷ وتفسیر ابن کثیر : ۲/ ۴۱۲ .

دټولو علماو په دی اتفاق دی چی هرڅوک دجهاد په نیت دجنګ سنګر ته حاضرشي هغه ته به دغنیمت مال نه برخه ورکولې شي اګرکه جنګ یې نه وي کړی خوپه دی شرط چی هغه مسلمان بالغ او آزاد سړی وي، همدغه راز هغه مجاهد ته هم دغنیمت له مال نه برخه ورکول کیدی شي چی په جهاد کې ناروغ شوې وي. لکه چې ړوند او ګوډ ته برخه ورکول کیږي خوداهله چې په جهاد کې دهغوی ګډون ګټور وي اوجهاد ته یې فایده رسیږي.[1] دغنیمت په ویش کې غوره خبره داده چې سپرو مجاهدینو ته دغنیمت په مال کې دری برخې ورکړی شي یوه حصه دهغه اودوه حصې دهغه داس، اوکوم سړی چی پیاده جنګیږي هغه ته دی یوه برخه ورکړی شي . خو ځینو علماو ددغه ویش مخالفت کړیدی بل چاته به یې نه ورکوي څلور حصې ددوی او پنځمه حصه به یې پنځه برخې کړي ځیني علماو ویلي چې بل څوک یې هم اخستې شي.[2]

څوک چې د جهاد په نیت له مجاهدینو سره ووت خو هغه ته دمالونو دحفاظت اویادمجاهدینو لپاره دخوراک څښاک دتیارولو کار وسپارل شو نو هغه ته هم دغنیمت په مال کی پوره برخه ورکول کیږي. ددوی په حکم کې هغه تاجران هم دي چې په لښکر کې تجارت کوي په دار الحرب کې د غنیمت ویشلو کې د علماو ترمنځ اختلاف دی ځینو ورته روا ویلي دي او ځینې نور وایي چې ناروا دی .

(۱۴)

د غنیمت هغه مالونه چی دوېش قابل دي هغه باید دمجاهدینو ترمنځ وویشل شي اوکوم مالونه چې نه منتقل کیږي لکه زمکې اوکورونه نو ددی حکم دادی چې یاخو دی په مجاهدینو وویشل شي اویادې دخپلو مالکانو ته پریږدي او په مقابل کې دی له هغوی نه جزیه اوخراج واخلي.[3]

(۱۵)

کوم اصیل او آزاد دښمنان چې په جنګ کې ونیول شي دهغوی په هکله کې دمسلمانانو پاچا اختیار من دی هغه کاردی وکړي چې دمسلمانانو په ګټه وي. یابه

---

[1]ــ المغني : ١٠/ ٤٤٩

[2]ــ المغني : ١٠/ ٤٤٣ .

[3]ــ المغني : ١٠/ ٤٦٢ والمجموع : ١٨/ ١٦٢

يي ختونه ترينه وهي اويابه وربانـدي احسان كوي اوله څه عوض اوبدلې نه پرته دي آزاد كړي، يادې دمسلمانانو لـه بنديانو سره تبادله كړي، يادي دمال په مقابل كې خوشې كړي اويايې مريان وګرځوي.[1] امام ته ددې خبرې اختيار دى چې داهل كتابو په بنديانو باندې جزيه مقرر كړي او جمهور علماو ددې په جواز فتوه وركړيده.[2] دكفارو ښځې او زامن د مسلمانانو په لاس كې پرې وتو سره سم مريان ګرځي.[3] علماو د بت پرستو عربانو د غلام ګرځولو په جواز كې اختلاف كړيدى .[4] كه چيرته كوم مسلمان يوبندي دامير لـه حكم نه پرته ووژني هغه ته به تعزير وركول كيږي.[5]

(۱۶)

كله چې كافرله خپلې ښځې سره يوځاى بندي كړى شي نو دځينو علماو په نزد دهغوى نكاح نه فسخ كيږي خوځينې علماوايي چې نكاح يې فسخ كيږي.كه چيرته ښځه يواځې بندي شي نو دهغې نكاح فسخ كيږي. خوكه يوازې خاوند يې بندي شي نو دځينو علماو په نزد نكاح يې فسخ كيږي اودځينو په نزد نه[6] كله چې يو آزاد اوعاقل كافرپه هغه باندې دمسلمانانو لـه بري نه وړاندې مسلمان شي دهغه وينه اومال محفوظ شو. برابره خبره ده چې دامن پـه وخت كې مسلمان شوې وي اويادويرې په زمانه كې، لـه هغو سره دهغه ماشومان هم محفوظ دي داحكم دسړو او ښځودوارو لپاره عام دى.[7]كه يو بندي لدينه وړاندې مسلمان شي چې پاچا دهغه په

---

[1]ـ المجموع : ۱۸/ ۱۰۲ والمغني : ۱۰/ ۴۰۰

[2]ـ مغني المحتاج : ٤/ ۲۲۸

[3]ـ المغني : ۱۰/ ٤۰۳

[4]ـ المرجع السابق ۱۰/ ٤_ ٤۲۰

[5]ـ المغني : ۱۰/ ٤۰۷ والمجموع : ۱۸/ ۱۰۵.

[6]ـ المغني ۱۰/ ٤۷۳_ ٤۷٤.

[7]ـ المرجع السابق : ۱۰/ ٤۷۵ .

اړه څه فیصله واوروي نو دجمهورو علماو په نزد دهغه ځان او وینه محفوظ ، اوله مریتوب نه هم بچ پاتی شو.[1]

(۱۸)

کوم ماشومان چې لـه خپلو مورانو اوپلارانو سره بندیان ونیول شي دجمهور علماو په نزد دغه ماشومان دخپلو مورانو اوپلارانو په دین به وي. اوکه چیرته یواځې دیوپلار سره بندي ونیول شي نودپلار په دین کی به وي اوکه یواځې لـه خپلې مور سره بندي وي نو دمورپه دین کې به وي. اوکه یواځې ونیول شي نوپخپل دین باندی باقي پاتې دی.[2]

دجمهورو علماو په نزد په بندي خانه کې باید پلرونو مورګانو زامنو، وروڼو خویندوترونو او ماماګانو ترمنځ جدایي رانه وستل شي .[3] کله چې لـه کفارونه وسله اوخاروي په غنیمت کې ونیول شي دهغوی سوځول اوضائع کول جائز نه دي. مګر په هغه صورت کې روا دي چې لـه ځان سره نه شي راوړې اوکفار وربانديې قوي کیږي.[4]

(۱۹)

که چیرته دکفاروپه خلاف په جنګ کې هلکان اوښځې هم ګډون وکړي نوهغوی ته دجمهورو علماو په نزد د غنیمت له مالونو نه دمجاهدینو له برخې نه لږه حصه ورکول کیږي داپه هغه صورت کې چی هلکانو جنګ کړې وي اوښځو زخمیانو ته دمرهم پټۍ لګولې وي. همدغه راز هغه غلامانو ته هم دغنیمت لـه مال نه برخه ورکول کیږي چې پـه جنګ کې دکفارو پـه خلاف برخه آخستې وي .[5] خودابرخه به دجمهورو علماو په نزد دیومجاهد له برخې نه کمه وي. دابرخه به یاداصل غنیمت (

---

[1]_ المرجع السابق : ۱۰/ ۴۰۲

[2]_ المغني ۱۰/ ۴۷۲ والمجموع : ۱۸/ ۱۲۰

[3]_ المغني : ۱۰/ ۴۶۷ والمجموع : ۱۸ ۱۲۵ _ ۱۲۶

[4]_ المغني ۱۰/ ۵۰۷_ ۵۰۸

[5]_ المجموع: ۱۸/ ۱۶۷ والمغني : ۱۰/ 451

له ویش نه ورانډی ) نه ورکوي یابه یې دمجاهدینو دبرخې څخه ورکوي یابه یې دخمس ( پنځمی برخې ) څخه ورکوي .

.کوم مجاهد چې له نورو مجاهدینو نه زیات او ممتاز جنګ وکړي نو پاچا هغه ته دهغه دبهادرۍ اوشجاعت په خاطر له خپلې برخې نه زیات غنیمت ورکولې شي. لکه چې رسول الله ﷺ سلمه بن الاکوع ته د ذی قرد په غزوه دوه برخې ورکړې وې یوداس سوار برخه اوبله دپیاده برخه، له دې سره چې هغه پیدل جنګیدلې و. [1]

(۲۰)

نفل هغه زیاتي مال ته ویل کیږي چې دمسلمانانو پاچا هغه مجاهد ته ورکوي چې هغه په جنګ کې خصوصي قهرماني اوسربښندنه ښکاره کړې وي. [2] کله چې دغنیمت مال په مجاهدینو ویشل کیږي پاچا هغه ته دهغه له حق نه زیات ورکوي .داهم روادی چې پاچا اعلان وکړي او ووایي چې هرچادا دا کارنامه ترسره کړه نو هغه لپاره دومره انعام دی[3] دانفل دځینو په نزد دخمس څخه ورکول کیږي دځینو په نزد خمس پنځمه برخه ده اودځینو نورو په اند دمجاهدینو په څلورو برخو کې به ورکول کیږي خو ځینو علماو لدینه ممانعت کړیدی که امام له لښکر نه وړاندې بوګروپ ولیږي او هغوی دجنګ سنګر ته داخل شي نو امام ته روادي چې دغوکسانو ته له غنیمت نه زیات مال ورکړي. [4]

(۲۱)

فی هغه مال ته ویل کیږي چې له کافرانو نه له جنګ نه بغیر ترلاسه شي ، مثلاً کفار له مسلمانانو دویرې له کبله وتښتي اوخپل مال پریږدي، یاداچې کافران مسلمانانو سره په څه مال باندې سوله وکړي چې مورږ به تاسوته درکوو. اویا داومني

---

[1]_ المغني ١٠/ ٤١٧

[2]_ الروضة للنووي : ٦/ ٣٧٠ _ ٣٧١.

[3]_ المغني : ١٠/ ٤١٢ والمجموع : ١٨/ ١٣٤

[4]_ المغني : ٤٠٩١٠ و: ٤١٦/ ٤١٧

چې موږ به تاسې ته جزیه درکوو.[1] علماو ددغه مال په باره کې اختلاف کړیدی ځینې وايي چې لدینه به دغنیمت دمال پشان خمس یعنی پنځمه برخه ویستل کیږي. خو جمهور علماء وايي چې لدینه به خمس نه ویستل کیږي بلکې پاچا ته اختیار دي چې دمسلمانانو دخیرښیګڼې په کارو کې مصرف کړي اویاپه هغه څه کې ولګوي چې مسلمانانو ته زیات ګټور وي.[2]

(۲۲)

کله چې لـه کفارو سره مسلمان بندي ته دتښتیدو موقع اوفرصت په لاس ورشي نوپرهغه باندې تښتیدل واجب دي، که چیرته دتیښتې په وخت دمال یادکوم کافر تښتولو اویادکافر دوژلو قدرت پیداکړي نوداهم ورته جائز دي.[3] که چیرته کفارو یو مسلمان په ځینو شرطونو خوشی کړ نو پرهغه واجب دي چې په هغه شرط باندی وفاوکړي اوپوره یې کړي ترڅو نورو بندیانوته تکلیف ونه رسیږي او مسلمانان په دی متهم او تورن نه شي چې دوی پخپلو کړیو وعده باندې وفانه کوي.[4]

(۲۳)

کله چې دکفارو محارب لښکر لاره ورکه کړي اود مسلمانانو په سیمه کې دننه شي نو هغوی اودهغوی ټول جنګي وسله، اسونه او نور مال دمسلمانانو لپاره فی مال دی، همدغه راز که سیلاب اوطوفان دمحارب کفارو څه مال او سامان دمسلمانانو کلي تـه راولي داهم دمسلمانانو لپاره فی دی.[5] کله چې حربي کفار د مسلمانانو کلي تـه د امـان لـه غوښتو نـه وړاندې داخل شي د جمهورو علماو په نزد راجح خبره داده چې امـان ورتـه ورنکړی شي. هغوی سره جنګ کول دهغوی وژل او هغوی سره چې څه وي هغـه ترینه اخستل روادي ځکه چې هغوی لپاره امان نشته.[6] کله چې

---

[1]_ المجموعه : ١٨/ ١٨٤

[2]_ المغني ١٠/ ٥٤٧ _ ٥٥٠ والمجموع : ١٨/ ١٦٠ _ ١٦٢

[3]_ المغني ١٠/ ٥٤٨

[4]_ قوانین الاحکام الشریعیه : ١٧٣

[5]_ المغني ١٠/ ٥٦٤ _ ٥٦٥

[6]_ المغني ١٠/ ٤٤١ والروضة ١٠/ ٢٨٠

دحربي کفارو تجاران امان وغواړي اود مسلمانانو وطن ته دخريد اوفروخت لپاره راشي نوپرمسلمانانو واجب دي چې دهغوی په امان باندې وفاوکړي او ورباندې تيرې ونکړي ځکه چې هغوی له مسلمانانو سره داخل شويدي .[1]

( ۲۴ )

دعلماو ترمنځ په دې خبره اختلاف دی که کافر له مسلمانانو نه مال دجنګ دلارې اويا په بله طريقه سره واخلي اياهغوی دمسلمانانو ددغه مال مالکان ګرځي اوکه نه ؟

دجمهورو علماو په نزد مالکان يې نه ګرځي بلکې دادهغو مسلمانانو ملکيت دی چې ترې نه دجنګ اويا دغلا په ذريعه يې آخستی دی.

کله چې دغه مال بيرته د مسلمانانو په لاس ورشي نوخپلو خپلو مالکانو ته به سپارل کيږي.[2] کله چې د مسلمانانو پاچا په مجاهدينو باندې دغنيمت مال تقسيموي او مسلمان خپل هغه مال وپيژني چې کفارو ترينه آخستی و نود ډيرو علماو په نزد دغه مال به خپل اصليمالک ته بيرته ورکول کيږي ځکه چې داد همغه مال دی .[3]

(۲۵ )

چې کله يو کافر ذمي توب ته غاړه کيښود او مسلمانانو هغه ته ذمه ورکړله بيايې دحربي کفارو سره ديو ځای کيدو اراده وکړه نو پرمسلمانانو باندې لازم دي چې لدينه يې منع کړي که نه دايساريدو جنګ دی ورسره وکړي . ځکه که چېرې نن داکفارو ته ورشي نو صبا ته به دمسلمانانو پرضد جنګيږي اودکفارو مرستندوی به وي .[4]

---

[1]ـ التاج والاكليل لمختصر الخليل : ۳/ ۳۶۲

[2]ـ حاشية ابن عابدين : ٤/ ١٦٠

[3]ـ الروضة : ۱۰/ ۲۹۳ _ ۲۹٤

[4]ـ الكافي في الفقه : ۱/ ٤۱۷

(۲۶)

علماو دمشرکینو دسر په غوڅولو او دمسلمانانو علاقې ته په وړلوکی اختلاف کړیدی ځینو علماو لدی نه منع کړې ځکه چی دا له کفارو سره ورته والې او دهغوی تقلید دی ځکه هغوی همداسې کار کوي او ځینو علماو ددی اجازه ورکړیده . ځکه چی پدې کې کفارو ته وېره ښودل دي ، او ځینو اصحابو هم داکار کړیدي . .[1]

(۲۷)

که چیرته یوحربي کافر کوم مسلمان ته څه هدیه ولیږي نو مسلمان لپاره روا دی چی داهدیه واخلي. ځکه چې رسول الله ﷺ له مقوقس هدیه آخستې اوقبوله کړې وه. خو ددغې هدیې په باره کې دعلماو په نزد اختلاف دی ایاداهدیه به د همدغه سړي ملکیت ګرځي چې چاته یې لیږلی او که د غنیمت له مال سره به یوځای کولې شي ؟ اودغنیمت پشان تقسیم به یکې کولې شي . په دی کی راجحه خبره داده چې که چیرته داهدیه دجنګ په دوران کې لیږل شوي وي نودابه دغنیمت له مال سره یوځای کولې شي اوکه له جنګ نه وروسته یې لیږلې وي نودادهمغه سړي ملکیت ګرځي چاته یې چې هدیه کړیدی .[2]

(۲۸)

دعلماو په نزد په دی کی اختلاف دی چی ایا یو مسلمان کولې شي چې یویاڅوکافرانو ته امان ورکړي ؟

دجمهورو علماوپه نزد یو مسلمان داحق لري چې یومسلمان دکافرو محصورې ډلې ته امان ورکړي، اوپر نورو مسلمانانو باندی لازم دي چی ددغه آمان التزام وکړي.[3]

د علماو ترمنځ په دی خبره کې اختلاف دی چی ایا یومسلمان غلام(مری) کولې شي چې کافرته امان ورکړي؟ راجح خبره داده چې که چیرته دی غلام ته په جنګ کې

---

[1]_ المغني ۱۰/ ۵۶۵_ ۵۶۶

[2]_ المغني ۱۰/ ۵۶۶ والمجموع : ۱۸/ ۳۲۸

[3]_ کشاف القناع ۳/ ۱۰۴ وشرح فتح القدير ۵/ ٤٦۲

دګډون کولو اجازه ورکول شوې وي ددی حق لري چې کافر ته امان ورکړي .[1] ټول علماو په دی خبره متفق دي چی مسلمانه ښځه کافر ته امان ورکولې شي.[2] دمراهق تمیز کوونکی ماشوم په آمان کې اختلاف دی خو راجحه خبره داده چې امان نه شي ورکولې .[3]

(۲۹)

. دجمهورو علماو په نزد په اشارې سره هم امان صحیح کیږي . همداشان امان په هغه لفظ هم صحیح کیږي چې په امان ورکولو دلالت کوي برابره خبره ده که صریح وي که کنایي . دصریح لفظ مثال داده چې مسلمان کافر ته داووايي . ما تاته پناه درکړې ده . یاماتاته امان درکړی ده . یاته په امان کې یې دکنایې مثال دادی . چې مسلمان کافرته ووايي ، ستاچې څرنګه خوښه وي هغه رنګ معامله به درسره کیږي . یاچې څرنګه دې خوښه وي هغسې شه همداشان امان په لیکلو دکوم استازي په لیږلو او په واضح اشارې سره هم منعقد کیږي . خوپه امان کې داخبره ضروري ده چې امان ورکړې شوې کافر ته به امان رسیدلې وي اوپری پوه به وي که چېرې یو مسلمان دامان لـه ور رسیدو نـه مخکې داکافر ووژه نو پدې مسلمان باندې هیڅ ګناه او تاوان نشته .[4]

[1]_ الروضة : ۱۰/ ۲۷۹ .

[2]_ المغني ۱۰/ ٤۳۲ .

[3]_ الروضة ۱۰/ ۲۷۱

[4]_ الروضة للنووي : ۰ / ۲۷۹_ ۲۸۰

(۳۰)

کله چې مسلمان لـه کافـر حربي سره مخامخ شي او ورتـه ووايـي چې ودرېږه ! یا وسله دې پرزمکه کېږده . داد مسلمان لـه لورې هغـه تـه آمان دی ځکه چې دکافرپه عقیـده دا امـان دی .[1] کله چه امـن منعقد شي نوکافر په امن کیږي نه به هغه وژل کیږي اونـه بـه ورتـه بد رد ویـل کیـږي اونـه بـه نیـول او بـندي کیـږي کافر جاسوس تـه امان ورکول روانه دي ځکه چې دمسلمانانو په سیمه کې دهغه راتګ جنایت دی هغه بـاید ووژل شي. کـه چیرته کـوم کافر لـه مسلمانانو نه امان وغواړي اودتجارت لپاره دمسلمانانو هیـواد تـه راشي مګـر وروسـتـه معلوم شي چې هغه د تجار په لباس کې جاسوس دی دهغه امان باطلیږي او وژل یې جائز دي.[2]

(۳۱)

کلـه چې یـو مسلمان دکافرانو پـه وطـن کـې کمزورې وي اودخپـل دین ښکاره کولو قدرت نه لري نو دده لپاره هلته اوسیدل حرام دي. په هغه واجب دي چې لـه هغه ځای نـه دمسلمانانو هیـواد تـه هجرت وکړي، خوکه چیرته دهجرت کولو توان یې نه درلود نو ترهغه معذور ګڼل کیږي. چې دهجرت کولو توان پیداکړي .

کـوم مسـلمان چې دکفـارو پـه وطـن کـې قـوي وي اوخپـل دیـن ښکـاره کولـې شي نوهغه لپاره هلته اوسیدل جائز دي اوهجرت ورباندې واجب نه دی.

کـه چیـرتـه یومسـلمان دکفـارو پـه هېـواد کـې اوسیږي او امیدلري چې اسلام به دلته قوي کړي نو هغه لپاره هلته اوسیدل غوره دي ترڅو هغوی ته داسلام دین ورسوي.[3]

رسـول الله ﷺ بـه دکفر پـه وطـن کـې لـه اوسیدلو نه ممانعت کاو، اوکوم مسلمان به چې هلته اوسیدل هغوی ته به حکم کاو چې دمسلمانانو هېواد ته هجرت وکړي.

---

[1]_ المغني : ۱۰/ ۵۵۸.

[2]_ نیل الاوطار : ۸/ ۸_۱۰ .

[3]_ الروضة ۱۰/ ۲۸۲ .

جمهور علماء وايي چې له کفارو سره بندي مسلمان ته روانه دي چې هلته له کتابيه ښځې سره واده وکړي ځکه چې که اولاد يې وشي نو هغوی به هم دهغی په شان کافران شي.

همدغه راز له مسلمانی ښځې سره دی هم واده نه کوي ځکه چی ددی خبرې ويره ده چې هغه دهغه ښځه او اولاد يې دکفارو له خوا په امتحان او فتنه کې وغورځيږي. بلکې ترهغه دی واده نه کوي ترڅو چې دارلاسلام ته نه وي راغلی .[1]

(۳۲)

علماو په دی مسئله کې اختلاف کړيدی چې دمشرکانو هيوادونوته دتجارت لپاره تلل روادي اوکه نه ؟

دجمهور علماو په نزد هلته تلل مکروه دي. دی کارته يې فسق اوکوونکوته يې فاسقان ويلي دي همدغه راز په کفارو باندې وسله خرڅول هم حرام دي اوده څوک يې ورباندی خرڅه کړي نو هغه ته به سزا ورکول کيږي.[2]

(۳۳)

په دارالحرب کې دحدودو دنافذولو او قائمولو په باره کې دعلماو ترمنځ اختلاف دی . ځينو علماو ويلي دي چې په دار الحرب کې بايد حدود نافذنه شي ترڅو حد کړيشوي کسان کفاروته لاړنشي. خو ځينو نورو علماو اجازه ورکړيده او ويلي يي دي چی لکه څنګه په دارالاسلام کې حدود نافذولې شي همدغه راز په دارالحرب کې هم نافذولې شي.[3]

(۳۴)

علماوپه دی خبره اتفاق کړيدی چی مسلمانان دی له خپلو ښځو سره ددښمن وطن ته سفر ونکړي هسی نه چې ددين اوعزت په معامله کې له امتحان او مشکلاتو

---

[1]_ المغني : ۱۰/ ۵۱۱ _ ۵۱۲

[2]_ اثار الحرب في الفقه الاسلامي للدكتور وهبة الزحيلي : ۵۱۲_ ۵۱٤

[3]_ المغني : ۱۰/ ۵۳۷

سره مخ شي، خوکه چېرته مسلمانې ښځې دمسلمانانو له لوی لښکر سره سفر کوي چې دين اوعزت يې خوندی وي نو بيا خيردی.

همدغه راز دمسلمانانو ښځې دی په سرحدونو کې نه اوسيږي مګر که دغه سرحدونه مامون او مستحکم وي نوبياخيردی.[1]

علماو په دی خبره اتفاق کړيدی چې مسلمانان دی له قران کريم سره ددښمن سيمې ته نه ځي مګر په هغه صورت کې تلی شي چې له لوی لښکر سره وي، خو ځينو علماو ددښمن سيمې ته دقران کريم وړل مطلقاً منع کړيدي ترڅو ددښمنانو په لاسوکې ونه غورځيږي اوبې حرمتي يې ونکړي.[2]

داپورتني بيان شوي دجهاد په اړه څو فقهي احکام او مسائل وو چې بشپړ تفصيل يې دفقهې له مختلفو کتابونو څخه ترلاسه کولې شئ.

***

# فصل

## جنګي چلونه، تد بيرونه او اداب يې

په دی پورتني موضوع (جنګي چلونو تدبيرونو اوددی په اسبابو) باندی علماوډېر کتابونه ليکلي دي خو موږ دلته په لنډه توګه يو څوداسې اصولي خبرې وړاندې کوو چې پيژندل يې ضروري دي.

(۱) ځينو پوهانو ويلي دي چې الله تعالی موږ ته دجهاد آداب پخپل په دی آيتونو کې راجمع راټول کړيدي :

---

[1] ـ المرجع السابق : ۱۰/ ۳۷۹ـ ۳۸۰

[2] ـ الشرح الصغير للاردير : ۲/ ۲۷۹

﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا لَقِيتُمْ فِئَةً فَاثْبُتُوا وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ٥. وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ وَاصْبِرُوا إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ﴾ [الأنفال:٤٥- ٤٦.]

ترجمه : اى موٴمنانو! كله چې ددښمن له كومې ډلې سره مخامخ شوئ نو پښې مو كلكې او الله ډير يادوئ. ښايي چې برى موبه برخه شي. دالله اودهغه درسول مننه وكړئ اوپخپلو منځوكې شخړه مه كوئ كه نه نوبې زړه او ناتوانه به شئ اودبدبه به مو لاړشي صبر وكړئ بيشكه الله له صبر كوونكو سره دى.

دغه قائل رښتيا ويلي دي ځكه الله تعالى مجاهدينو ته دپنځو كارونو ښودنه او حكم كړيده. كله چې دغه پنځه كارونه دالله تعالى په لاره جنگيدونكو مجاهدينو كې راشي نو هرو مرو برلاسى كيږي اګرچې شمير يې ددښمن له شنير نه لږ وي.

دغه پورتني پنځه كارونه دادي :

لومړى ثبات: دويم دالله تعالى زيات يادول دريم دالله اودهغه درسول اطاعت څلورم داسې نزاع چې سستي اوبزدلي ته منتج شي نه كول. پنځم صبرا و حوصله.

داخبره دى څرګنده وي چې كله مجاهدين يوموټې وي نودهغو مثال دغشو دګيډې پشان دى اوهيڅوك هغه نه شي ماتولې اوچې كله له ګيډې نه وويستلې اويو يو كړى شي نو ماتول يې هرچاته آسانيږي. مجاهدينو ته پكار دي چې هغوى ډير زيات زيرک اوحاضر دماغ وي ځكه چې جنګ دوكه اوفريب دى.

(( روا البخاري ومسلم عن ابى هريرة وجابر رضى الله عنهما قالا : قا ل رسول الله ﷺ : الحرب خَدْعَة. [1] ))

بخاري او مسلم له ابى هريره وجابر رضىا الله عنهما نه روايت كړيدى هغوى دواړه وايى چې رسول الله ﷺ فرمايلى دي: جنګ خدعه او چل دى خدعة په خاء باندى پېښ او زبر دواړه ويل صحيح دي خرزبر زيات فصيح دى لكه دجوهري او

---

[1] رواه البخاري في الجهاد : ٤/ ٢٤ . ومسلم في الجهاد : ٣/ ١٣٦١

دلغت دنورو اماماتو هم دارایه ده دالحرب خدعة مانادا ده چې جګړه په یوه چل او تد بیرسره پای ته رسیږي اوچل کوونکي بريې مند کیږي په دی باره کې متل دی چې ډیر ځلي یوچل له یوې قبیلې نه زیات ګټور تماميږي جنګي پوهانو ویلي دي چې کله ددښمن وژل ته په زور سره غواړی نو ترهغه ور وړاندی کیږه ترڅوچې دهغه ضعف اوکمزوري ونه پیژني.اوکه چېرته په چل سره یې وژنې نوکه هغه خورا زیات زوره ور اودلوی قوت خاوند وي بیایې هم لوی مه انځوروه .

روایت دی چی کله عمروبن عبدود له علي بن ابی‌طالب ﷛ سره مقابلې ته ووت نو علي ﷛ له هغه سره له چل ول نه کار واخست. علي ﷛ چی هغه ته مخامخ شو نو ورته یې وویل : زه خودوه کسانومقابلې لپاره نه یم وتلی، عمروبن عبدود بل طرف ته وکتل چې دویم سړی لاڅوک میدان ته راغلی دی، په دی وخت کې علي ﷛ وربانده دتورې کلک ګوزار وکړ.عمروبن عبد ورته وویل تاله ماسره ټګي وکړه ،علي ﷛ ورته وویل : جنګ خودوکه ده .

(۲) په جنګ کې دا سنت دي چې توریه وکړی شي یعنی دامیرله مقصد نه نه نژدی خلک خبرشي اونه لری خلک ، همدغه شان دهغه جهت اوطرف هم هیچاته معلوم نه شي چی کوم طرف ته ځي اوپه چایرغل کوي، ترڅو دښمن ته څوک جاسوسي ونکړي. رسول الله ﷺ پخپله داسې کارونه کړیدي .

((روی البخاري و مسلم عن کعب بن مالك ﷛ انه لم یکن رسول الله ﷺ یرید غزوة یغزوها، الاّ ورَّی بغیرها.[1] ))

بخاري او مسلم له کعب بن مالک ﷛ نه روایت کړی چې رسول الله ﷺ به کله د کومې غزوې اراده وکړه نو ددی حال به یې بل چاته نه ویل اوتور یه به یې پکې کوله بلکې پخپله سینه کې به پټ ساته.خودتبوک دغزوې حال یې له مخکې نه ویلي و خکه چې تبوک ډیر لرې او دروم په خلاف و. ترڅو دجنګ لپاره مسلمانان خپل خانونه چمتو کړي او خصوصي تیارې ورته ونیسي.

---

[1] ـ رواه البخاري في الجهاد : ٤/ ٦ ومسلم في التوبة : ٤/ ٢١٢٨

(۳)

دښمنانو ته ورلیږل شوي قاصد او استازی دخپل استوونکي دحال څرګندوی وي ځکه داستوونکي شجاعت او زړه ورتیا نمائنده ګي همدی کوي اودهغه دعقل فهم هوښیاري ترجماني کوي اودهغه دصفاتو او خویونو شجاعت بهادري استقامت وغیره آینه وي . که چیرته قاصد بې زړه ډارن ، بې حوصلې ، سست ، ساده ، کمزورې، ناپوه اوبې همته وي نو ددښمن له زړه نه د مسلمانانو ویره او دبدبه ختموي اوهغوی داسې فکر کوي چې مسلمانان ټول دهمدی پشان دي. نوکه چیرته قاصد زړه ور هوښیار، معامله فهم ، حساس، بیدار فصیح او بهادروي نودهغه په لیدلو سره ددښمن په زړه کې دمسلمانانو ویره پیداکیږي پښې یې لړزیږي اوبې حوصلې کیږي. نوځکه قائد ته پکار دي چی یو هوښیار دقوي فراست خاوند او معامله فهم استازي منتخب کړي. بل داچې قائد ته پکار دي چې دښمن ته بیابیا یوقاصد او استازي ونه لیږي ترڅو له دښمن سره دهغه انس او بلدتیا پیدانشي اوله هغوی سره په پټه د دوستي اړیکې ټینګې نه کړي او مسلمانانو ته نقصان ونه رسوي ځکه چې ډېر ځلې داسې شویدي چې داستازي دخیانت په وجه مسلمانانو ته نقصان رسیدلی دی . اوپوره پوره سیمې یې له لاسه ورکړي .

(۴)

غوره داده چې ددښمن په خلاف دجنګیدو لپاره سریه ( وړه دلګی ) ولیږل شي. رسول الله ﷺ فرمایي :

((عن ابن عباسٍ ﷺ عن رسول الله ﷺ قال: خير الاصحاب اربعةً، وخيرالسرايا اربعمائةٍ، وخير الجيوش اربعةُ آلافٍ، ولن تغلب اثنا عشر الفًا من قِلَّةٍ. [1] ))

---

[1]ـ رواه ابو داود في الجهاد : ۳/ ۸۲ والترمذي في الجهاد : ٤/ ۱۲۵ واحمد : ۱/ ۲۹٤ والحاكم : ۱/ ٤٤۳ والحديث صحيح .

له ابن عباس ﷛ نه روایت دی هغه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل : ښه ملګري څلور دي غوره سریه دڅلور سوه کسانو وي. غوره لښکر د څلور زرو کسانو دی. اودولسو زرو لښکر به دلږوالي په وجه نه مغلوبیږي.

پکاردي چې دسریې قائد او قوماندان جنګي ماهر وي اودجنګ له هرقسم چلونو اوطریقو څخه خبروي. ددښمن په خلاف له اس نه زیات بیدار او آوریدونکی، له باز نه زیات تیز نظر ساتوونکې. له کارغه نه زیات احتیاط کوونکې. له پړانګ نه زیات حمله کوونکې اودزمري نه زیات پرمخ تلوونکی وي. ټول مجاهدین یوبدن اوفولادي دیوال پشان وساتي.درسول الله ﷺ اصحابو رضی‌الله عنهم به چې کله چیره پړاو واچولو نو له یوبل سره به دومره جوخت شول چې که چیرته په هغوی باندې یو لوی څادر آچول شوی وای نو ټول به دهغه لاندی راغلي وو.

(۵)

دلښکر قائد ته پکار دي چې خپلو مجاهدینو ته دجهاد فضائل او دی ورته دنورو عملونو فضائل بیان کړي چې په قرآن کریم اونبوي احادیثو کې بیان شویدي، دغزواتو اود مسلمانانو دفتوحاتو کتابونه ورته ولولي، جنګي چالونو، اود قهرمانانو دبهادرۍ کیسې دې ورته وکړي. همدغه راز دمجاهدینو دصبر او استقامت او دډیر دښمن په صفونو کې دهغوی دننوتلو اود جنګیدو واقعات دی ورته بیان کړي، ترڅو په دی سره دمؤمنانو زړونه غښتلي او دبزدلانو له زړونونه ویره ختمه کړي او دبهادرانو زړه ورو په زړونو کې دشجاعت ولوله نوره هم زیاته شي څکه چې طبیعتونه چیلنج ډیر ژر قبلوي او دسیالانو سره دکارونو په ورته والي زیات زیار باسي او سیالي ورسره کوي بیاچې کله دمجاهدینو دصفاتو او عملونو ستاینه په قران او حدیث کې اوګوري دهغو فضائل واوري امیر پخپله هم دغه صفات او اعمال خپل کړي او چې کومو مجاهدینو خپل کړي وي هغوی سره مینه وساتي او ځانګړی مرتبه ورته ورکړي نو دا اعمال وصفات به دټولو مجاهدینو مرغوب او دپام وړ وګرځیږي.

په جنګونو کې بنیادي اوبنستیز خبره داده چې یوښه قائد ورته منتخب کړی شي د مسلمانانو په امیرباندې واجب دي چې دمجاهدینو قائد بیرغ نیوونکې امیر

اوداسې نور ديندار، جرئت مند، قهرمان، دقوي زړه مالک، مزبوت، دجنګونو ماهر او تجربه کار، چې له بهادرانو سره يې مقابلې کړې وی او سختو ځايونو ته يې دانګلي وي . دپيښو ځارونکې او تيزفهم وي.

کله چې دلښکر قوماندان اوقائد په دغو اوصافو متصف وي نوددی اثر په لښکر باندې هم کيږي اودهغوی زړونه اوپښې مزبوطيږي سخت جنګ ته اماده کيږي ، نه وارخطا کيږي اوپه بري يې باور زياتيږي . ځکه چې په لښکر کې دقائد مقام او مرتبه په لښکرکی داسې ده لکه چې په ټول بدن کې دزړه کله چې زړه فاسد شي نوټول بدن ورسره فاسديږي، اوکله چې ثابت وي نو ټول بدن يې ثابت وي. همداشان چې کله امير ښه ثابت قدمه وي ټول لښکربه يې هم ثابت قدمه وي او که امير فاسد وي ټول لښکر به هم دده پشان وي .

پوهانو ويلي دي چې که يو زمرې دزرو ګيدړانو قيادت کوي نوداله هغه نه غوره دی چې يو ګيدړ د زرو زمريانو قيادت او مشري کوي.

يو مشهور اوقهرمان مجاهد سرماري رحمه وايي چې دمجاهدينو په قائد( امير) کې دغه لاندينې لس خصلتونه ضرورېکار دي.

۱ــ دزمري پشان مزبوط زړه ولري چې کله هم بزدلي پکې رانشي.

۲ــ په تکبر کې دپړانګ پشان وي چې دهيچا وړاندې سرنه ټيټوي.

۳ــ په شجاعت کې دميلوپشان وي چې په ټولو اندامونو سره جنګ کوي.

۴ــ په حمله کولو کې دخنزير پشان وي چې کله هم شانه آړوي.

۵ــ په ډاکه آچولو کې دشرمښ په شان وي چې له يوطرف نه مايوس شي نوله بل طرف نه ډاکه آچوي .

۶ــ دوسلې په اوچتولو کې دميږي پشان وي ځکه چې هغه له خپل وزن نه زيات بار اوچتوي.

۷ــ په ثبات او استقامت کې دغره پشان وي.

۸_ په صبراو حوصله کې دخرپشان وي .سپین سترګې کې دسپي پشان وي چې کله ښکار ترینه په اورکې ننوځي نوسپې هم اورته ورپسې ننوځي. دموقع او چانس دترلاسه کولو کې دچرګ پشان وي.

(۷)

دلښکرقائد ته پکار دي چې له جنګ اوقتال نه وړاندې ددښمن په لښکر کې معتمد جاسوسان خواره کړي ترڅودهغوی له تعداد وسله او جنګي پلانونوپه باره کې معلومات ترلاسه کړي. دهغوی دمشرانو اوتکړه جنګیالیو نومونه زده کړي. دهغوی په حالاتو ځان خبر کړي بیاهغوی ته دهغوی دخوښو او مرغوبو شیانو وړاندیز وکړي اوبغاوت لپاره یې تیار کړي.

پخپل لښکر کې داسې خطونه خواره کړي چې ددښمن جنګیالیو اوسردارانو ته منسوب وي اوپه هغه کې دمسلمانانو له مشر اوقائد سره دهغوی داړیکو او وفاداري یادونه شوې وي ترڅو دمسلمانانو زړونه مزبوت شي دغه خطونه په دومره پراخ کچه سره خواره کړي چې ددی خبر دښمنانو ته ورسیږي اوهغوی پخپلو منځو کې بې اعتباره او مشکوک شي صفونه یې مات شي اختلاف او تفرقه پکې رامنځ ته شي. داټول کارونه په جنګ کې له دښمنانو سره روادي ځکه چې جنګ خدعه دی.

(۸)

دمسلمانانو په امیر باندې واجب دی چی ددښمن دمعلوماتو د ترلاسه کولو لپاره ښه کافي خرچه وکړي. جاسوسان دی ورته ولیږي اوپه دی لاره کې له خرچ کولو نه بخل ونکړي .

ځکه چې که په دښمن باندې غلبه ترلاسه کړي نودغه خرچه ورته څه نقصان نه رسوي اوکه چیرته دښمن په مسلمانانو باندې غلبه ترلاسه کړي نو هغه پیسې ورته ګټه نه رسوي چې ورسره پاتې شویدي.

دجنګ په چلونو او فلانونو باندې پیسې مصرفول دمسلمانانو دسرونو له مصرفولو نه غوره دی. داهم دالله تعالی نصرت اوتائید دی چی هغه جل جلاله دوی ته داسې تدبیرونه اوفلانونه ور وښایي چې عمل ورباندې کولې شي. اوداسې

تدبیرونه په زړه کې راتلل چې عمل ورباندې نه شي کولې له افسوس نه پرته بل څه ګټه نه لري.

(۹)

په جنګونو کې له ټولو نه مهم څیز ددښمن په خلاف دښو مورچلونواو کمینونو انتخاب اوپه هغو کی دتکړه مجاهدینو ځای پرځای کول دي ځکه چې په کمین سره ددښمنانو په زړونو کی ویره پیداکیږي ځکه ناڅاپي برید ډیرې اغیزی لري خاصتاً چې دکمین مجاهدین دشالخوا نه پردښمن برید وکړي . نو دهغوی دعسکرو معنویات او روحیات ډیر زیات کمزورې کیږي اومخامخ جګړې ته ترهغه دوام نه شي ورکولې ترڅو چې له شاطرف نه په امن کی نه وي. ځکه کله چې دهغه په زړه کې داویره پیداشي چې څوک دشالخوا نه ورباندی برید ونکړي نودهغه همت ددفاع او جنګیدو ترمنځ تیت پرک شي او بیا دسړیو( مجاهدینو ) سره دمخامخ کیدو توان نه لري بلکې زړه یې په دی انتظار کې وي چې اوس به له کومې خوا ورباندی برید کیږي داخوخالي دویرې په حال کې داسې وي په هغه وخت کې به یې څه حال وي چې دشالخوا شړک یادرز دروز واوري ؟

(۱۰)

کله چې دواړه لښکرې مخامخ کیږي نو دمجاهدینو قاید ته پکار دي چې داسې ځای منتخب کړي چی لمر دښمن ته مخامخ اودهغه په سترګو لګیږي، یاباد دهغوی په مخونو باندی آلوځي ترڅودجنګ کولو توان له لاسه ورکړي. همدغه راز دمجاهدینو قائد ته پکار دي چی مجاهدین په مناسبو ځایونو کې ځای پرځای کړي تکړه مجاهدین په قلب او منځ کې کینښوي او نور مجاهدین دهغوی دواړو طرفونوته، ځکه چې دلښکر قلب او مرکز په جنګ کې زیات مهم رول لري. که دواړه اړخونه ماته وخوري او مرکزي مجاهدین ثابت قدم پاتی شي نو ماته بیرته په بري تمامیږي.

دمجاهدینو قائد ته داهم پکار دي چې ددښمن ځایونه اودهغه زړه وړو کسانو نه معلوم کړي هلته دی خپل تکړه او زړه ور کسان ځای پرځای کړدي همدغه

راز هغه ته ښکار دي چې له دښمن نه خپل ځای پټ وساتي ترڅو دښمن دهغه دوځلو له پاره خصوصي اقدام ونکړي.

(۱۱)

کله چې دمجاهدینو قائد غواړي چې دڈښمن ښار یاقریه ونیسي نو هغه ته له ټولو نه وړاندې دهغه دشاخوا دکلواو باغونو نیول ضروري دي ترڅو ښار ته دننوتو لارې ورته اسانه شي.

وايي چې کله دروم پاچا دیوښار دنیولو اراده وکړه نودلښکر قائد په وړاندې یوفرش وغواړو اودهغه په منځ کې یو دینار یې کیښود هغوته یې وویل چې که څوک غواړي دغه دینار ته په فرش باندې له پښو ایښودولو نه پرته ځان ورسوي نو هغه ته زه قیادت سپارم ؟ هغوی کوښښ وکړ خو ور وونه رسیدل . بیاپاچا دفرش اړخونه راغونډ کړل اودینار ته په اساني سره ورسېدل. دروم پاچا ورته وویل که چیرته تاسې دیو مزبوط ښار دنیولو اراده کوئ نولومړی دهغه شاخوا چهاوڼي ګانې او مورچلې ونیسئ ترڅو ښارته

درسیدو لارې اسانی شي.

(۱۲)

ام الذیال عبسیه خپل زوی ته چی دعربو یو مشهور قهرمان و نصیحت وکړ چې ای زویه ! اګرکه تاته دخپل قوت پوره یقین هم وي نو بیاهم ترهغه جنګ ته مه وړاندې کیږه ترڅوچې له هغوی نه دتښتنې لاره له مخکې نه په نظر کې ونه نیسي ، ځکه چې ترڅوپورې له انسان سره دخپل ځان بچ ساتلو هیله وي نو هغه په پوره توان سره جنګیږي. او خورا طاقت ور وي خوکه چیرته دخپل ځان له بچ کولو نه عاجزشي نوپه هغه کمزوې راځي. غوره طاقت هغه دی چی دهغه دعملي کولو لپاره یې چل ول سنجولې وي ، اوته دخپل دښمن په وړاندې دلیوه پشان کینه اودکارغه پشان ترینه الوزه، ځکه چې خپل ځان بچ کول او احتیاط دبهادري جلب دې او غفلت دبهادرۍ دښمن دی.

ځینو پوهانو ویلي‌دي چی هرچا خپل دښمن کمزوری وګڼله هغه دوکه شو او څوک چې دوکه شي پرهغه دښمن بریالی کیږي. په جنګ کې خپل زړه قوي او محکم

وساته ځکه چې داد کامیابي سبب دی، لـه کافرو سره خپل دښمني اونفرت په زړه کې تـازه ساته ځکه چې داد انسان ښـې مزبوتوي، پخپـل ځان فرمان برداري لازم وګڼه ځکه چې داد جنګیالي کلاده.

ځینې جنګي چالونـه لـه بهادری نـه زیات کار کوي. کله کله یوه خبره دپوره لښکر دماتې سبب ګرځي ، صبر ، زغم دکامیابي سبب دی.

لـه دښمن سره جنګ آخري تدبیر وګرځوه، ( یعنی کله دروغـې جوړې تولې لارې بندې شي نـو جنګ ته اقدام وکړه ، ) بری په پلان اوتدبیر کې مضمر ده. په ظلم سره کامیابي نشـي ترلاسه کیدلې. لـه دښمن سره دمخامخ کیدو په وخت کې بزدلي مه ښکاره کوه اودقدرت موندلو په وخت کې نرمي مکوه. له غالبیدو اوبریمن کیدونه وروسته زیاتي مه کوه، دغنیمت په مال کې هرګز خیانت مه کوه خپل جهاد دسپکې دنیاله حرص او لالچ نه پاک وساته.

(۱۳)

رسول الله ﷺ مسلمانان لدینه منع کړیدي چې لـه دښمن سره دجنګ کولو آرزو وکړي او مسلمانانو تـه دصبر او زغـم کولـو امر یې کړیدی لکه چې په حدیث شریف کې راغي :عن عبدالله بن ابی اوفی ﷺ ان رسول الله ﷺ قال : (( لاتتمـنّوا لقاء العدوِّ، وسلُوا الله العافیة، فاذا لقیتموهم فاصبروا .[1]

لـه عبدالله بـن ابی اوفی ﷺ نـه روایـت دی چی رسـول الله ﷺ وفـرمایل تاسې لـه دښمـن سره دمخـامخ کېدو او جنګیدو آرزومه کوئ، اوله الله تعالی نه دعافیت دعا غـواړئ. اوچې کله ورسره مخـامخ شوئ نـو بیاله صبر او زغم نه کار واخلئ یعنی په پوره استقامت ورسره وجنګیږئ .

(۱۴)

رسول الله ﷺ ددښمـنانو لـه مثله کولو دهغوی لـه سوځولو هغوی سره ټګي اودتړون لـه ماتولو نه ممانعت کړیدی اوفرمایلی یې دي چې وعده او تړون ماتول دمنافقانو صفت دی.

---

[1]ــ رواه البخاري في الجهاد : ٤/ ٢٣ ومسلم في الجهاد : ٣/ ١٣ ٦٢

(( روى البخاري ومسلم عن عبدالله بن عمرو رضى‌الله عنهما: عن رسول الله ﷺ قال : (( أربع من كُنَّ فيه كان منافقاً خالصاً، ومن كانت فيه واحدةً منهن كانت فيه خصلةٌ من النفاق حتى يَدَعها: إذا ائتمن خان، وإذا حَدَّث كذب، وإذا عاهد غدر، وإذا خاصم فجر.[1] ))

**بخاري او مسلم له عبدالله بن عمرو رضى‌الله عنهما اوهغوى له رسول الله ﷺ نه روايت کړيدى چى رسول الله ﷺ وفرمايل :**

**څلور شيان چى په کوم سړي کى موجود وي هغه خالص منافق دى، اوکه يوپه کې موجود دي نوداد منافقت يوخصلت اوعادت دى ترڅو چې پرې نږدي.**

**څلور خصلتونه دادي :**

**کله چې امانت ورته وسپارل شي نوپه هغه کې خيانت کوي. کله چې خبرې کوي نودروغ وايي، کله چې وعده وکړي نو وفا ورباندې نه کوي، اوکله يې چې له چاسره جنګ شي نو کنځلې کوي.**

(( عن ابى هريرة رضي الله عنه قال : قال رسول الله ﷺ : (( ثلاثةٌ أنا خصمُهم يو القيامة ، رجلٌ أعطي بي ثم غدر، ورجلٌ باعَ حُرّاً ثم أكل ثمنه، ورجل استأجر أجيراً، فاستوفى منه العمل، ولم يوفّه أجره.[2] ))

**له ابى هريره رضي الله عنه نه روايت دى هغه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل :**

**زه د قيامت په ورځ له دريو کسانو سره جګړه کوم . يو هغه سړى چى زما په نوم لوظ وکړ اوبيايې دوکه وکړه دويم هغه سړى چى ازادسړى يې خرڅ کړ اودهغه مال يې وخوړ دريم هغه سړى چى يو مزدور يې دمزدورى لپاره راوستلو اوهغه نه يې خپل پوره کار واخست مګر هغه ته يې پوره مزدوري ورنکړه.**

---

[1] ـ رواه البخاري في الايمان : ۱/ ۱۲ ومسلم في الايمان : ۱/ ۷۸

[2] ـ رواه البخاري في البيوع : ۳/ ۴۱

(( عـن عبدالله بن عمر رضى الله عنهما قال : قال رسول الله ﷺ: (( إذا جمع الله الأولين والأخرين يوم القيامة، يرفع لكلّ غادرٍ لواء، ويقال : هذه غدْرةُ فلان.)) [١]

لـه عبدالله بـن عمـر رضي الله عنهما نـه روايت دى هغـه وايي چې رسول الله ﷺ وفـرمايل دقيامت په ورځ بـه الله پاک مخکيني او وروستي ټول خلک راجمع کړي. هرټک او غدار باندې به يو بيرغ اوچتولى شي او وېل کيږي به چى دا دفلان بن فلان ټګي او دوکه ده.

((عـن علـيّ بـن أبـي طـالب رضي الله عنه ، عـن رسـول الله ﷺ قـال : ((... ذ مـةُ الـمسـلمين واحـدة، فمـن أخفـر مسلما فعليه لعنةُ الله والـملائكة والناس أجـــمعين ، لايقبلُ الله منه يوم القـيامة صرفاً ولا عدلاً. )) [٢]

لـه علـي بـن ابى طـالب رضي الله عنه نـه روايت دى هغـه وايي چې رسول الله ﷺ وفـرمايل : دټولـو مسلمانانو ذمـه يوه ده (يعنى کـه هريومسلمان يوکافـر تـه ذمه اوامان ورکړي نوداټولو مسلمانانو له طرف نه دى )

پس چاچې دمسلمان ذمـه ماتـه کړه نوپرهغه دالله تعالى ،ملائکو اودټولو خلکو لعنت دى. الله تعـالى د قيـامت پـه ورځ دهغه هيڅ قسم ځاني ، مالي، فرضي اونفلي عبادت نه قبلوي .

پس دمسلمانانو امير او هر کس تـه پکار دي چې لـه غـدر اود تړون لـه ماتولو نـه کـلک ځان وساتئ ځکه چې داډيره لويه ګناه ده. اوله دى سره ددى وبال او عذاب په دنياکې هر چاته رسيږي او دا ډير رسواکوونکې دي .

[١]ــ رواه مسلم في الجهاد : ٣/ ١٣٥٩.

[٢]ــ رراه مسلم في الحج ٢/ ٩٩٩ . والبخاري في فضائل المدينة : ٢/ ٢٢١؟

# پای

روی ابـوداود عـن جابـر بـن عـبدالله رضـی الله عـنهما عـن رسـول الله(ص) قـا ل : (( مـن اعطـی عطاءً فوجد فیجزیه فان لم یجد فلیثن به فمن اثنی به فقد شکره ومن کمه فقد کفره )) [1]

ترجمه : چاتـه چی تحفه ورکړی شي اوهغه طاقت لري نو دهغه بدله دی ورکړي او که دبدلی وس نه لري نو دعا دی ورته وکړي ، ځوک چی دعاورته وکړي يو شکر يه يې اداکړه اوچې دعاهم ورته ونه کړي نو هغه ناشکري وکړه .

اوپه بل روایت کې داسې انداظ راغلي دي : (( مـن اصـطنع إلیکم معروفا فجـاوزوه فإن عجزتُم عن مجازاته فادعوا لـه حتی تعلموا أن قد شکرت فان الله شاکرٌ یحب الشاکرین ))

ترجمه : چاچی لـه تاسی سره څه نیکي وکړه نـو دهغـه بدلـه ورکړئ که دبدلی لـه ورکولـو نـه عاجـز وئ نـو دومـره دعاورتـه وکړئ چی پـدی مویقیـن وشـي چـې دهغـه شکریه مو اداکړه ځکه چی الله تعالی قدردان دی او قدر دان خلک خوښوي .

پـه هـر مسلمان دالازم دي چـې دالله تعـالی ورکـړي نعمـتونه وربـاندی ولیـدل شـي اوددې نعمـتونو چـې ځوک سبب جوړشوی وي دهغـه شکریه اداکړي ، او ځوک چې دالله تعـالی پـه لاره کـې خپـل ځان قربانوي هغه لپاره ښې ډیری دعاګانې وکړي ترڅو خپـل کمزوري سره سره لـه هغـوی سره ځـان یوځـای کـړي ، پـه مال او ځان سره دوی پسې له اقتداء نه په پاتې کیدو کې خپل کامل عجز او بې همتي ګواه کړي .

پرمسلمان لازم دی چې پدې خبره یقین وکړي چې که چېرته الله تعالی دغه صحابه کرام اوتابعین اوددی په لاره تلونکي غازیان او مجاهدین نه وای پیداکړي چې ددین

[1] ـ رواه ابو داؤد في الادب : ۵/ ۱۵۸، والحدیث حسن.

مرستندوی ، حامي او د اسلام اتلان وو ، دتوري او دګذار سري وو ، دشرق او دغرب فاتحان وو ، قوي لښکرې او ډلې او لوی قافلې یې منظم کړی وی ، او دوی چې څومره خزانې خرچ کړی وې دقوي او دماتوونکو لښکر د دفاع او مقابله یې کړی ده ، تردی چې له اسلامي ملت نه یی مرتدان وشړل ، دفارس او روم باداشاهان یې له تختونو نه راښکته او غلبه پرې حاصله کړه ، دهغوی له جسمونو نه یې دعزت او شرف جامې وویستلې ، له سرونو نه یې شاهي تاجونه لرې کړل ، دخپلو چړو په څوکو، ژبو غاښونو او غشو سره دهغوی دوینو څکل ورته خوند ورکړ ، دهغوی انسانان او حیوانات یې ټکړې ټکړې کړل ، ټول مال او هال یې نیست اونابود کړ ، دهغوی پاتی شوې لوی لوی ډلی یې چې په زرګونه وو کم کړل ، د هغوی شان او شوکت یې ذلیل ، رسوا او له خاورو سره خاورې کړ، دهغوی پر ټینګو کلاګانو او ښارونو باندی منجنیق وورول او سنګ باران یې کړل ، ان تردی چې دهغوی ناشونې کار یې ممکن بلکې، حتمي او لازمې وګرځاو.

که چېرته ددغو خلکوجهاد او کوښښ نه وای نو مونږ به چېرته هم ددوی دنعمتونو په مزو او خوشحالو کې نه وو اوسیدلي کوم چې یې پخپلو همتونو او زیارونو سره مونږ ته تیارکړیدي ، اونه به مود ددی دجدو جهد او دقربانیو په سوری کې په آرام او سکون سره ژوند تیر کړی و. تر دی چې مونږددنیاوي ګټو په مینه کې دهغوی کوښښونه او قرباني هیر کړل او د معاندینو له مقابلې نه مو غفلت وکړ، دنیزو او دتورو په وسیله چې هغوی راته دمرګ دجام څکلو کوم درس او تعلیم راکړی و دهغه نه مو بې پرواهي وکړه او ځانوته مو راحت او آرام خوښ کړ ، کوم اطاعت او تابعداري چې پرمونږ لازم و هغه مو پریښود او مال او اسباب مو خوښ کړل ، ځانونه مو په فاني او زائلیدونکي ځایونو او ملګرو باندی دوکه کړل ، دنیاته مو داسې میلان وکړ لکه تږی سړی چې سراب ( شګوګل ) ته میلان کوي . ددنیا ددوکې په کور کې دهغه چاپشان واوسیدو چې ګویا لدینه هیڅ کوچیدل او ورتګ نشته ، له جهاد نه مو مخ واړاو ځکه چې دجهاد هیڅ داعي او بلونکې نشته ، دفوت له اوچتې مرتبې نه دسستیا اودتنبلی ټیټې مرتبې نه ورسیدو ځکه چې هیڅوک نه دغزا او جهاد نوم اخلي او نه ورته تیزول او هڅول کوي دجهاد نوې او ښایسته جامې دامن

اوسلامتي په وجه زړی ، تر او تازه څانګې يې دذلت او خواهشاتو په وجه مړاوې او وچې شوی. دعزت او شرف په اسمان کې دجهاداوچت او ځليدونکي ستوری راپريوته نوم او نشان يې داسې محوه او ختم شو ګويا چې له دينه وړاندی پدې نوم سره هيڅ شي موجودنه و .

نو ځکه هغه قوي او مضبوط دين کمزوی ، او دمسلمانانو محکم او مضبوط ستن سست شو .دی حدته ورسيدو چی دشمن مو په وچه او سمندر کې هرخواته تختوي ، په پټه او ښکاره مو داسې اوچتوي لکه چې مرغۍ دانه اوچتوي ، په مرکزونو او اطرافو کې مو په ډله ييزه او ځانګړي شکل سره نيسي مګر بياهم زمونږ په زړونو کې کوم حرکت او خوځښت نه پيداکيږي ، ګويا چې دوی په حقه دي او مونږ په ناحقه !!

ای ګرانه وروره! پرمونږ چې داکوم فسادونه اوبد حالتونه راغلي دي ، له کمال نه وروسته چی ته زمونږ کوم نقصان او زوال ګورې دا نا اشنامه ګڼه ځکه چې مونږ ددين لوی او عظيم شعار پريښې دی او دمشرکانو او کافرانو په مقابل کې چې مونږ کوم فرض او مسئوليت درلودلو هغه ته مو شاکړی ده . دکورونو او بنګلو جوړولو ته مو مخه کړی ، ددنيا هره بدي او ناروا مو خوښه کړی ، زمونږ په زړونو کې چيرته هم دجهاد نوم نشته ، داوږدو اوږدو اميدونو او دمالونو دراجمع کولو له مصروفيت او کفر نه فرصت نه مومو، مونږ چی له کومو حالاتو سره لاس او ګريوان يو له بيان نه يې نه بيانول غوره دي .

الله تعالی چی چاته هدايت وکړي هغه هدايت موندونکې دی او چې څوک ګمراه او بې لارې کړي هغوی لپاره دالله نه پرته هيڅوک دوست او مرستندوی نشته .

يا الله! مونږ ستا دربارته له خپل ذلت او عاجزي سره راغلي يو ، خپل عجز او محتاجي ستاپه جناب کې پيش کوو . ستامدد او نصرت ته مو داحتياج اوبی کسۍ لاسونه اوږده کړيدي ، ستاپه ګاونډ او حرم کې ولاړيو ، ته زمونږ په ټولو رازونو باندی خبر دار يې .......

ياربه ! زمونږ دزړونو اوطبيعتونو دغه اتحاد او اجتماع مونږ ته په شړلو او لرې کولو سره مه واپس کوئ ، زمونږ دګوتودغه ليکل دقيامت په ورځ زمونږ په خلاف

ګواه مه جوړوئ ، داسې شهادت موږ ته نصيب کړئ چې تاته دقرب اوچتې مرتبې حاصل کړو ، ای الله ! مخونه مو په هغه ورځ سپين کړه چې په کومه ورځ ستاپ وړاندې ډير مخونه تور او ډير مخونه سپين وګرځي ، بيشکه ته دلوی احسان او دعام فضل اوکرم خاوند يې ، نشته ګرځيدل له ګناه نه ، او نشته طاقت په طاعت مګر ستاپه توفيق باندی !

يا الله ! خپل غوره او بشپړ رحمتونه زمونږ په سردار او په خپل هغه حبيب محمدصلی الله عليه وسلم باندی ښکته کړه چې پخپل کوښښ او قربانۍ سره يې دشرک توری تيارې ختمې کړی او باطل قومونه يې پخپل جهاد اوقوت سره وويرولې دهغه صلی الله عليه وسلم اهل بيتو او بهترينو بهادرو ملګروباندی هم خپل رحمت ترهغه ښکته کړه ترکوم وخت پورې چې دګردونو په تيارو کې توري او وسلې پړقيږي ، اودلويو لښکرو په مقابله او دفاع کې دوړاندې کيدونکو ډلو او اسونو پښې زمکه پايمالوي .

وسلم تسليما کثيراً دائماً ابداً !! والحمد لله رب العاليمن .

# فهرست


| عنوان | مخ |
|---|---|
| د ژباړن سریزه ........................................ | ۱ |
| دمولف سریزه ........................................ | ۴ |
| داتهذیب ........................................ | ۹ |
| دمولف پیژندنه ........................................ | ۱۳ |
| لومړی باب : له کفارو سره دجهاد د وجوب حکم .................... | ۱۸ |
| د جهاد په اړه د اصحابو کراماو تابعینو افعال او اقوال .................... | ۲۶ |
| فصل : ایا جهاد کفایي فرض دی اوکه عین فرض .................... | ۲۹ |
| فصل: دَ جهاد پرینبودونکو په باره کې وعید .................... | ۳۶ |
| ځینی هغه حدیثونه چې له جهاد نه وروسته کیدونه دنهی .................... | ۳۹ |
| فصل: د جهاد پرینبودونکو دلائل او بطلان یې .................... | ۴۳ |
| ستاد لومړي دلیل ابطال ........................................ | ۴۵ |
| ستا د دویم دلیل ابطال ........................................ | ۴۷ |
| ای دجهاد پرینبودونکیه ! ........................................ | ۴۹ |
| ای مسلمانه ؟ ........................................ | ۵۲ |
| ستا د دریم دلیل ابطال ........................................ | ۵۳ |
| ستاد څلورم دلیل ابطال ........................................ | ۵۵ |
| ستاد پنځم دلیل ابطال ........................................ | ۵۶ |
| ستاد شپږم دلیل ابطال ........................................ | ۵۹ |
| ستاد اووم دلیل ابطال ........................................ | ۶۱ |
| دجهاد اود الله جل جلاله په لاره کې دمجاهدینو د فضیلت.................... | ۶۶ |
| په دی باره کې چې جهاد له غوره اعمالو څخه دی .................... | ۶۹ |
| له ایمان نه وروسته جهاد له غوره اعمالو څخه دی .................... | ۷۰ |
| دمسجد حرام له جوړولو نه جهاد زیات غوره دی .................... | ۷۳ |

عنوان

مخ

علی الاطلاق جهادله ټولو عملونو څخه غوره عمل ........................ ۷۵
الله تعالی ته جهاد له ټولو نه محبوب عمل دی ........................ ۷۹
د الله په نزد مجاهد له ټولو خلکو نه غوره دی ........................ ۸۰
له جهاد سره هیڅ شی نشي برابریدلی ........................ ۸۲
جهاد په کوښه کې له ناستې اوپه مسلسل عبادت کې له ........................ ۸۵
مجاهد له ټولو خلکونه غوره او په الله ګران دی ........................ ۸۹
دمجاهد خوب دنورو خلکو دټولې شپې د تهجد او دورځې ........................ ۹۰
الله تعالی مجاهد ته په جنت کې سل درجې زیاتې ورکوي ........................ ۹۲
ددی امت سیاحت جهاد دی ........................ ۹۵
د الله په لاره کې جهاد داسلام لوړه څوکه ده ........................ ۹۶
فصل: له وتلو نه تر راستنیدو یاشهید کیدو پورې مجاهد دالله ........................ ۹۸
فصل :الله تعالی مجاهد نه ضائع کوي او ........................ ۱۰۶
فصل :دجهاد او مجاهد مختلف فضائل ........................ ۱۱۲
دریم باب : جهاد له حج نه زیات فضیلت لري ........................ ۱۲۳
څلورم باب : جهاد ته دخلکو در ابللو فضیلت ........................ ۱۲۸
پنځم باب : په جهاد کې د مخکی کیدو فضیلت ........................ ۱۳۴
شپږم باب : دالله په لاره کې دسهار او بیګاه دتیرولو فضیلت ........................ ۱۳۵
اووم باب : دالله په لاره کې د ګرد او په هغه کې دتللو فضیلت ........................ ۱۴۱
اتم باب : له زمکنی غزانه دسمندري غزا غوره والی ........................ ۱۴۶
فصل: د مجاهدینو دتکبیر په فضیلت کې ........................ ۱۵۱
نهم باب : د الله په لاره کې دنفقې فضیلت ........................ ۱۵۳
لسم باب : دالله په لاره کې دبخل کوونکو خلکو لپاره وعیدونه ........................ ۱۶۲
فصل: د الله په لاره کې نفقه کول بهترین اطاعت او نیکي ده ........................ ۱۶۸
یوولسم باب : مجاهدینو ته دسامان د برابرولو او ........................ ۱۷۶
دولسم باب : له مجاهدینو سره دمرستې اودهغوی دخدمت ........................ ۱۸۰

| عنوان | مخ |
|---|---|
| فصل مجاهدينو ته دمخه ښه ويلو اوله هغوی سره دخو ګامو......... | ۱۸۵ |
| ديارلسم باب : دجهاد په نيت د اس ساتل اوپرهغه د خرچ ........... | ۱۸۸ |
| فصل : درسول الله صلی الله عليه وسلم داسونو نومونه ................ | ۱۹۶ |
| څوارلسم باب : د اسونو د خدمت اودهغوی دعزت کولو.............. | ۱۹۹ |
| پنځه لسم باب : دمجاهد او مرابط داعمالو، لمونځونو او روژو....... | ۲۰۱ |
| شپاړلسم باب : داسلامی سرحدونو دحفاظت فضيلت ............... | ۲۰۵ |
| فصل : د رباط معنی او وخت يې ....................................... | ۲۱۷ |
| اووه لسم باب : دمجاهدينو دپيری کولو فضائل ......................... | ۲۲۲ |
| اتلسم باب : د الله په لاره کې د جهاد په وخت دويري فضيلت ......... | ۲۳۲ |
| نورلسم باب : په جهاد کې دصف د جوړو اوپه هغه کې د .............. | ۲۳۵ |
| شلم باب : دالله تعالی په لاره کې د غشو ويشتلو فضيلت او.......... | ۲۳۹ |
| فصل : دغشو ويشتلو تمرين ............................................. | ۲۴۶ |
| دمسابقې شرطونه ......................................................... | ۲۵۰ |
| فصل : دهغوخلکو په اړه سخت وعيد چې لومړی غشی ويشتل...... | ۲۵۲ |
| يوويشم باب : دمجاهدينو د تورو، نيزو او نور وسلوفضيلت......... | ۲۵۴ |
| ځينې هغه احاديث چې د تورو او نيزو په فضيلت کې راغلي دي...... | ۲۵۵ |
| دوه ويشتم باب : دالله په لاره کې دتيپې کيدو فضيلت ............... | ۲۶۰ |
| در ويشتم باب : دالله په لاره کې د کافرو دوژلو فضيلت.............. | ۲۷۰ |
| څلير ويشتم باب : دشهادت غوښتنې اودښمن ته د زيان اړولو....... | ۲۷۴ |
| فصل : ددښمن په ډير لښکر باندی يواځې ديومجاهد .............. | ۳۰۳ |
| فصل د مبارزې د بيان په باره کې ...................................... | ۳۰۵ |
| پنځه ويشتم باب : له جنګ نه تېښته او شا اړول ډيره لويه ګناه...... | ۳۱۰ |
| فصل: ددښمن دحاضريدو په وخت جهاد فرض عين دی............... | ۳۱۳ |
| فصل : دالله مرسته او نصرت له مجاهدينو سره دی ................. | ۳۱۷ |
| شپږ ويشتم باب : له صحيح نيت نه پرته دجهاد اجر نه ترلاسه........ | ۳۳۳ |

